# دکتاب پېژندنه


- دکتاب نوم: ديني عصري مسائل.
- ترتيب کوونکی: مولوي محمدقاسم (انقيادي)
- کمپوزر: محمدادريس (قيومي)
- تصحيح: خليل احمد ثاړن
- ډيزاين: ارشاد محمود او سجاد محمود
- خپرندوی: احمدشاهي کتابخانه ـ کابل بازار کندهار
- داړيکو شمېرې: ۰۷۰۰۳۲۱۴۷۹ ـ ۰۷۰۶۶۴۶۶۶۵
- د چاپ شمېر: زرټوکه
- دچاپ کال: ۱۳۹۲ لمريز


---

## دخپرندوی یادښت

حمد او ثنا دهغه ستر ذات وایم چې د ټوله نظام واکمن دی او د انسانانو د لارښوونې لپاره یې ربښتینی استازی د ربښتینو احکامو سره رالیږلی دی.

درود او سلامونه د اسلام پر ستر لارښود سرور کائنات حضرت محمد مصطفی (ﷺ) باندې وایم چې انسان ته یې ربښتینی انسانیت ور ښوولی دی.

آحمدشاهي کتابخانه تل هڅه کوي چې کره او معتمد کتابونه چاپ کړي، همدارنګه هغه کتابونه چې د معتمدو دیني کتابونو څخه چاڼ سوي وي او ماخذونه یې روښانه وي هم یې د چاپ وياړ لرو.

ددې بهیر په لړۍ کې دادی یو بل داسې دیني کتاب چې د اوس عصر د اړتیا سره برابرې دیني معتمدې مسئلې یې په ځان کې رانغښتې دي ستاسې مخ ته ږدو، (دیني عصري مسایل) کتاب د محترم مولوي محمد قاسم انقیادي صاحب کتاب دی چې د مسئلو په راټولولو کې یې ډېر زحمت ایستلی دی څکه چې د یوې مسئلې لپاره یې څو کتابونه باندې کتلي دی، هیله لرم چې ټول مسلمانان ګټه ورڅخه واخلي.

په درنښت

ملا محمد صادق جهادي

داحمدشاهي کتابخانې مسئول.

# سریزه

دیني عصري مسایل کتاب چي ستاسي په لاس کي دی ، زما د ډېر وخت د زیار نتیجه ده چي د اړتیا په وخت کي مي هره مسئله په ځانګړي ډول له ډېري پلټني وروسته او د ماخذونو په یادولو سره د ګرانو پوښتونکو پوښتنو ته ځواب کړي ده .

دغه مسایل یو ځلي د ( حقیقت ) په نوم په میاشتني جریده کي په متفرقه ډول خپاره سوي دي ، د ( حقیقت ) میاشتني د ګرانو لوستونکو د بیا بیا غوښتنو په وجه مي لازم وبلل چي په کتابي بڼه يې هم چاپ کړم ، نو مي ټول متفرقه مسایل بیا سره راټول او دادی د کتاب په بڼه مي ستاسي تر لاسو پوري دروړسول .

په دغه مسایلو کي مي ډېره هڅه کړې ده او د مسئلې دقیق او منل سوی صورت مي را اخیستی دی ، مختلف تفاسیر ، صحیح احادیث او دفقهي مسایلو معتمد کتابونه مي په ډېر دقت مطالعه کړي دي ، مسئله مي ورڅخه را ایستلې ده او د ماخذونو نومونه مي يې هم په لمن لیک کي ورسره یاد کړي دي حتی کومي مکتبې چي کوم کتاب چاپ کړی دی دهغې مکتبې نوم مي هم ورسره لیکلی دی ، که چیري چاته په کومه مسئله کي شک او تردید پیدا کېږي ، کولای سي چي د یاد کتاب یادي صفحې ته مراجعه وکړي .

خدای جل جلاله دي وکړي چي زموږ په ټولنه کي چي کوم دشریعت خلاف اعمال ترسره کېږي لکه چي اوس مخ پر ډېرېدو دي ، ددې

کتاب په لوستلو سره له هغه غیر شرعي اعمالو څخه ډډه وکړل سي او پر ځای یې شرعي عمل پر ځان عملي کړي.
په پای کي زه د هغه ښاغلیو څخه د زړه له کومي مننه کوم چي زما سره یې ددې کتاب په چاپولو کي ځانونه ښه ستړي کړي دي هر یو لکه:
- ښاغلی محمد ادریس قیومي چي دغه خواره واره مسایل یې راټول کړل.
- ښاغلی خلیل احمد ځارن چي د کتاب ټولي کمپیوټري غلطۍ یې را صحیح کړې.
- تنکی ارشاد محمود او تنکی سجاد محمود چي کتاب ته یې ښه ډیزاین ورکړی.
دعا ورته کوم چي الله جل جلاله دي په شرعي چوکاټ کي اوږد ژوند ورکړي او د دوی زحمت دي الله جل جلاله په خپل دربار کي قبول کړي.
آمین
په درنښت
مولوي محمد قاسم انقیادي
۱۸ - لړم - ۱۳۹۲

## د غربي طرز کموډ استعمال

۱ـ **مسئله** : نن سبا په ځينو ځايونو کي د غربي طرز کموډونو د جوړولو رواج زيات سوی دی، خصوصاً په نوي طرز بنګلو کي ددې کموډونو شکل داسي جوړ سوی دی چي انسان د خپل حاجت د رفع کولو لپاره ور باندي کښېني، لکه په چوکۍ کښي چي کښېني، يعني دې ته ورته شکل او صورت لري. ليکن رسول الله ﷺ په ولاړي د بولو کولو څخه خلک منع کول. (۱)

پر دغه کموډ باندي د بولو کولو په غرض کښېناستل د رسول الله ﷺ او پخوانيو علماؤ رحمة الله عليهم د طريقي څخه خلاف کار دی، نو ښکاره خبره ده چي دا صورتونه د سنت نبوي ﷺ څخه مخالفه لار ده، خصوصاً د تش رڼو د وهلو لپاره دغسي ځای جوړول نه دي ښه او بې د څه معقول عذر څخه په ولاړي بولي کول فقهاؤ مکروه ګرځولي دي ،البته د يو سخت عذر په وجه په ولاړي بولي کول روايښت لري ، لکه څنګه چي د حديث شريف څخه ثابته ده چي که په ناسته سره د بولو کولو په سبب څاڅکي غورځيدل يا يو بل تاوان ورته رسېدی نو په ولاړي استراحت کاول پروا نه کوي .(۲)

۱- جامع الترمذي، كتاب الطهارة، ص۲، دحديث نمبر ۱۲ ، مكتبه دارالسلام للنشر والتوزيع الرياض - ردالمحتار، كتاب الطهارة مطلب مرجع علي الفعل، توک۱ ، ص۲۵۲، مكتبه رشيديه- فتاوي التاتارخانيه كتاب الطهارة الفصل اول، توک۱ ، ص۲۱۷، د مسئلي نمبر ۸۱، مكتبه حنفيه

۲ - فتاوای تاتارخانيه كتاب الطهارة دمسئلي نمبر ۸۲ص ۲۱۷ ۲لومړی توک مكتبه حنفيه . - عالمګيري ص ۵۰لومړی توک مكتبه رشيديه .- جامع الترمذي كتاب الطهارة دحديث نمبر ۱۳ص ۲مكتبه دارالسلام للنشر والتوزيع والرياض

## شرعي پرده ناروا ګڼل کفر دی

۲_ **مسئله**: شرعي پرده لکه څنګه چې د قرانکریم په آیاتونو ثابته او د شریعت یو مهم حکم دی، له دې کبله که یې څوک بده او ناوړه وګڼي نو دغه عمل کفر دی، ځینې خلک دا فکر کوي چې زموږ په کورنۍ کې پرده نه کول کومه د خطر خبره نه ده څکه زما ښځه، لوڼي او خویندې ډېرې نېکانې او شریفې ښځې دي او زموږ قریبان لکه: د اکا، ماما، خاله او عمه زامن ډېر شریف کسان دي، خو دغه خبره ډېره خطرناکه ده، په دې معامله کې بېباکي کول ډېر غفلت او ګناه ده، څکه په یو حدیث شریف کې راغې چې لېور د مرګ په شان دی،ژباړه: د عقبه بن عامر ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: خبردار و ښځو ته د تلو راتلو څخه ځان وساتئ، نو یو صحابي ﷺ پوښتنه وکړه چې ای د الله رسوله ﷺ د لېور په باره کې څه حکم دی؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: هغه (خو) مرګ دی. (۱)
**یادونه**: اوس نو د حدیث شریف څخه دا معلومه سوه چې ورېندار

.- صحیح البخاري کتاب الوضوء دحدیث نمبر ۲۲۴ صـ ۴۲ مکتبه دارالسلام للنشروالتوزیع الریاض. - سنن ابي داود کتاب الطهارة دحدیث نمبر ۲۳ صـ ۱۷ مکتبه دارالسلام للنشروالتوزیع الریاض. - صحیح المسلم کتاب الطهارة دحدیث نمبر ۶۲۴ صـ ۱۲۸ مکتبه دارالسلام للنشر والتوزیع الریاض. - سنن النسایي کتاب الطهارة دحدیث نمبر ۲۴ صـ ۴ مکتبه دارالسلام للنشروالتوزیع الریاض. - سنن ابن ماجه کتاب الطهارة دحدیث نمبر ۳۰۵ صـ ۵۴ مکتبه دارالسلام للنشروالتوزیع الریاض.

۱- صحیح بخاري، کتاب النکاح باب لایدخلون رجل بامراة، صـ۵۳۵، د حدیث نمبر ۵۲۳۲، مکتبه دارالسلام للنشر والتوزیع الریاض- مشکواة المصابیح کتاب النکاح باب النظر الي المخطوبة وبیان العورات، توک۲، صـ۱۸۳، د حدیث نمبر ۳۱۰۲، مکتبه البشراي

باید داسي د لېور «د ښځي د خاوند دوروړه» څخه لېري واوسي لکه د مرګه څخه چي لیري اوسي.

## د سر په وېښتانو کي د رسول الله ﷺ طریقه

۳_ **مسئله**: د رسول الله ﷺ عادت د څڼو پرېښوول ؤ خو رسول الله ﷺ به کله خپلي څڼي تر غوږونو پوري، کله به یې تر غاړي پوري او کله به یې تر اوږو پوري پرېښوولې، څکه اول ډول ته «وفره»، دوهم ډول ته«لمه»او دریم ډول ته «جمه» ویل کیږي. (۱)

حضرت انس ﷺ وایي چي د رسول الله ﷺ د سر وېښتان به د غوږونو تر نیمایي پوري وه،خو داسي معلومیږي چي اکثره وخت به د رسول الله ﷺ وېښتان د غوږونو څخه لاندي او د اوږو څخه به لوړه. رسول الله ﷺ اول سیده وېښتان پرېښوول او وروسته یې بیا دخپل سر د وېښتانو په مابین کي لار پرېښوول. (۲)

---

۱- مشکواة المصابیح، کتاب اللباس باب الترجل، توک۲، صـ۵۲۹، د حدیث نمبر ۴۴۶۰، مکتبه البشراي- مرقات المفاتیح، کتاب اللباس باب الترجل، توک۴، صـ۴۷، مکتبه رشیدیه- سنن ابوداود، باب الترجل صـ۸۲۷، د حدیث نمبر۴۱۸۷، مکتبه دارالسلام للنشر والتوزیع الریاض- بذل المجهود، کتاب الترجل توک۹، جزء السابع العشر، صـ۲۶، د حدیث نمبر۴۱۸۷، مکتبه دارالکتب العلمیه بیروت لبنان.

۲- سنن ابوداود کتاب الترجل صـ۸۲۷،د حدیث نمبر۴۱۸۸، مکتبه دارالسلام للنشر والتوزیع الریاض-بذل المجهود کتابالترجل، توک۱۰، الجزء السابع عشر، صـ۲۷، د حدیث نمبر۴۱۸۸، مکتبه دارالکتب العلمیه بیروت لبنان- عون المعبود، کتاب الترجل باب ماجاء في الفرق، توک۱۲، الجزء الحادي عشر، صـ۱۴۳، د حدیث نمبر۴۱۸۴، مکتبه قدیمي کتب خانه

## د ولايت اثبات

۴_ **مسئله**: موږ بايد په دې پوه سو چې په انسان کې ظاهري کمالات سته لکه د قران شريف، حديث شريفو او د اهل سنت و الجماعت د اجماع سره برابر صحيح عقايد درلودل او د نيکو اعمالو لکه فرايضو، واجباتو، سنتو او مستحباتو ادا کول او د حرامو، مکروه، مشتبه کارونو او بدعتونو (نوی کار په دين کې پيدا کول) څخه پرهيز کول دي، دغه رقم په انسان کې نور باطني کمالات هم سته، څکه چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې د انسان په بدن کې د غوښې يوه ټوټه ده نو که چيرې دغه ټوټه اصلاح او پاکه سي نو ټول بدن صالح او پاکيږي او که چيرې هغه ټوټه فاسده اوخرابه سي نو ټول بدن فاسد او خرابيږي او هغه ټوټه د غوښې زړه دی. (۱)

## ربا (سـود)

۵_ **مسئله**: ربا په لغت کې زيادت ته وايي او د فقهاؤ په اصطلاح کې ربا عبارت ده د زيادت څخه په يو د بدلينو کې په مبادله د مال په مال سره چې د زيادت په مقابل کې يې عوض نه وي او په عقد کې شرط سوی وي. (۲)

---

۱- صحيح بخاري شريف، ټوک۱، ص۱۳، مکتبه غفاريه

۲- بحرالرائق، کتاب البيع، ټوک۶، ص۲۰۷، مکتبه رشيديه- مختصر القدوري، کتاب البيوع باب الربا ص۲۸۷، مکتبه البشراي- جوهرة النيرة، باب الربوا، جزء اول، ص۲۷۳، مکتبه مير محمد کتب خانه- فتاوي هنديه، کتاب البيوع الفصل السادس في تفسير الربا واحکامه، ټوک۳، ص۱۱۷، مکتبه رشيديه

زیادت حقیقتاً وي او که حکماً ، په قید د حکماً سره نسیه (پور) ته هم شاملیږي. ربا حرامه ده په قول د الله ﷻ ، ژباړه: الله ﷻ بیع روا او سود یې حرام کړی دی. (۱)

همدارنګه په احادیثو کې سود حرام بلل سوی دی، ځکه رسول اکرم ﷺ سود د ېر بد ګڼلی دی. حضرت ابن مسعود ﷛ روایت کوي: ژباړه: حضرت رسول اکرم ﷺ د سود پر خورونکي، د سود پر ورکوونکي، د سود پر شاهد او لیکونکي باندې لعنت ویلی دی. (۲)

## د ربا (سود) د حرمت علت

۶_ **مسئله** : د احنافو (امام اعظم، امام ابویوسف، امام محمد رحمة الله علیهم) په نزد د ربا د حرمت علت قدر او جنس دی، نظر په مشهور حدیث چې نبي کریم ﷺ فرمایلي دي: خرڅ کړئ غنم په غنمو، مثل په مثل ، لاس په لاس او زیادت سود دی. (۳)

نبي کریم ﷺ په دې ترتیب شپږ شیان وشمېرل: غنم، اوربشې خرما، مالګه، سره زر او سپین زر، ذکر سوی حدیث شریف په بیع کې

---

۱ـ واحل الله البیع وحرم الربا. سورة البقره آیت ۲۷۵- مختصر القدوري، کتاب البیوع باب الربا صـ ۲۸۷، مکتبه البشراي.

۲ـ لعن رسول الله صلي الله علیه وسلم اکل الربا وموکله و شاهده وکاتبه، بحر العلوم صـ ۱۸۳، ټوک ۱- جامع الترمذي باب ماجاء في اکل الربوا صـ ۳۶۰، ټوک ۱، مکتبه رحمانیه- فتح الباري شرح البخاري صـ ۳۹۴، ټوک ۴، مکتبه رشیدیه- جوهرة النیرة باب الربا صـ ۲۷۳، جزء الاول مکتبه میرمحمد کتب خانه- مختصر القدوري کتاب البیوع باب الربا صـ ۲۸۷، مکتبه البشراي.

۳ـ الحنطة بالحنطة مثلاً بمثل یداً بید والفضل ربا مرقات شرح المشکواة، ټوک ۶، صـ ۵۲، مکتبه رشیدیه- مختصر القدوري، کتاب البیوع باب الربا صـ ۲۸۷، مکتبه البشراي- فتاوي هندیة کتاب البیوع الفصل السادس في تفسیر الربا واحکامه، ټوک ۳، صـ ۱۱۷، مکتبه رشیدیه

مماثلت (يو شی والی) او قبض (تسليم کول) شرط کړی دی، نو کله چي مماثلت وي او زيادت راسي زيادت يې حرام دی، د دوو شيانو تر منځ مماثلت د هغو شيانو په ذات او معنی پوري اړه لري ، په ذکر سوو شيانو کي د ذات مساوات (برابروالي) په قدر او د معنی مساوات په جنس (يووالی) سره معلوميږي او ددې مساوات په واسطه زيادت ښکاره کيږي، چي هغه زيادت سود دی، په کيلي شيانو کي هغه اندازه چي ربا پکښي ثابتيږي نيمه «کاسه» تعين سوې ده او د نيمايي څخه په زيات کي هم ربا موجوديږي، ځکه چي په شريعت کي له نيمي کاسې څخه لږه اندازه معتبره سوې نه ده، بناء پر دې که د نيمايي کاسې څخه لږ شی په زيادت سره خرڅ کړل سي جواز لري او ربا نه ګڼل کيږي، لکه يو موټ غنم په دوه متو غنمو چي خرڅ سي روا دي او ربا نه ګڼل کيږي. (١)

## د مسجدونو او پلونو په جوړولو کي زکات استعمالول

۷_ **مسئله** : د زکات يو څو خاص مصرفونه ( ځايونه )دي چي په خپله په قرآن شريف کي بيان کړل سوي او يوازي په هغه امورو کښي لګول کيږي، مثلاً: فقير، مسکين، عامل (زکات

١ حداية کتاب البيوع، توک٣، ص٧٩، مکتبه رشيديه- مختصر القدوري کتاب البيوع باب الربا ص٢٨٧ مکتبه البشراي- فتاوي عالمگيري، کتاب البيوع الفصل السادس في تفسير الربا واحکامه، توک٣، ص١١٧، مکتبه رشيديه

راتلوونکي)، پوروړي، مجاهد، مسافر او مکاتب (مريي). (۱)
داحنافو په نزد په ټولو صورتونو کي ضروري ده چي کوم چاته چي زکات ورکړل سي هغه دي خاوند وګرځول سي، د مسجديا پلونو په جوړولو کي که چيري دزکات پيسې استعمال سي نو يوازي دغه پيسې استعمال سوې، يو خاص سړی يې خاوند ونه ګرځېدی ځکه ضروري ده چي داسي شيان په نورو پيسو جوړکړل سي اودزکات پيسې دي په داسي ځايونوکي استعمال نه سي.
ژباړه: دزکات په پيسو مسجد، پل، سرای، سرکونه، وياله جوړول، حج، جهاد کي مصرفول او هم د مړي کفن او پورونه اداکول او په داسي نورو شيانو کي يې هيڅ نه سي لګولای چي په هغه کي د خاوند ګرځولو صورت نه وي. (۲)

## په کاغذ سره استنجا کول

۸_ **مسئله**: نن سبا خصوصاً په لويو لويو ښارونو کي دا رواج مخ پر زياتېدو دی چي ځيني خلک د استنجا کولو وروسته کاغذ استعمالوي، علماؤ کرامو رحمة الله عليهم دې کار ته مکروه ويلی دی دا

۱ سورة التوبه، ايت ۶۰- مختصر القدوري کتاب الزکاة باب من يجوز دفع الصدقة اليه ص۱۷۹، مکتبه البشراي- جوهرة النيرة، کتاب الزکاة باب من يجوز دفع الصدقة، الجزء اول ص۱۴۲، مکتبه ميرمحمد کتب خانه- فتح القدير، کتاب الزکاة باب من يجوز دفع الصدقة اليه ومن لايجوز، توک۲، ص۲۴۲، مکتبه رشيديه.
۲- فتاوي هندية، کتاب الزکاة باب في المصارف، توک۱، ص۱۸۸، مکتبه رشيديه- جوهرة النيرة، کتاب الزکاة باب دفع الصدقة، جزء اول ص۱۴۴، مکتبه ميرمحمد کتب خانه- مختصر القدوري، کتاب الزکاة باب من يجوز دفع الصدقة اليه ص۱۷۹، مکتبه البشراي- شرح القدوري، مسماء باللباب زکاة زروع و الثمار باب من يجوز دفع الصدقة اليه ص۱۴۲، مکتبه ميرمحمد کتب خانه

ځکه چې کاغذ يو ډېر قدرمن شی دی، د اسلامي علومو پر مختلفو لپاره کاغذ ډېر لوی کار کړی دی، ځکه د کاغذ ډېر عزت کول په کار دي او کوښښ په کار دی چې کاغذ د کښېنته او معمولي کارونو لپاره استعمال نه سي او د مرداريو ځخه پاک وساتل سي، دا وجه ده چې فقهاؤ يې استعمال مکروه بللی دی البته د مجبوری په حال کې روا ښودلې دی، علامه شامي رحمه الله د دې مکروه والي وجه داسې ليکي: ژباړه: (ځکه چې دا ښوی دی) چې مرداري نوره ورسره خورېږي، (قيمتي دی) ځکه د احترام وړ دی چې د علم ليکلو ذريعه ده، دا يوازې د فقهاؤ نظر نه دی بلکې عقل هم دا وايي، تاسې فکر وکړئ چې يو انسان چې پزه پاکوي نو د خپل کميس په لمن به يې ځکه نه پاکوي چې دده په نظر کميس د قدر وړ شی دی ځکه چې د کالو په پاکوالي انسان ښه معلومېږي، کاغذ هم د انساني علومو لپاره د يو کميس حيثيت لري چې ښايست يې په زياتېږي نو ځکه د کاغذ احترام په کار دی، البته د داسې کاغذ استعمال پروانه لري چې خاص ددې مقصد لپاره جوړ سوی وي او ليکنه نه سي ورباندې کېدلای لکه اوسنی تشناب کاغذ چې نه ښوی دی اونه ورباندې ليکنه کېدای سي. (١)

١- ردالمحتار، ټوک١، ص٢١٥- فتاوای التاتارخانيه، کتاب الطهاره، ټوک١، ص٢١۴، د مسئلې نمبر٧٧ مکتبه حنفيه

## د دوشنبې او پنجشنبې روژه

۹_ **مسئله**: د هري اونۍ په بهير کي د دوشنبې او پنجشنبې په ورځ روژه نيول زيات ثواب لري څکه رسول الله ﷺ فرمايلي دي: د دوشنبې او پنجشنبې په ورځو کي د انسانانو عملونه و الله ﷻ ته وړاندي کيږي نو زه دا خوښوم چي زما عملونه په داسي وخت کي وړاندي سي چي زه روژاتی يم، د رسول الله ﷺ څخه د دوشنبې د ورځي د روژې پوښتنه وسوه، رسول الله وفرمايل: دا هغه ورځ ده چي زه پکښې زيږېدلی او پيغمبر سوی يم.[۱]

## د اوبو راکښلو په ماشين څاه پاکول

۱۰_ **مسئله**: په ځينو حالاتو کي د ټوله څاه د اوبو راکښلو ضرورت وي، په ځينو حالاتو کي څو مخصوصي سلواغې مثلاً شل، دېرش يا څلوېښت سلواغې اوبه راکښل کيږي او په دغه ټولو صورتونو کي هم حکم دادی چي اول نجاست راوکښل سي، دغه ډول که د پوره څاه اوبه راکښل ممکن نه وي نو د عامو څاهانو د ژورتيا په اندازه سره دي هغومره سلواغې اوبه راوکښل سي، فقهاؤ د خپلو حالاتو په لحاظ ددې اندازه (۲۰۰) سلواغې کړې ده او حضرت

۱مشکواة المصابيح، کتاب الصوم، توک۲، ص۳۷۳، د حديث نمبر۲۰۵۶، مکتبه البشراي- مرقاة المفاتيح، کتاب الصوم باب صيام التطوع، توک۴، ص۵۵۵، د حديث نمبر۲۰۵۶، مکتبه رشيديه- شرح طيبي کتاب الصوم باب صيام التطوع، توک۴، ص۲۲۵، د حديث نمبر۲۰۵۶، مکتبه دارالکتب العلميه بيروت لبنان- تحفة الاحوذي کتاب الصوم ماجاء في صوم الاثنين والخميس، توک۳، ص۵۱۵، د حديث نمبر۷۴۷، مکتبه قديمي کتب خانه

مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله د اکثرو څاهانو په لحاظ (۲۰۰) سلواغې ټاکلي دي، په دې ټولو صورتونو کي اصل مقصد سلواغې نه دي بلکې د اوبو هغه مقدار دی چې راکښل يې په کار دي نو که چيري د نجاست را ايستلو وروسته د اوبو د راکښلو لپاره د ماشين له لاري دومره مقدار اوبه راوکښل سي نو روا دي بلکې په نسبت د سلواغې ښه دي ځکه چي د ماشين له لاري د څاه څخه اوبه راکښل ډېر اسان دي. (۱)

## په غسل او اودس کي د مصنوعي (لاسي) وېښتانو حکم

۱۱_ **مسئله**: د وېښتانو مصنوعي چوټيان چي زموږ په زمانه کي يې ښځي ډېر استعمالوي او رسول الله ﷺ منع ورڅخه کړې ده، که چيري بيا هم وترل سي سوال به داوي چي په اودس او غسل کي به ددې څه حکم وي؟ ځکه چي دا وېښتان ددې د بدن برخه نه ده او نه د کومي اړتيا په وجه لګول سوي دي او نه ددې ايسته کول دومره ګران کار دی، نو دا د يو بهرني شي په حيثيت کي دي، په غسل کي هم د ښځو لپاره د وېښتانو ښخو ته اوبه رسول ضروري دي، وېښتان مينځل ضروري نه دي، په اوداسه کي يې هم دغه حيثيت دی، مثلاً که چيري يوه ښځه دا ډول د سر مسح وکړي چي يوازي د

---

۱- هدايه، کتاب الطهارات باب الماء الذي يجوز به الوضوء وما لايجوز به، ټوک۱، ص۶۲، مکتبه البشراي- فقه الاسلامي وادلته باب الاول الطهارات، ټوک۱، ص۲۹۱، مکتبه فريديه- فتاوي التاتارخانيه کتاب الطهارة، ټوک۱، ص۳۲۸، د مسئلي نمبر۵۹۸، مکتبه حنفيه.

مصنوعي وېښتانو په حصه د سر مسح وي او په اصلي وېښتانو باندي لږ تر لږه څلورمه حصه د سر مقدار لاهم مسح نه وسي نو دا به کافي نه وي، دې ښځي ته په خپل اصلي وېښتانو باندي مسح کول په کار ده. (١)

## د روژې په اړه شرعي معلومات

١٢_ **مسئله**: د روژې مفهوم: روژه د اسلام له پنځو بناوو څخه دريم حکم دی چي په عربي ژبه کي صوم ورته وايي او معنی يې منع کول او چوپ اوسېدل دي، د ځينو مفسرينو رحمه الله عليهم د څېړنو سره سم په قران کريم کي دغه عبادت په ځينو ځايونو کي د صبر په معني هم راغلی دی چي مطلب يې د نفس ثابت قدمي ده، لکه څنګه چي د البقرې د سورة په (۴۵) آيت کي د صبر لفظ علامه الوسي بغدادي چي د روح المعاني مصنف دی د روژې په معني کړی دی. (٢)

صبر په لغت کي د ګناه څخه د خپل ځان بندولو ته وايي، که چيري يو انسان غواړي چي د روژې په مياشت کي خپل ځان له ګناه څخه بند کړي نو خوراک او څښاک دي لږ کوي څکه چي په لږ خوراک او څښاک د انسان شهوت کميږي او د ګناهونو سرچينه شهوت دی او د شهوت د پروالی د خوراک او څښاک څخه دی نو د مناسبت وجه

١ حدايه كتاب الطهارات ټوک١، ص٢٢، مکتبه البشراي- فقه الاسلامي وادلته الفصل الرابع ص٣٧٢، ټوک١، مکتبه فريديه- فتاوي التاتارخانيه كتاب الطهارة الفصل الاول د مسئلې نمبر ٢٠، ص٢٠١، ټوک١ مکتبه حنفيه
٢ تفسير روح المعاني، ټوک١، ص٣٢٧، مکتبه رشيديه

يې همداده چې صبر يعني روژه. (۱)

د پورتنيو مضامينو څخه داسې معلوميږي چې روژه د شريعت په اصطلاح کې د نفس، هوا، هوس او خواهشاتو څخه د خپل ځان ساتل دي. په عمومي ډول نفساني خواهشات پر درې ډوله دي:

۱- خوراک، ۲-څښناک، ۳- جنسي اړيکې. دغه شيان تر ټاکلې مودې پورې (د صبح صادق څخه تر لمر لوېدو پورې) د نيت سره دوام کوي، خو په حقيقت کې ددغو ظاهري خواهشاتو سره د باطني خواهشاتو او بديو څخه د زړه او ژبې ساتل هم د خاصو خلکو په عقيده د روژې په حقيقت کې داخل دي د غيبت، درواغ، چغلي، بهتان، بشکنځل، جنګ، جګړې او نامحرمو کسانو ته د کتلو څخه هم بايد ځوک ځان وساتي، لکه څنګه چې حضرت رسول اکرم ﷺ فرمايلي دي: که چيرې ستاسې سره څوک جنګ کوي يا بدې خبرې درته کوي نو تاسې ورته ووايا ست چې زما روژه ده. (۲)

## په روژه کې سهولت

۱۲_ **مسئله**: ۱- د اسلام د دين مخکې چې کوم مذهبونه وه، په هغوی کې روژه د هغه مذهب پر يوه خاصه ډله فرض وه، مثلاً په هندوانو کې يوازې پر (برهمن) فرض وه، برهمن هغه ډله ده چې د غوبنو

۱ تفسير قرطبي، توک۱، ص۳۰۹، مکتبه رشيديه- بدائع والصنائع کتاب الصوم، توک۲، ص۲۱۳، مکتبه رشيديه

۲- صحيح بخاري شريف ص۲۵۴، توک مکتبه غفاريه- عالمګيري کتاب الصوم باب الاول ص۱۹۲، توک۱، مکتبه رشيديه

خوراک حرام بولي. په فارسيانو کي يوازي پر پېشوا فرض وه او په يونانيانو کي يوازي پر ښځو فرض وه، خو دې کار ته عدل او انصاف نه ويل کيږي. د اسلام په دين کي د پېشوا او غير پېشوا، نر او ښځي تر منځ هيڅ ډول فرق نسته، ټولو انسانانو ته عام حکم سوی دی، لکه څنګه چې الله ﷻ په قران شريف کي داسي فرمايلي دي ژباړه: هر څوک چي له تاسو مکلفينو څخه دا مياشت ووينې نو پر تاسي روژه نيول لازمه ده. (١)

٢- د اسلام د دين څخه پرته په نورو ټولو مذهبونو کي په عمومي ډول لمريز کال معتبر ؤ او روژه په همدې کال کي نيول کېده او د اسلامي روژې ټوله تاريخونه په قمري کال دي، نو هم دا وجه ده چي د يوه موسم څخه په بل موسم کي روژه راځي.

٣- په نورو مذهبونو کي هغه څوک چي په روژه مکلف ؤ هغه به حتماً روژه نيوله حتي په تورات کي هم دا راغلي وه چي که يو څوک د کوم سبب له کبله روژه ونه نيوله هغه دي قتل (مړ) سي، څکه پر مسافر هم روژه فرض وه، خو د اسلام په دين کي کوچنيان، معذور، مسافر، ښځي د حيض او نفاس په حالت کي او هغه بوډاګان چي د روژې نيولو توان ونه لري ور څخه ايستل سويدي، خو ناروغ مسافر او معذور به د خپل عذر، سفر او ناروغۍ د ليري کېدو وروسته روژه د خوړل سوو ورځو په اندازه نيسي او که يې نيولو

---

١- د البقري سورة، آيت ١٨٥.

طاقت نه درلودی نو مسکینانو ته دي د هري ورځي په بدل کي فديه ورکړي. (١)

## د روژې د فضيلت په اړه نبوي مرغلري

۱۴ـ مسئله: ۱- دابوهريرة ﷺ څخه روايت دی، دی وايي چي نبي کريم ﷺ فرمايلي دي ژباړه: کله چي د روژې مياشت داخله سي نو د اسمانو دروازې خلاصي سي. په بل روايت کي راغلي دي چي د جنتو دروازې خلاصي سي او د جهنم دروازې وتړل سي، شيطانان په زنځيرانو وتړل سي. په بل روايت کي راغلي دي چي د رحمت دروازې خلاصي سي. (٢)

۲- د سهل دزوی سعد ﷺ څخه روايت دی، دی وايي: رسول الله فرمايلي دي ژباړه: د جنت اته دروازې دي، د يوې دروازې نوم يې ريان دی پر دغه دروازه بېله روژه نيوونکي څخه بل څوک نسي داخلېدلای. (٣)

۳- د ابوهريرة ﷺ څخه روايت دی، دی وايي: نبي کريم ﷺ وفرمايل: د ادم ﷺ د زوی د هر ښه عمل عوض يو په لسه بيا تر اووسوو پوري ورکول کيږي خو د روژې په اړه الله پاک ﷻ فرمايلي دي:

۱- راند، ټوک۱، ص۳۷۲- بحرالرائق شرح الکنز الدقائق کتاب الصوم ټوک۲، ص۲۴۸، مکتبه رشيديه- فتاوي هنديه کتاب الصوم ټوک۱، ص۱۹۵، مکتبه رشيديه
۲- بخاري شريف، ټوک۱، ص۲۵۵، مکتبه غفاريه- مشکواة، ټوک۱، ص۳۲۷، مکتبه البشراي- المصنف لابن ابي شيبه کتاب الصوم، ټوک۲، ص۲۶، مکتبه المجلس العلمي بيروت لبنان
۳- بخاري شريف، ټوک۱، ص۲۵۴، مکتبه غفاريه- مشکواة، ټوک۱، ص۳۲۸، مکتبه البشراي

ژباړه: روژه خاصه څانګړتیا لري ځکه چي دا روژه زما لپاره ده او زه یې اجر ورکوم ځکه روژه نیوونکي زما د رضا لپاره خپلي نفساني غوښتني، خوراک او څښاک پرېږي ایښې دي نو روژه نیوونکي ته دوې خوشحالۍ ستهٔ:

الف- د روژه مات پر وخت.

ب- په اخرت کي دخپل رب ﷻ سره دملاقات پروخت ، د خداي ﷻ په نزد د روژه نیوونکي د خولې بوی د مشکو تر بوی ښه او بهتر دی، روژه نیوونکي ته نه ښايي چي بدي خبري، ښکنځل، غیبت، چغلي، درواغ، فسق، فجور، دښمني، حسد او بغض وکړي. (١)

۴- د ابوهریرة ﷺ څخه روایت دی چي نبي کریم ﷺ وفرمایل:

ژباړه: تاسي ته چي د روژې مبارکي میاشت راغله خدای پاک ﷻ ددې میاشتي روژه نیول پر تاسي فرض کړېده، د اسمان دروازې په دې میاشت کي خلاصیږي، د دوږخ دروازې تړل کیږي او د شیطانانو ډلي تړل کیږي، په همدې میاشت کي یوه شپه ده چي تر زرو میاشتو غوره ده د هر چاچي ددغي شپې ښېګڼي او ثوابونه په برخه سول په تحقیق سره یې د هر خیر په برخه سو. (٢)

داخبره هم بايدپه يادولروچي دروژې نيول پر نه خوراک، نه څښاک، او نه جماع پاته نه ده بلکي د ټولو اندامونو په روژه وي، لکه:

---

١- مشکوا شریف په حواله د بخاري او مسلم شریف، ټوک١، ص٢٢٩، مکتبه البشراي.
٢- مشکواة شریف، ټوک١، ص٢٢٠، مکتبه البشراي

ـنس: ناوړه کار ته به یې نه غځوو.
پښې: د ناوړو کارونو لپاره به تلک نه پرکوو.
سترګې: هغه شیانو ته چې کتل ورته ناروا وي ونه ګورو.
غوږونه: هغه خبرې به نه په اورو چې هغه منع دي.
ژبه: له چټیاتو، درواغو ویلو، غیبت، بهتان، ښکنځلو او د یو کس د تهدیدولو څخه به بنده وي.
د شپې لخوا حتي تر خپله وسه پورې به د الله ﷻ ذکر او د قران پاک وظیفه او نفل لمونځ به کوي بیا به بیدیږي.
پنځه وخته لمونځ به په جماعت سره کوي، نو که داسې وسي دې ته حقیقي روژه وایي او که د شپې لخوا په نورو ناروا کارونو اخته وي او د سهار لمونځ په جماعت نه کوي بلکې تر غرمې بیده وي، څه چې پر خوله ورځي هغه وایي، ددې شخص فقط فرض اداء سول له ثوابه محروم (بې برخې) او د عذاب ببره هم ورسره سته، لکه چې حضرت عمر ﷺ فرمایي: روژه یوازې دې ته نه وایي چې خوراک او څښاک نه وي بلکې درواغ ویل، ناوړه کارونه کول او د قسمونو څخه به هم ډډه کوي.(١)
د روژې درې لسیزې:
- د روژې د میاشتې لومړۍ لس ورځې د رحمت دي.

١- کنز العمال، توکه۸، ص۲۸۰، مکتبه رحمانیه

- د روژې د مياشتي دوهمي لس ورځي د مغفرت دي.
- دروژې دمياشتي دريمي لس ورځي داور څخه دنجات لپاره دي.

## د روژې ډولونه

۱۵_ **مسئله**: ۱- فرض: د رمضان د مياشتي روژه فرض ده، هغه که اداء وي که قضاء. [۱]

۲- واجب: د رمضان د مياشتي كفاره، د ظهار كفاره، د خطا دقتل كفاره، د ښكار دقتل كفاره، دقسم كفاره، د نذر روژه، د اعتكاف روژه او كله چي نفلي روژه فاسده او يا د عذر په سبب ماته سي نو ددغه ډول روژې نيول واجب دي. [۲]

۳- سنت: د عاشورا د ورځي روژه نيول سنت ده چي د نهم ورځ هم ور سره ونيسي. [۳]

۴- مستحب: د هري مياشتي درې ورځي روژه نيول مستحب ده (د مياشتي ۱۳-۱۴-۱۵ ورځي) هره روژه چي په حديث شريف سره ثابته

---

۱- خزانة الفقه، صـ۸۹- فقه الاسلامي وادلته، ټوک۳،صـ۱۶۳۰، مكتبه فريديه- فقه علي المذهب الاربعه ټوک۱، صـ۴۴۰، مكتبه وحيدي كتب خانه- حاشيه الطحاوي علي مراقي الفلاح شرح نورالايضاح، صـ۵۲۵، مكتبه نعمانيه- فتاوي هندية كتاب الصوم اول باب، ټوک۱، صـ۱۹۳، مكتبه رشيديه

۲-فقه الاسلامي، ټوک۳، صـ۱۶۲۲، مكتبه فريديه- بحرالرائق، ټوک۲، صـ۲۴۹، مكتبه رشيديه- هندية ټوک۱، صـ۲۱۵، مكتبه رشيديه- حاشيه الطحاوي علي مراقي الفلاح شرح نورالايضاح، صـ۵۲۶، مكتبه نعمانيه- بدائع والصنائع للكاساني كتاب الصوم، ټوک۲،صـ۲۰۹، مكتبه رشيديه.

۳- بحرالرائق، ټوک۲، صـ۴۴۹، مكتبه رشيديه- فقه الاسلامي، ټوک۳، صـ۱۶۳۰، مكتبه فريديه- حاشيه الطحاوي علي مراقي الفلاح شرح نورالايضاح، صـ۵۲۶، مكتبه نعمانيه- فتاوي هندية، كتاب الصوم، ټوک۱، صـ۲۰۲، مكتبه رشيديه- بدائع والصنائع، كتاب الصوم، ټوک۲، صـ۲۱۴-۲۱۵-۲۱۸، مكتبه رشيديه

سوي ده لکه د داود ﷺ روژه چي يوه ورځ به يې روژه نيول او بله ورځ به يې خوړل. (١)

٥- نفلي روژه: هغه روژه چي په شريعت کي مکروه نه وي او په خاصه ورځ پوري هم تړلې نه وي نفلي روژه ده. (٢)

٦- مکروه تنزيهي: يوازي د عاشورا د ورځي روژه نيول چي د نهم د ورځي روژه ورسره ونه نيسي مکروه تنزيهي روژه ورته ويل کيږي. (٣)

٧- مکروه تحريمي: د کوچني او لوی اخترونو په ورځو کي، د تشريق په ورځو کي (ځکه رسول الله ﷺ فرمايي چي دغه ورځي د خوراک، څښاک او د خپلي کوروالاسره د جماع (نزديکت) دي نو که چا په دغه ورځ روژه نيولې وي مستحب داده چي ماته يې کړي)، يوازي د شنبې په ورځ کي او د نوروز په ورځ روژه نيول مکروه تحريمي ده. (٤)

---

١- بحرالرائق، ټوک٢، ص٤٥٠، مکتبه رشيديه- فقه الاسلامي وادلته، ټوک٣، ص١٦٣٠، مکتبه فريديه- حاشيه الطحاوي علي مراقي الفلاح شرح نورالايضاح، ص٥٢٦، مکتبه نعمانيه- فتاوي هندية، کتاب الصوم، ټوک١، ص٢٠١، مکتبه رشيديه- بدائع والصنائع، کتاب الصوم، ټوک٢، ص٢١٢-٢١٥-٢١٨، مکتبه رشيديه

٢- بحرالرائق، ټوک٢، ص٤٥٠- فقه الاسلامي وادلته، ټوک٣، ص١٦٣٠، مکتبه فريديه- بدائع والصنائع، کتاب الصوم، ټوک٢، ص٢١٢-٢١٥-٢١٨، مکتبه رشيديه

٣- بحرالرائق، ټوک٢، ص٤٥٠، مکتبه رشيديه- فقه الاسلامي، ټوک٣، ص١٦٣٢، مکتبه فريديه- بدائع والصنائع، کتاب الصوم، ټوک٢، ص٢١٢-٢١٥-٢١٨، مکتبه رشيديه

٤- بحرالرائق، ټوک٢، ص٤٥٠، مکتبه رشيديه- فقه الاسلامي، ټوک٣، ص١٦٣٢، مکتبه فريديه- فتاوي هندية، کتاب الصوم، ټوک١، ص٢٠١، مکتبه رشيديه- بدائع والصنائع، کتاب الصوم، ټوک٢، ص٢١٢-٢١٥-٢١٨، مکتبه رشيديه.

**پاملرنه**: که څوک پر خپل ځان يوه ځانګړي ورځ يا هفته روژه نذر کړي نو د شپې به نيت کوي او که يې هبر سو نو سهار دي نيت وکړي او سهار تر پوخ ځابنت پوري صحيح دي. ([1])

۸- قضايي روژه: د کفارې روژه، هغه نذري روژه چې وخت ورته ټاکل سوی نه وي او هغه نفلي روژه چې فاسده سوې وي، د غه ډول روژې د شپې لخوا نيت غواړي او په نيت کې به تعين (وخت به معلوم) کوي. ([2])

خويه خپله پښتلمی په دې نيت چې سبا به روژه نيسم د روژې نيت دی. ([3])

د روژې نيت: نيت په اصل کې د زړه مقصد او ارادې ته وايي خو د هري ورځي لپاره يې په خوله ويل سنت دي. ([4])

خو د نيت په اړه رسول الله ﷺ فرمايلي دي د هغه چا لپاره عمل نسته چې د هغه لپاره نيت نه وي. ([5])

۱ حداية، ټوک۱، صـ۱۹۳، مکتبه رشيديه- مراقي الفلاح، صـ۶۳۴- بدائع والصنائع، کتاب الصوم، ټوک۲، صـ۲۲۹، مکتبه رشيديه

۲- بحرالرائق، ټوک۲، صـ۲۶۲، مکتبه رشيديه-بدائع والصنائع، کتاب الصوم، ټوک۲، صـ۲۳۲، مکتبه رشيديه

۳- فتاوي هندية، ټوک۱، صـ۱۹۵، مکتبه رشيديه

۴- فتاوي هندية، په حواله د نهر الفايق، ټوک۱، صـ۱۹۵، مکتبه رشيديه- بدائع والصنائع، کتاب الصوم، ټوک۲، صـ۲۱۵ او صـ۲۲۷، مکتبه رشيديه

۵- بدائع والصنائع، کتاب الصوم کيفية النيته، ټوک۲، صـ۲۲۶، مکتبه رشيديه.

## هغه څه چي پوازي د روژې قضاء لازموي

۱۶ـ **مسئله**: ۱- په زوره سره خوړل، څښل او جماع کول د روژې قضاء لازموي.(۱)

۲- خوړل يا څښل په خطا سره، د روژې قضاء لازموي. (۲)

۳- که چيري يو چا خوله يا پزه پرېولل او به خني تېري سوې، که چيري يې روژه په ياد وه نو د روژې قضاء باندي لازميږي او که يې په ياد نه وه نو قضاء يې نسته او روژه يې نه فاسدېږي. (۳)

۴- که چيري يو چا ډبره، د خورما دانه، لوټه، پنبه، وابنه او يا کاغذ تېرکړ نو قضاء باندي لازميږي خو کفاره نه لري. (۴)

۵- که د يو چا په غاښنو کي د نخود په اندازه يو شی ؤ او تېر يې کړ نو روژه يې فاسدېږي او قضاء باندي لازميږي. (۵)

۶- که چيري يو څوک پېشلمي وکړي او بيا داسي فکر کوي چي سپېدې نه دي راختلي او خوراک وکړي خو سپېدې راختلي وي، يا دا چي د روژه مات پر وخت داسي فکر وکړي چي لمر لوېدلی دی روژه ماته کړي، خو لمر نه وي لوېدلي نو پر دغه سړي باندي په دوارو حالاتو کي د دغي روژې قضاء لازميږي.

۱- عالمګيري په حواله د قاضي خان، ټوک۱، ص۲۰۲، مکتبه رشيديه- فتاوي تاتارخانيه، ټوک۲، ص۲۹۰، مکتبه محموديه

۲- فتاوي هندية په حواله د قاضي خان، ټوک۱، ص۲۰۲، مکتبه رشيديه

۳- فتاوي هندية په حواله د خلاصة الفتاوي، ټوک۱، ص۲۰۲، مکتبه رشيديه

۴- فتاوي هندية، ټوک۱، ص۲۰۲، مکتبه رشيديه

۵- فقه الاسلامي وادلته، ټوک۲، ص۱۷۱۲، مکتبه فريديه

**پاملرنه:** په یاد باید ولرو چې د دغه سړي فکر باید یقین ته نږدې وي او که چیرې شکمن وي او یا زړه نا زړه وي نو کفاره باندې لازمیږي. (۱)

۷- د (ګل سرشویې) خوړل د روژې قضاء لازموي په دې شرط چې ور سره عادت نه وي لکه ځینې ښځې چې یې د حمل په وخت کې خوري. (۲)

۸- که چیرې یو چا د بل چا ناړې تیرې کړې په دې شرط چې خپله ښځه یې نه وي نو د روژې قضاء لازموي. (۳)

۹- که چیرې یو چا وینه وځښل نو روژه یې فاسد یږي او قضاء لازموي. (۴)

۱۰- که چیرې یو څوک پر خپل ورغوي باندې ناړې تو کړې او بیا یې تیرې کړي نو روژه یې فاسد یږي او قضاء لازموي. (۵)

۱۱- که چیرې یو چا په غوږ یا پزه کې دوا واچول او یا یې (هیماله) وکړه نو روژه یې فاسد یږي او قضاء لازموي. (۶)

۱۲- که چیرې یو چا یوه ښځه په شهوت سره مچ کړه، نو روژه یې فاسد یږي او قضاء نه لازموي.

۱۳- حیض یا نفاس چې پېښ سي نو د روژې قضاء لازمیږي. (۷)

۱۴- که چیرې یو چا په هېره سره خوراک، څښاک او یا جماع وکړه

---

۱- خزانة الفقه، ص۸۰.
۲- فتاوي هندية په حواله د فتاوي ظهريه، ټوک۱، ص۲۰۲، مکتبه رشيديه
۳- فتاوي هندية، ټوک۱، ص۲۰۳- فتاوي التاتارخانيه، کتاب الصوم، ټوک۲، ص۲۷۹، مکتبه محموديه
۴- فتاوي هندية په حواله د محيط، ټوک۱، ص۲۰۳، مکتبه رشيديه
۵- فتاوي هندية په حواله د وجيزالکردي، ټوک۱، ص۲۰۳، مکتبه رشيديه
۶- فتاوي هندية، کتاب الصوم، ټوک۱، ص۲۰۴، مکتبه رشيديه
۷- د فتاوي هنديې پر هامش خانيه، ټوک۱، ص۲۰۱، مکتبه رشيديه

او دده ګومان داسي سو چي روژه يې ماته ده نو بيا په قصد سره خوراک او څښاک وکړل نو قضاء وربانديي سته خو کفاره نه لري. (۱)

۱۵- په قصد سره په ډکه خوله سره استفراق (قی) وهل، د روژې قضاء لازموي. (۲)

۱۶- که چيري يو څوک خپل شهوت په خپله د ورنونو په منځ کي رفع کړي نو قضاء باندي لازميږي او کفاره نه لري. (۳)

۱۷- که چيري يو څوک په روژه کي خپل شهوت په لاس کي سوړ کړي(موټ ووهي) نو قضاء لازميږي خو کفاره نه لري. (۴)

۱۸- که چيري يو چا پر بل چا باندي په شهوت سره لاس تېراوه او بيا انزال سو نو قضاء لازموي خو کفاره نه لري. (۵)

۱۹- که چيري يو خاوند خپله ښځه په دې باندي مجبوره کړه چي د روژې په مياشت کي دي د ورځي لخوا جماع ورسره وکړي، که چيري دا کار وکړي، نو پر ښځي باندي يوازي قضاء لازميږي او کفاره نه لري. (۶)

**يادونه**: که چيري يو څوک يو بل روژه نيوونکی په داسي حال کي

۱- فتاوي عالمګيري، کتاب الصوم مسائل متفرقه، ټوک۱، ص۲۰۶، مکتبه رشيديه- مبسوط للسرخسي، کتاب الصوم، ټوک۳، ص۸۶، مکتبه الغفاريه

۲- هداية، ټوک۱، ص۲۰۰، مکتبه رشيديه- فتاوي هندية، کتاب الصوم، ټوک۱، ص۲۰۴، مکتبه رشيديه

۳- هداية، ټوک۱، ص۲۰۲، مکتبه رشيديه- فتاوي عالمګيري، کتاب الصوم، ټوک۱، ص۲۰۵، مکتبه رشبديه

۴- مجموعه الفتاوي، ټوک۱، ص۲۷۲- فتاوي هندية، کتاب الصوم، ټوک۱، ص۲۰۵، مکتبه رشيديه

۵- هداية، ټوک۱، ص۱۹۹، مکتبه رشيديه- د فتاوي هنديې پر هامش فتاوي الخانيه، ټوک۱، ص۲۰۹، مکتبه رشيديه

۶- بحرالرائق، ټوک۲، ص۴۸۳، مکتبه رشيديه- فتاوي عالمګيري، کتاب الصوم، ټوک۱، ص۲۰۴، مکتبه رشيديه

ووینې چې هغه په هېره سره روژه خوري، که خوړونکی ځوان ؤ او د روژې نیولو طاقت یې درلود نو لیدونکي ته لازمه ده چې هغه ته روژه ور په یاد کړي او که چیرې یې ور په یاد نه کړي نو دا کار مکروه تحریمي دی، که چیرې خوړونکی سپین ږیری ؤ او د روژې نیولو طاقت یې نه درلود نو لیدونکی دي روژه نه ور په یادوي. (۱)
څکه رسول الله ﷺ فرمایلي دي: که چیرې روژه لرونکی په هېره سره خوراک وکړي همدا خوراک د خدای ﷻ له خوا روزي ده. (۲)

۲۰- که چیرې د یو شرعي عذر په وجه غذایي مواد یا دوا استعمال کړي نو یوازې قضاء لازموي. (۳)

۲۱- که چیرې یو ناروغ پر خپل ځان باندې بېرېدي، یا د یو اندام په خرابېدو یا پرېکېدو باندې بېرېدی نو د علماء کرامو رحمة الله علیهم په اجماع سره دغه ناروغ ته اجازه سته چې روژه وخوري او بیا یې قضاء راوړي. (۴)

۱- فقه الاسلامي، ټوک۳، ص۱۷۱۰، مکتبه فریدیه- عالمګیري، کتاب الصوم، ټوک۱، ص۲۰۲، مکتبه رشیدیه- بحرالرائق، ټوک۲، ص۴۷۱، مکتبه رشیدیه- مراقي الفلاح، ص۶۵۷
۲- مشکواة المصابیح، کتاب الصوم، ص۲۰۴، مکتبه البشراي- فتاوي عالمګیري، کتاب الصوم، ټوک۱، ص۲۰۲، مکتبه رشیدیه
۳- فقه علي المذهب الاربعه، ټوک۱، ص۴۷۹، مکتبه وحیدي کتب خانه
۴- عالمګیري، کتاب الصوم و منها المرض، ټوک۱، ص۲۰۷، مکتبه رشیدیه

## هغه څه چي د روژې قضاء او کفاره دواړه لازموي

۱۷_ **مسئله**: که يو مکلف شخص روژه نيوونکی وي او د روژې نيت يې کړی وي، په داسي حال کي چي ناروغ، د سفر، لوږي او تندي په سخت حالت کي نه وي، که چيري روژه ماته کړي نو کفاره او قضاء دواړه ورباندي لازم دي،[۱]

د مثال په توګه لکه دا لاندي شيان:

۱- خوراک، څښاک، هغه شيان چي غـذا پرې حاصليږي او يا د عـلاج لپاره وي لکه دوا، زعفران، مشک، هـريره، عـطر، کافـور او داسي نور.[۲]

۲- د سُرکي څښل، د اوبو (د باران يا عامي اوبه) څښل، د زعفرانو اړ ۀ اوري خوړل.[۳]

۳- د مالګي څکل (خوند کتل).[۴]

۴- د نارو تېرول (که د خپلي ښځي وي يا د خپل معشوق).[۵]

۵- جماع کول، په داسي حال چي د دواړو خواوو خوښه وي نو پر

۱-فتح القدير، ټوک۲، ص۳۲۱، مکتبه رشيديه- بحر الرائق، ټوک۲، ص۲۸۲، مکتبه رشيديه- هنديه په حواله د قاضي خان، ټوک۱، ص۲۰۵، مکتبه رشيديه

۲-هنديه، کتاب الصوم النوع الثاني مايوجب القضاء والکفارة، ټوک۱، ص۲۰۵، مکتبه رشيديه

۳- فتاويهنديه، ټوک۱، ص۲۰۶، مکتبه رشيديه

۴- فقه الاسلامي، ټوک۳، ص۱۷۰۹، مکتبه فريديه- عالمګيري، کتاب الصوم النوع الثاني مايوجب القضاء والکفارة، ټوک۱، ص۲۰۵، مکتبه رشيديه

۵- مبسوط، ص۸۵- بدائع والصنائع، ټوک۱، ص۲۷۵، مکتبه رشيديه- فتاوي عالمګيري، کتاب الصوم الباب الرابع فيما يفسد و مالا يفسد، ټوک۱، ص۲۰۲، مکتبه رشيديه.

دواړو باندي کفاره لازميږي. (١)

۶- که چيري يو چا له ښځي سره زنا او يا نارينه سره لواطت وکړی نو پر دواړو باندي قضاء او کفاره لازميږي، انزال شرط نه دی. (٢)

٧- که چيري د نر او ښځي خاص اندامونه سره يو ځاي سول، که څه هم انزال نه سي. (٣)

٨- که چيري يوې ښځي يو کوچني يا لېوني ته پر خپل ځان باندي قدرت ورکړ او له دې سره يې زنا وکړه نو پر دغه ښځه باندي د ټولو علماؤ په اتفاق سره قضاء او کفاره دواړه لازميږي. (۴)

٩- که چيري يو روژه نيوونيکي د ورځي په اوله کي په قصد سره خوراک وکړ، وروسته بيا د وخت پاچا سفر کولو ته مجبور کړ نو پردغه سړي باندي قضاء او کفاره دواړه لازم دي ځکه ده د سفر دمخه پخپله روژه ماته کړه. (۵)

١- فقه الاسلامي، ټوک٣، ص١٧٠٩، مکتبه فريديه- بدائع والصنائع، ټوک١، ص٢٧٥، مکتبه رشيديه-
٢- فتاوي هنديه کتاب الصوم النوع الثاني مايوجب القضاء والکفارة، ټوک١، ص٢٠٥، مکتبه رشيديه
٣- فقه علي المذهب الاربعه، ټوک١، ص٢٧٥، مکتبه وحيدي- فتاوي هندية، کتاب الصوم النوع الثاني مايوجب القضاء والکفارة، ټوک١، ص٢٠٥، مکتبه رشيديه
۴- فقه علي المذهب الاربعه، ټوک١، ص٢٧٥، مکتبه وحيدي- فتاوي عالمګيري، کتاب الصوم النوع الثاني مايوجب القضاء والکفارة، ټوک١، ص٢٠٥، مکتبه رشيديه
۵- عالمګيري، کتاب الصوم الباب الخامس في الاعذار التي تبيح الافطار، ټوک١، ص٢٠۶، مکتبه رشيديه

## هغه څه چي روژه پوازي مکروه کوي

۱۸_ **مسئله:** ۱-د يو شي خوند ځکل بېله عذر څخه، روژه مکروه کوي.(۱)
۲-که چيري يوه ښځه په کور کي داسي څوک ولري چي روژه يې نه وي نيولې (حايضه، نفاسه او داسي نور) او يو کوچني ته په خپله يو شی ور وژوي نو روژه يې مکروه کيږي. (۲)
۳-د عسلو خوند کتل په دې نيت چي اصلي دي او که نه دي نو روژه يې مکروه کيږي. (۳)
۴-په خوله کي ناړي دېرول او بيرته تېرول روژه مکروه کوي. (۴)

۵-هر هغه کار چي روژه نيوونکی کمزوری کوي لکه رګ وهل يا وينه کښل هم روژه مکروه کوي. (۵)
۶-د خپلي ښځي سره بازی کول په داسي حال کي چي پر خپل ځان ډاډه نه وي، روژه مکروه کوي. (۶)
۷-د هر ډول ژاولو ژوول روژه مکروه کوي (۷)

---

۱-فتاوي هنديه، ټوک۱، ص۱۹۹، مکتبه رشيديه-هدايه، ټوک۱، ص۲۰۲، مکتبه رشيديه
۲-فتاوي هنديه، ټوک۱، ص۱۹۹، مکتبه رشيديه-فتاوي تاتارخانيه، ټوک۲، ص۲۸۸، مکتبه محموديه
۳-فتاوي عالمگيري، ټوک۱، ص۱۹۹، مکتبه رشيديه-فتاوي تاتارخانيه، ټوک۲، ص۲۸۸ مکتبه محموديه
۴-فقه علي المذاهب الاربعه، ټوک۱، ص۲۸۲، مکتبه وحيدي-مراقي الفلاح، ص۶۸۰-فتاوي تاتارخانيه، ټوک۲، ص۲۸۸، مکتبه محموديه
۵-فقه علي المذاهب الاربعه، ټوک۱، ص۲۸۲، مکتبه وحيدي-هنديه، ټوک۱، ص۲۰۰، مکتبه رشيديه-مراقي الفلاح، ص۶۸۰
۶-مراقي الفلاح، ص۶۸۰-هنديه، ټوک۱، ص۲۰۰، مکتبه رشيديه-فقه علي المذاهب الاربعه، ټوک۱، ص۲۸۲، مکتبه وحيدي
۷-مراقي الفلاح، ص۶۸۰-عالمګيري، ټوک۱، ص۱۹۹، مکتبه رشيديه-فتاوي تاتارخانيه، ټوک۲، ص۲۸۸، مکتبه محموديه

۸- داستنجا موهلو په وخت کې د ډېره مبالغه کول روژه مکروه کوي. [۱]

۹- د خپل ځان د ښايست لپاره سترګې تورول يا برېتونه غوړول روژه مکروه کوي. [۲]

۱۰- د خپلې ښځې سره په لڅ بدن بازي کول که څه هم په خپل ځان اعتماد ولري چې جماع به نه کوي، روژه يې مکروه کېږي. [۳]

۱۱- هغه څوک چې وينه وکاږي اوبيا ضعيفه سي روژه يې مکروه کېږي. [۴]

۱۲- دخپل خاوند داجازې پرته دښځې نفلي روژه نيول مکروه ده [۵]

۱۳- که چيرې يو روژه نيوونکی خاوند له خپلې روژه نيوونکي مېرمنې سره د خوب پر بستر په داسې حال کې پرېوزي چې بدنونه يې لڅ وي نو که چيرې يې خاص اندامونه (تناسلي الې)يو له بله سره ونښتل نو روژه يې مکروه کېږي او که نه سره ونښتل نو پروا نه کوي، که چيرې يې په داسې حالت کې پر ځان باور نه درلودی نو دا کار هم د دوی لپاره مکروه دی، د حضرت عباس ﷺ څخه روايت دی، دی وايي: دا کارد ځوانانو لپاره مکروه دی او د

۱- فتاوي عالمګيري، توک۱، ص۱۹۹، مکتبه رشيديه.

۲- فتاوي عالمګيري، په حواله د نهرالفايق، توک۱، ص۱۹۹، مکتبه رشيديه

۳-فتاوي عالمګيري، په حواله د سراج الوهاج، توک۱، ص۲۰۰، مکتبه رشيديه- فقه الاسلامي وادلته، توک۳، ص۱۶۹۰، مکتبه فريديه

۴- فتاوي تاتارخانية، توک۲، ص۲۸۸، مکتبه محموديه- فتاوي عالمګيري، کتاب الصوم الباب الثالث فيما يکره للصائم ومالايکره، توک۱، ص۱۹۹، مکتبه رشيديه

۵- فقه علي المذهب الاربعه، توک۱، ص۴۷۱، مکتبه وحيدي- فتاوي هندية، کتاب الصوم الباب الثالث فيما يکره للصائم ومالايکره، توک۱، ص۲۰۱، مکتبه رشيديه

سپين ږیرو لپاره پروا نه کوي، خکه دوی کمزوري دي.[1]

۱۴- د خپلې ښځې شونډان په خوله کې کلک او ټينګ نيول هم روژه مکروه کوي خکه دوی کمزوري دي.[2]

## هغه څه چې روژه نه ماتوي

۱۹_ **مسئله**: هغه شيان چې روژه نه ماتوي په لاندي ډول دي:

۱- په روغنو سره د بدن غوړول که څه هم تاثير يې تر کوچنيو سوريو بدن ته ور داخل سي.[3]

۲- په رنجو سره سترګې تورول روژه نه ماتوي خکه د سترګو او دماغ په منځ کې سوري نسته، که پوښتنه وسي چې اوښکې څنګه راځي د هغه په جواب کې بايد وويل سي چې اوښکې لکه خولې له بدن څخه راوزي ليکن دلمبيدو په وخت کې اوبه نه ورننوزي.[4] همدارنګه که سترګو ته دوا واچول سي نو هم روژه نه ماتوي که څه هم په ستوني کې د رنجو يا دوا خوند احساس سي، د مثال

۱- فتاوي تاتارخانية، توک۲، ص۲۸۹، مکتبه محموديه- فتاوي هندية، کتاب الصوم، توک۱، ص۲۰۰، مکتبه رشيديه

۲- فقه علي المذهب الاربعه، توک۱، ص۴۸۲، مکتبه وحيدي- فتاوي عالمګيري، کتاب الصوم، توک۱، ص۲۰۰، مکتبه رشيديه

۳- فتاوي هندية، توک۱، ص۲۰۳، مکتبه رشيديه

۴- فتح القدير، توک۲، ص۳۳۲، مکتبه رشيديه

په ډول که چیري ناري توکـــري د رنجو یا دوا رنګ ولیدل سي، نو پروا نه کـــوي. [۱]

۳- مسواک وهل دورځي په جریان کي روژه نه ماتوي که څه هم لوند وي. [۲]

۴- د برېتونو غوړول روژه نه ماتوي، خو په یاد باید ولرو چي د برېتونو غوړول او د سترګو تورول به د بنایست لپاره نه وي یعني د سترګو تورول به د درد یا د دید د زیاتوالي لپاره وي. [۳]

۵- که چیري یو څوک په روژه کي ولمبېږي او غوږ ته یې اوبه ولاړي سي نو روژه یې نه ماتېږي. [۴]

۶- که د یو چا له غوږ څخه د یو شي په واسطه خیره را وایستل سي او دا عمل څو واره تکرار سي نو روژه یې نه ماتېږي. [۵]

۷- که بېله اختیاره په تشه خوله سره سړی قی (استفراق) ووهي نو روژه یې نه ماتېږي. [۶]

۸- احتلام (شیطان خطا ایستل) روژه نه ماتوي، هغه که د شپې

۱- فقه الاسلامي، توک۳، ص۱۷۱۰، مکتبه فریدیه- هندیة، په حواله د ذخیري، توک۱، ص۲۰۳، مکتبه رشیدیه
۲- فقه الاسلامي، توک۳، ص۱۷۱۱، مکتبه فریدیه - هدایة، توک۱، ص۲۰۳، مکتبه رشیدیه - فتاوي عالمګیري، کتاب الصوم الباب الثالث فیما یکره للصائم ومالایکره، توک۱، ص۱۹۹، مکتبه رشیدیه
۳- فقه الاسلامي وادلته، توک۳، ص۱۶۹۰، مکتبه فریدیه- هدایة، توک۱، ص۲۰۳، مکتبه رشیدیه- فتاوي هندیة، کتاب الصوم الباب الثالث فیما یکره للصائم ومالایکره، توک۱، ص۱۹۹، مکتبه رشیدیه
۴- فقه الاسلامي، توک۳، ص۱۷۱۱، مکتبه فریدیه- هدایة، توک۱، ص۲۰۳، مکتبه رشیدیه- فتاوي عالمګیري، کتاب الصوم الباب الرابع فیما یفسد و مالایفسد، توک۱، ص۲۰۲، مکتبه رشیدیه
۵- مراقي الفلاح، ص۱۶۶
۶- فقه الاسلامي، توک۳، ص۱۷۱۲، مکتبه فریدیه- هدایة، توک۱، ص۲۰۰، مکتبه رشیدیه- فتاوي هندیة، کتاب الصوم، توک۱، ص۲۰۲، مکتبه رشیدیه

لخوا وي که د ورځي لخوا پروانه کوي، د غسل په وخت کي دي په خوله اوبه نه غرغره کوي، همدارنګه دي د پزي د پرهوللو په وخت کي د هر احتیاط کوي چي اوبه ورځخه تیري نه سي. (۱)

تول صحابه کرام لکه: حضرت علي ﷺ، ابن مسعود ﷺ، زید بن ثابت ﷺ، ابي درداء ﷺ، ابي ذرغفاري ﷺ، ابن عباس ﷺ، ابن عمر ﷺ او معاذ بن جبل ﷺ په دغه باندي موافق دي چي د شیطان خطا ایستونکي روژه نه ده ماته، ځکه عام اصحاب کرام رضی الله عنهم په دغه لاندي ایت شریف سره خپل دلیل نیسي.

ژباړه: تاسي ته د روژې په شپه کي د خپلو ښځو سره جماع (نزدیکت) کول روا دي. (۲)

نو که چیري یو چا د خپلي ښځي سره د شپې په اخر کي نزدیکت وکړ او تر سهاره همداسي پاته سو نو دغه جنابت روژې ته هیڅ ډول تاوان نه کوي، ځکه حضرت عایشه او حضرت ام سلمه ﷺ وایي چي رسول الله ﷺ په داسي حال کي سهار کړی چي جنب به وو، خو د شیطان د خطا ایستلو په وجه نه بلکي د نزدیکت په وجه او بیا به یې وروسته دا روژه هم پوره کول. (۳)

۹- که د یوې ښځي د خاوند طبیعت سخت ؤ او د پخلي پر شیانو باندي په غصه کېدي نو ښځه دي د پخلي پر وخت د کتغ خوند په

۱- هدایه، ټوک۱، ص۱۹۱، مکتبه رشیدیه
۲- أحِلَّ لَكُمْ لَيْلَةَ الصِّيَامِ الرَّفَثُ إِلَى نِسَائِكُمْ. سورة البقره، ایت۱۸۷
۳- بدائع والصنائع، ټوک۲، ص۲۲۱، مکتبه رشیدیه

ژبه سره وګوري او بيرته دي يې ژر توکړي، روژه يې نه ماتيږي. (۱)
۱۰- په روژه کې وينه کښل روژه نه ماتوي په دې شرط چې کمزوري نه سي. (۲)
۱۱- که چيرې يو چا يو شی په خطا سره وخوړ او د نخود تر اندازې کم ؤ نو روژه يې نه ماتيږي. (۳)
۱۲- که چيرې يو چا په روژه کې عطر استعمال کړل يا يې مشک بوی کړل نو روژه يې نه ماتيږي. (۴)
۱۳- که چيرې يو څوک په روژه کې ولمبيږي او بدن يې يخوالی حس کړي نو روژه يې نه ماتيږي. (۵)
۱۴- که چيرې يو چا په هاونګ کې شيان ميده کول، په ژرنده کې يې اوړه کول، يو شی يې غلبيل کول، سخت باد او دوړې راغلې، حيواناتو څغاستل دوړې يې جوړې کړې او يا د اشپزخانې دود ؤ نو که چيرې دغه شيان د روژه نيوونکي خولې ته ننوزي نو روژه يې نه ماتيږي. (۶)
د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دی، دی وايي: د نبي اکرم ﷺ

۱- فتاوي عالمګيري، توک۱، ص۱۹۹، مکتبه رشيديه- فتاوي الملتقط، ص۱۹، مکتبه حقانيه- ارشاد الاحکام، ص۲۹۵، مکتبه رحمانيه
۲- فقه الاسلامي، توک۳، ص۱۷۱۰، مکتبه فريديه-فتاوي تاتارخانية، توک۲، ص۲۸۸، مکتبه محموديه- فتح القدير، توک۲، ص۳۲۳، مکتبه رشيديه
۳- بدائع والصنائع صدوهم توک مکتبه رشيديه - والصنائع، توک۲، ص۲۳۷، مکتبه رشيديه-فتح القدير، توک۲، ص۳۲۳، مکتبه رشيديه-فقه الاسلامي، توک۳، ص۱۷۱۲، مکتبه فريديه- عالمګيري، توک۱، ص۲۰۲، مکتبه رشيديه.
۴- فقه الاسلامي، توک۳، ص۱۷۱۲، مکتبه فريديه
۵- هداية، توک۱، ص۱۹۹، مکتبه رشيديه- عالمګيري، په حواله د نهرالفايق، توک۱، ص۲۰۲، مکتبه رشيديه
۶- هندية، په حواله د سراج الوهاج، توک۱، ص۲۰۲، مکتبه رشيديه

څخه يو چا پوښتنه وکړه چې ما په هېره سره خوراک او څښاک وکړ په داسې حال کې چې روژه مې وه، اوس څه وکړم؟
رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: ته د الله ﷻ خاص مېلمه وې پروا نه کوي اوس بېرته روژه ونيسه نه قضاء سته او نه هم کفاره (١)
په بل حديث شريف کې رسول الله ﷺ وفرمايل: زما د امت څخه خطا او هېره پورته سوې ده. (٢)
١٥- د خېلې ښځې څخه مچه اخيستل او يا بازی ورسره کول روژه نه ماتوي خو په دې شرط چې پر خپل ځان يې اعتبار وي. څکه عايشه ﷵ وايي چې: رسول الله ﷺ به مچه اخيستل او بازی به يې کولې سره ددې چې رسول الله ﷺ به روژه هم نيولې وه. (٣)
١۶- که د چا په کور کې نابالغه ځوک نه وي او يو کوچني ته په خوله کې يو شی ور وژو وي نو روژه يې نه ماتېږي (۴)
١٧- که چېري يو چا په خوله کې اوبه واچولې او اوبه ور څخه تېرې سوې په داسې حال کې چې روژه يې په ياد نه وي، نو روژه يې

١- مبسوط للسرخسي، توک٣، ص٧٠، مکتبه غفاريه- فتح القدير، توک٢، ص٢٣٢، مکتبه رشيديه- فتاوي هنديه، کتاب الصوم الباب الرابع فيما يفسد و مالايفسد، توک١، ص٢٠٢، مکتبه رشيديه
٢- فتح القدير، توک٢، ص٢٣٢، مکتبه رشيديه
٣- فقه الاسلامي وادلته، توک٣، ص١۶١٠، مکتبه فريديه
۴- فتاوي تاتارخانية، توک٢، ص٢٨٨، مکتبه محموديه- فتاوي هندية، کتاب الصوم الباب الثالث فيما يکره للصائم ومالايکره، توک١، ص١٩٩، مکتبه رشيديه

نه ده ماته. (۱)

۱۸- که چــيري يو چا يوې ښــځې ته په شهوت سره وکتل او په دې فکـر کولو کې انزال (مني راووتل) ســو نو روژه يې نه ده ماتـه خو ګنهکار دي. (۲)

## د تراويح اثبات

۲۰_ **مسئله**: تراويح شل رکعتـه سنت موکد دي، د امت پـه اجماع سره چي د حضرت عمرؓ په زمانه کي په جماعت سره علي الدوام (د همېشه لپاره) پيل سوې، تراويح په جماعت سره سنت کفايي دي د کلي د خلکو لپـاره، ځکه که چيري يې د کلي يو څو خلک پـه جماعت سره وکړي نو د هغه نورو خلکو څخه جماعت ساقط دی. (۳) پـه حديث شـريف کـي راغلـي دي چي پېغمبرﷺ فرمايلي دي: پر تاسي لازمـه ده چي زما دسنتو پيـروي وکـړئ اودخلفـاء راشـدينو د سنتو پـيروي وکـړئ چي زمـا څخـه وروسـتـه دي اوداسـي يـې ټينـګ ونيسئ لکـه يوڅـوک چـي دزامـي پـه غاښـونو سـره يوشـی ټينـګ

۱- بدائع والصنائع، ټوک۲، ص۲۳۹، مکتبه رشيديه- فتاوي عالمګيري، کتاب الصوم الباب الرابع فيما يفسد و مالايفسد، ټوک۱، ص۲۰۲، مکتبه رشيديه

۲- بدائع والصنائع، ټوک۲، ص۲۳۹، مکتبه رشيديه-فتاوي هندية، کتاب الصوم الباب الرابع فيما يفسد و مالا يفسد، ټوک۱، ص۲۰۲، مکتبه رشيديه

۳- فقه علي المذهب الاربعة، ټوک۱، ص۲۹۲، مکتبه وحيدي کتب خانه

ونيسي. دا چي پيغمبر ﷺ په تراويح ورکولو همېشه توب نه دی کړی دا په دې خاطر چي هسي نه چي زما پر امت فرض وګرځول سي. [1]

## د تراويح وخت

۲۱ـ **مسئله** : د ماخستن د لمانځه له سنتو څخه وروسته بيا تر صبح صادق (رڼتيني سپېدو) پوري، که چيري يو چا د ماخستن لمونځ وکړ او بيا يې تراويح وکړې، وروسته ور په ياد سوه چي د ماخستن لمونځ يې بې اودسه کړی دی نو دئ به تراويح راګرځوي ځکه چي سنت تر فرضو وروسته کيږي. [2]

الف : په تراويح لمانځه کي به تر هرو څلورو رکعتونو وروسته کښېني، دا مستحب دي چي د هرو څلورو رکعتونو پر سر کښېني او که چيري د دوو رکعتونو پر سر کښېني صحيح کيږي خو سره د مکروه والي. [3]

تراويح کوونکی اختيار لري چي په دغه ناسته کي نفل لمونځ کوي، چوپ کښېني او که تسبيح وايي، په اوس وخت کي چي کومي تسبيح رواج دي دا چي په خپله امام تسبيح وايي او نور مقتديان چوپ ناست وي دغسي طريقه هيڅ يو کتاب نه ده بيان کړې فقط دا يو شخصي رواج دی، هر چا چي دغه کار رواج

۱- فقه الاسلامي وادلته، ټوک۲، ص۱۰۸۸، مکتبه فريديه- فقه علي المذهب الاربعه، ټوک۱، ص۲۹۲، مکتبه وحيدي کتب خانه مبسوط للسرخسي، ټوک۲، ص۱۹۷، مکتبه غفاريه

۲- فقه الاسلامي، ټوک۲، ص۱۰۹۱، مکتبه فريديه

۳- فقه علي المذهب الاربعه، ټوک۱، ص۲۹۵، مکتبه وحيدي کتب خانه

کـــړی دی بایـد د دغـسي کـار څخـه جـــداً ډېره وســـي يعنـي پـه ســـختی ســـــره یې منع وسي. (١)

ب : په تراویح کي د قران عظیم الشان ختم کول سنت دی. (٢)

که چیري پر قوم باندي ډېر تکلیف نه وي خو د جمهورو علماؤ رایه داده چي باید ختم وسي، که باالفرض پر قـوم باندي ډېر تکلیف ؤ نـو د متـاخرینو علمـاؤ رایـه داده چـي پـه هـر رکعـت کـي دي دري کوچني ایتونه یـا یـو لـوی ایت وویـل سي چي پر مقتدیانو باندي تکلیف نه سي، دا خبره دي هم په پام کي ونیول سي چي پـه اوس وخت کي ځيني امامان په (١٥-٢٠-٢٥) دقیقو کـي د تراویح لمونځ ورکوي او د لمانځـه د احکـامو پـروا هـم نـه لـري او عـوام هـم ورتـه لېوالـه وي فـــلانی امـام داسـي چابکي تـراویح ورکـوي، داچـي د رکنونو (فرضو)مراعت نه کوي يعني د ارکانو اراموالی نه کوي. (٣) بلکي (سبحانک اللـهم، اعـوذ باالله، بســـم الله، اللـــهم صــلي) پـه لمانځه کي سنت دي، هغه هم نه وايي خو په تراویح کـي دي اللهم صـلي نـه پرېـږدي ځکـه د اللـــهم صــلي ویـل زمـوږ د امـام اعظـم ابوحنيفـه رحمه الله پــه مـــذهب ســنت مـــؤکد ده او د ځینـــو نـــورو مجتهـدینو پـه مـذهب فـرض ده نـو ځکـه بېلـه اللهم صـلي د نـورو

---

١-ردالمحتار، توک١، ص٥٢٢، مکتبه رشيديه

٢-ردالمحتار، توک١، ص٥٢٢، مکتبه رشيديه

٣-مرقات شرح المشکوة، توک٢، ص٦٠١، مکتبه رشيديه- بحر الرائق، توک١، ص٥٢٤-٥٢٧، مکتبه رشيديه

مجتهد ينو په مذهب لمونځ نه صحيح کيږي.(۱)
امام او مقتدی به دواړه اللهم صلي وايي که څه هم يوازي او يوازي (اللهم صلي علي محمد) ووايي ځکه اللهم صلي د امام شافعي رحمه الله په مذهب فرض ده. (۲)

د التحياتو وروسته به امام او مقتديان دواړه اللهم صلي وايي. (۳)
علاوه پر دې دا يو ډول سپکاوی او بې باکي ده د لمانځه سره، تر دغسي چابکو تراويحو وركولو د تراويح نه كول په سزا كې سپكوالى لري، كه څوک تراويح نه كوي خو يوه ګناه ده چي هغه د سنتو پرېښوول دي او داسي چابكي تراويح چي مقتديان په امام پسي نه سي رسېدلای او په قرائت كي هم توري په خپل مخرج كي نه سي اداء كولای، پېغمبر ﷺ په حديث مقدس كي فرمايلي دي چي په ركوع او سجده كي درې واري تسبيح سنت دي او دا يې هم كمه مرتبه ده، خو دا هم سرته نه رسيږي حتي كه څوک ورته ښه غوږ ونيسي د تورو په ويلو به يې هم پوه نه سي، دا تراويح كول جواز نه لري او نه صحيح كيږي.
كه چېري يو څا د فقهي شريف كتابونه ويلي او يا يې كتلي وي دا به خپله ورته معلومه سي چي دارنګه لمونځ كول قطعاً جواز نه لري، لومړی دي لمونځ زده كړي بيا دي امامت شروع كړي

۱- حاشيه الطحاوي علي مراقي الفلاح، ص۲۲۸، مكتبه نعمانيه
۲- ردالمحتار، ټوک۱، ص۵۲۲، مكتبه رشيديه
۳- فقه علي المذهب الاربعة، ټوک۱، ص۲۹۲، مكتبه وحيدي كتب خانه..

څکه الله ﷻ په قـران کريم کي فـــرمايي ژباړه: ولوله قـــرآن په ښــــه وضاحت ســـــره يعني پـه داسي ډول چي اوريدونکی يې وفهموي او تلوار مـــه کوه په ويلو کي. (۱)

په بل حديث شريف کي د حضرت ابوقتاده رضي الله عنه څخه روايت دی چي نبي کريم ﷺ وفرمايل ژباړه: بدترين د هغه خلکو چي غلا کوي هغه څوک دی چي په لمانځه کي غــــلا کوي، ورته وويـل سول چي په لمانځه کي به څــوک څنګه غــلا کوي؟ نبي کريم ﷺ وفرمايل هغه څــوک چي پـه لمانځـه کـي رکـــوع، ســجده او عـاجزي پـه ښــپړه توګه نه کوي دا د لمانځه غل دی. (۲)

قومه: د رکوع څخه وروسته دربدل چي ټول اندامونه قرار ونيسي او جلسه: د دوو سجدو په منځ کي ناسته ده چي ټوله اندامونه قرار ونيسي اقلاً د يوې تسبيح ويلو په اندازه،دغه اندازه د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله او د امام محمد رحمه الله په اتفاق سره سنت ده. (۳)

په يو حديث شريف کي راځي چي د منکراتو پرېښودل دي وسي، يو له هغو منکراتو څخه چابک قرائت ويل دي چي اوريدونکی يې ونه فهموي او بل دا چي سنت مؤکد پرېښودل سبب د کراهيت تحريمي ګرځي او دا قاعده ده چي لمونځ مکروه تحريمي وګرځي را ګرځول

۱-قرطبي، ټوک۱، ص۲۵- بدائع والصنائع، ټوک۱، ص۶۲۲-۶۲۸، مکتبه رشيديه- فتح القدير، ټوک۱، ص۲۸۲، مکتبه رشيديه- بحرالرائق، ټوک۲، ص۱۱۷، مکتبه رشيديه- موطا، د امام محمد رحمه الله، ص۱۲۱، مکتبه حنفيه

۲-فقه الاسلامي، ټوک۲، ص۸۲۶، مکتبه فريديه- بدائع والصنائع، ټوک۱، ص۶۲۵، مکتبه رشيديه- بحرالرائق، ټوک۲، ص۱۲۱، مکتبه رشيديه

۳-بنايه شرح الهداية، ټوک۲، ص۲۲۵، مکتبه حبيبه

يې واجب دي، د فقهاؤ په دې باندې اتفاق دی چې د امامت مستحق بايد په لومړی قدم کې عالم وي، يعني هغه څوک وي چې د لمانځه پر احکامو په بشپړه توګه علميت ولري لکه: فرايض، واجبات، سنتيات، مکروهات او مفسدات نو خلاصه داده چې د پورته ذکر سوو مضامينو څخه دا معلومه سوه چې هغه څوک چې د امامت دنده پر غاړه لري مکلف دي چې پورتني احکام په نظر کي ولري څکه چې پيغمبر ﷺ فرمايلي دي ژباړه: امام ضامن د قوم دی په ټوله لمانځه کي او عوامو خلکو ته هم په کار ده چې ديني زده کړې وکړي او خان ته معلومات حاصل کړي، خپل مسؤليت د بل پر غاړه ور وانه چوي، لکه څنګه چې پيغمبر ﷺ فرمايلي دي: اګاه اوسئ هر يو ستاسي چوپان د خپلي رمې دی. (١)

## د اعتکاف د اثبات دلايل

٢٢_ **مسئله**: د اعتکاف تعريف: اعتکاف په لغت کي د يو شي څنډول او بندول دي، هغه که بد وي او که ښه وي. (٢)

او اعتکاف د شرعي شريفي په اصطلاح کي په هغه مسجد کي چې د جماعت لمونځ په کښي اداء کيږي څنډ کول دي په لومړي قدم کي په مسجدالحرام کي اعتکاف کول د ډېر ثواب لري، په دوهم قدم کي

١- مشکوة شريف، ټوک٢، ص٣٢٠، دارالاشاعة العربية- ردالمحتار، ټوک١، ص٥٢٢، مکتبه رشيديه
٢- فقه الاسلامي وادلته، ټوک٢، ص١٧٢٩، مکتبه فريديه- فقه علی المذهب الاربعة، ټوک١، ص٢٩٢، مکتبه رحيديې کتب خانه- خزانة الفقه، ص٨٢.

بیا په مسجد نبوي ﷺ کې د ېر ثواب لري، په دریم قدم کې په بیت المقدس کې د ېر ثواب لري او په څلورم قدم کې بیا په هره هغه جامع مسجد کې چې د جمعې لمونځ په کښې کیږي او تر هغه وروسته بیا په هغه مسجد کې چې پنځه وخته لمونځ په جماعت په کښې کیږي ثواب لري. (۱)

اعتکاف کوونکی به هلته په مسجد کې لمونځ کوي، هلته به ناست وي او له هغه ځایه به بېله شرعي عذر څخه نه راولاړیږي او روژه به یې هم وي نو دغه ته اعتکاف ویل کیږي. د ښځې لپاره په خپل کور کې داسې یو خانګړی ځای ټاکل کیږي چې هلته لمونځ کوي او هلته ناسته وي او له هغه ځایه بېله شرعي عذره څخه نه راولاړیږي. (۲)

الله ﷻ په قرانکریم کې فرمایي ژباړه: موږ وحې وکړې او امر مو وکړ ابراهیم ﷺ او اسمعیل ﷺ ته چې پاک کړه زما کور (کعبه شریفه) د هر قسم مرداري څخه، د طواف کوونکو، معتکفینو، مسافرینو، رکوع کوونکو او سجده کوونکو لپاره. (۳)
الله ﷻ فرمایلي دي ژباړه: مه نږدې کیږئ تاسې ښځو ته (یعنې د

۱- فتاوي تاتارخانیة، توک۲، صـ۳۱۱، مکتبه محمودیه- عالمګیري، توک۱، صـ۲۱۱، مکتبه رشیدیه
۲- خزانه الفقه، صـ۸۲- عالمګیري، توک۱، صـ۲۱۱، مکتبه رشیدیه- فتاوي تاتارخانیة، توک۲، صـ۳۱۰-۳۲۰، مکتبه محمودیه
۳- سورة البقرة، ایت۱۲۵- روح المعاني، توک۱، صـ۵۱۸، مکتبه رشیدیه- تفسیر المظهري، توک۱، مکتبه علوم الاسلامیه- کابلي تفسیر، توک۱، صـ۸۳، مکتبه الحقانیه

ښځو سره نژدېکت مه کوئ په داسي حال کي چي تاسي په اعتکاف کي یاست. (۱)

حضرت ابن عمر ﷺ، حضرت انس ﷺ او حضرت عائشه ﷺ روایت کوي چي هر کله رسول الله ﷺ مدیني منوري ته تشریف راوړی نو له هغه وخت څخه بیا د رسول الله ﷺ تر وفات پوري د هري روژې د میاشتي اخرنی لس ورځي به یې په اعتکاف کي تېرولې. (۲)

امام شوکاني رحمه الله دا حدیث شریف رانقلوي چي رسول الله ﷺ په لومړي قدم کي د روژې د منځ لس ورځي معتکف (اعتکاف به یې کاوه) وو، وروسته یې بیا تر رحلت پوري اخرنی لس ورځي د اعتکاف لپاره وټاکلې او تر رحلته وروسته د حضرت رسول الله ﷺ بي بي ګانو مبارکانو هم اعتکاف کاوه. (۳)

### د اعتکاف مقصد

۲۳_ **مسئله**: ۱-د زړه صفایي د الله ﷻ د مراقبې په سبب.

۲- خان تیارول دي و عبادت ته د فراغت په وخت کي.

۳- د خدای ﷻ د رضا په خاطر له دنیایي چارو څخه خان ګوښه کول.

۴- د خپل خان تسلیمول دي الله ﷻ ته چي غالبه دی په انفاذ کي د امورو

۱- بدائع والصنائع، ټوک۲، ص۲۸۰، مکتبه رشیدیه- روح المعاني، ټوک۱، ص۴۴، مکتبه رشیدیه
۲- فقه الاسلامي وادلته، ټوک۳، ص۷۵۱، مکتبه فریدیه- بدائع والصنائع، ټوک۲، ص۲۷۳، مکتبه رشیدیه- فتاوي تاتارخانیة، ټوک۲، ص۴۱۲، مکتبه محمودیه
۳- نیل الاوطار، ټوک۱، ص۲۴۴- فقه الاسلامي وادلته، ټوک۳، ص۱۷۵۷، مکتبه فریدیه- فقه علي المذهب الاربعة، ټوک۲، ص۴۱۲، مکتبه وحیدي کتب خانه- تفسیر ابن کثیر، ټوک۲، ص۶۹۱، مکتبه حقانیه

۵- ډاډ او باور کول دي د الله ﷻ په فضل او کرم.
۶- د خدای پاک ﷻ د دربار و دروازې ته درېدل دي.
۷- ځان نژدې کول دي خداي ﷻ ته چې رحمت پرې نازل سي.
۸- د الله ﷻ په پناه کې ځان ساتل دي.
۹- درېدل د لمانځه ځخه یعني له یوه معراج ځخه بل معراج ته. (۱)

## د اعتکاف ډولونه

۲۴_ **مسئله**: ۱-واجب: دا چې یو څوک اعتکاف پر ځان نذر کړي هر څو ورځې چې وي روژه ور سره شرط ده.
۲- سنت: د روژې اخرنۍ لس ورځې، ځکه پېغمبر ﷺ همېشه توب پر کړی دی، خو پر طریقه د کفایت سنت دي یعني که په ټوله محله (کلي) کې یوسړی معتکف سي دنوروغاړي خلاصېږي خوبیا هم روژه ورسره شرط ده.
۳- مستحب: د وخت ټاکل نه غواړي او نه خاصه اندازه غواړي، غیر د روژې د اخرنۍ ورځو ځخه او غیر له نذره ځخه بل هر وخت چې وي صحیح دی. (۲)

۱- فقه الاسلامي وادلته، ټوک۳، ص۱۷۵۱، مکتبه فریدیه
۲- نورالایضاح، ص۱۵۱، مکتبه حنیفیه- فقه الاسلامي وادلته، ټوک۳، ص۱۷۵۷، مکتبه فریدیه- فقه علي المذاهب الاربعة، ټوک۱، ص۲۹۲، مکتبه وحیدي کتب خانه

## هغه شيان چې معتکف ته روا دي

۲۵_ **مسئله**: ۱-د شرعي عذر لپاره د اعتکاف ځخه وتل روا دي لکه د جمعې لمونځ.

۲-د طبعي حاجت لپاره د اعتکاف ځخه وتل روا دي مثلاً بولي، مرداري ليرې کول، د جنابت ځخه غسل کول او داسي نور. ځکه چې حضرت رسول اکرم ﷺ هم بېله دغه عذرونو ځخه له مسجد ځخه نه وتی.

۳-د ضروري حاجت په خاطر د مسجد ځخه وتل روا دي مثلاً د مسجد نړېدل، شاهدي اداء کول، له دښمن ځخه پر خپل ځان بېرېدل، له ظالمانو ځخه پر خپل مال بېرېدل او يا دا چې يو ظالم يې په زوره سره وباسي او يا د محل خلک پر دغه اعتکاف کوونکي باندي په جنجال سره واقع سي نو ددغه اعتکاف کوونکي لپاره په کار دي چې له دغه مسجد ځخه ووځي.

۴-اعتکاف کوونکي ته په مسجد کي خوراک، ځښاک او خوب کول روا دي. (۱)

۵-اعتکاف کوونکي ته په مسجد کي د سر غوړول، خوشبويي وهل او د يو چا نکاح ورتړل روا دي.

يادونه: دا خبره بايد په ياد ولرو چې که د اعتکاف کوونکي ځخه

---

۱-فقه الاسلامي وادلته، ټوک۳، ص۱۷۵۱، مکتبه فريديه-بدائع والصنائع، ټوک۲، ص۲۷۳، مکتبه رشيديه

مسجد جامع لیري وي باید د جمعې لمانځه ته ولاړ نه سي ځکه چي یوه لحظه بېله ضرورته ځنډ کول اعتکاف فاسدوي. [1]

## د اعتکاف شرطونه

۲۶_ **مسئله**: ۱-اسلام: د کافر اعتکاف صحت نه لري ځکه چي د ایمان څښتن نه دی.

۲-عقل: د کوچني او لیوني اعتکاف صحت نه لري ځکه چي دوي په عبادت باندي مکلف نه دي او اعتکاف عبادت دی.

۳-مسجد: هغه چي لمونځ او اذان پکښي کیږي او امام او مؤذن ولري. [2]

۴-نیت: ددي لپاره چي د عادت او عبادت جلاوالی راسي ځکه په حدیث شریف کي داسي راغلي دي چي:

ژباړه: هر عمل په نیت پوري اړه لري. [3]

۵-روژه: د واجب او سنت اعتکاف لپاره لازمي او ضروري ده.

۶-دجنابت، حیض او نفاس څخه به اعتکاف کوونکی پاک وي. [4]

یادونه: که چیري اعتکاف کوونکی په اعتکاف کي جنب سي ځای پر ځای دي تیمم ووهي.

---

۱-فقه الاسلامي وادلته، ټوک۲، ص۱۷۷۶، مکتبه فریدیه.
۲-شامي، ټوک۱، ص۱۴۰، مکتبه رشیدیه-خانیه، ټوک۱، ص۲۲۱، مکتبه رشیدیه.
۳-مشکواة، ټوک۱، ص۱۱، مکتبه دارالاشاعة العربیة- فقه علي المذهب الاربعة، ټوک۱، ص۴۹۲، مکتبه وحیدي کتب خانه- بدائع والصنائع، ټوک۲، ص۲۷۴، مکتبه رشیدیه.
۴-فقه الاسلامي وادلته، ټوک۲، ص۱۷۶۲، مکتبه فریدیه.

۷- ښځه د خپل خاوند له اجازې پرته اعتکاف نه سي کولای او نه صحیح کیږي که څه هم چي دغه ښځي پر خپل ځان باندي اعتکاف نذر کړی وي. (۱)

## د اعتکاف تحریمي مکروهات

۲۷_ **مسئله**: ۱-د هغه شي حاضرول مسجدته چي اعتکاف کوونکی يې رانيسي.
۲- د داسي شي حاضرول مسجد ته چي اعتکاف کوونکی يې خرڅوي ځکه چي د داسي کار څخه پیغمبر ﷺ منع کړې ده.
۳- د رانیولو یا خرڅولو پرېکړه چي د تجارت لپاره وي. (۲)
۴- چوپه خوله کېښناستل په دې خاطر چي چوپ والی ثواب لري ددې کار څخه منع سوې ده ځکه دا خو د اهل کتابو روژه وه چي چوپ به کېښناستل او هغه منسوخه کړل سوه. (۳)

## داعتکاف مفسدات

۲۸_ **مسئله**: ۱-له مسجد څخه بېله شرعي اوطبعي عذره څخه وتل.
۲- جماع (کوروالي) کول، که په هېره وي، که په زور سره وي، که د

۱ بدائع والصنائع، توک۲، صـ۲۷۳، مکتبه رشیدیه- عالمگیري، توک۱، صـ۲۱۱، مکتبه رشیدیه- فقه علي المذهب الاربعة، توک۱، صـ۲۹۴، مکتبه وحیدي کتب خانه
۲- حاشیه الطحاوي، صـ۵۸۰- ردالمحتار، توک۲، صـ۱۴۶، مکتبه رشیدیه حدایة، توک۱، صـ۲۱۲، مکتبه رشیدیه
۳- فقه الاسلامي وادلته، توک۳، صـ۱۷۷۴، مکتبه فریدیه- هدایة، توک۱، صـ۲۱۲، مکتبه رشیدیه- ردالمحتار، توک۲، صـ۱۴۷، مکتبه رشیدیه

شپې وي او که د ورځې.

۳- مچه اخيستل او يا داسې کارونه کول چې د جماع کولو داماده ګۍ لپاره وي.

۴- له خپل دين څخه اوښتل.

۵- بېهوښي او لېونتوب، داسې بېهوښي او لېونتوب چې د ډېرې ورځې وي. [۱]

۶- حيض اونفاس: که ښځه په اعتکاف کې حايضه يانفاسه شي. [۲]

۷- پر مريض باندې پوښتنه کول.

۸- جنازې ته ورتلل څکه چې عايشه‌ﷺ وايي ژباړه: پر معتکف باندې سنت دی چې پر مريض باندې پوښتنه ونه کړي او جنازې ته حاضر نه شي او له ښځې سره لوبې ونه کړي او بېله حاجته دباندې ونه وځي. [۳]

### د اعتکاف اداب

۲۹_ **مسئله** : ۱-معتکف لره مستحب دي چې خپل تر وسه پورې په لمونځ کولو باندې اخته وي.

۲- د قرآنکريم تلاوت تر خپله وسه پورې وکړي.

۳- د خداي ﷻ ذکر کول يعنې لااله الاالله ، استغفار او د زړه له

۱- فتاوي هندية، ټوک۱ ، ص۲۱۳-۲۱۲ ، مکتبه رشيديه

۲- فقه الاسلامي وادلته، ټوک۲، ص۱۷۷۸ ، مکتبه فريديه

۳- نيل الاوطار، ټوک۲، ص۲۶۷- فقه علي المذهب الاربعة، ټوک۱ ، ص۴۹۲، مکتبه وحيدي

اخلاصه فکر کول.

۴- پر حضرت پیغمبر ﷺ باندي درود ویل.

۵- د قرآنکریم او احادیث شریف تدریس کول.

۶- د سیرت کتابونه کتل.

۷- د پیغمبرانو ﷺ کیسي کول.

۸- د ښو خلکو حال بیانول.

۹- نورو خلکو ته د علم تدریس کول.

۱۰- په علم سره خپل ځان اخته کول. (۱)

## دقدرشپه څه ته وایي

۳۰_ **مسئله**: د روژې مبارکي په شپو کي یوې شپې ته د قدر شپه وایي چي ډېره د خیر او برکت شپه ده، په قران کریم کي دا شپه تر زرو میاشتو ښه بلل سوېده، نېکبخته دی هغه څوک چي دا شپه په عبادت سره تېره کړي او دا برکات یې نصیب سي، الله پاک ﷻ په حقیقت سره ډېر لوی انعام د رسول الله ﷺ پر امت کړی دی.

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روایت دی چي نبي کریم ﷺ وویل: د قدر په شپه الله پاک ﷻ زما پر امت یو خاص رحمت کړی دی چي پر نورو امتونو یې نه دی کړی، په دې باره کي ډېر روایات دي چي ددې نعمت سبب څه ؤ، په ځینو احادیثو کي راغلي دي چي نبي

---

۱- کتاب فقه علي المذاهب الاربعة، ټوک۱، ص۴۹۹، مکتبه وحیدي- فقه الاسلامي وادلته، ټوک۲، ص۱۷۷۲، مکتبه فریدیه- ردالمحتار، ټوک۲، ص۱۲۷، مکتبه رشیدیه

کريمﷺ د تېرو امتونو عمرونو ته فکر کړی ؤ چې د هر زيات ؤ په دې خفه سو چې زما د امت عمرونه کم دي او په دې کم عمر کې د دومره زيات عبادت امکان نسته. يوه ورځ حضرت رسول اکرمﷺ د يوه شخص ذکر کاوه ويل يې چې زر مياشتي يې جهاد کړی دی، د اصحابو کرامو رضي الله عنهم ور باندي غبطه پيدا سوه نو الله پاکﷻ دا شپه ور په برخه کړه او دغه ايت يې نازل کړ ژباړه. دغه د قدر شپه غوره ده (تر هغو) زرو مياشتو (چې په هغه کې هغه سړی د خدای پاکﷻ په لاره کې جهاد کړی ؤ). (١)

په بل روايت کې داسي راغلي دي چې: په بني اسرائيلو کې يو سړی ؤ د شپې به يې عبادت کاوه تر سهاره پوري او بيا به يې په ورځ کې د دين د دښمنانو سره جهاد کاوه تر ماښامه پوري، نو الله پاکﷻ دا سورة نازل کړ. (٢)

د عايشيرضي الله عنها څخه روايت دی چې نبي کريمﷺ وويل: د قدر شپه د روژې د مياشتي د اخيرو لسو په طاق شپو کې ده، د علماؤ په نزد د اخيري لسو له يوويشتم څخه شروع کېږي، عامي مياشتي «٢٩ يا ٣٠» شپې وي ددې حساب په مطابق د حديث له مخې «٢١-٢٣-٢٥-٢٧-٢٩» شپو کې يې لټول په کار دي، مياشت که ٢٩ يا ٣٠ وي فرق نه کوي خو د دې شپې په تعين کې د هر غټ اختلاف دی

١- سورة القدر، ايت٥.
٢- تفسير ابن کثير سورة القدر، ټوک٢، ص٦٨٦، مکتبه حقانيه- تفسير خازن، ټوک٢، ص٢٥٣، مکتبه فاروقيه- سراج السلام تصنيف مولوي سيف الدين قندهاري کارواني، ص٣٢، بهشتي زيور، ټوک١، ص١٠٦.

مګر مشهور قول دادی چي د روژې د ۲۷ په شپه ده، ښه خبره دا ده چي د روژې اخيري لس شپې ويښ و اوسي، او د الله پاک ﷻ عبادت وکړي او همدارنګه حضرت بي بي عايشه رضی الله عنها فرمايي چي نبي کريم ﷺ به اخيري لس شپې اعتکاف کاوه او دا شپې به يې رڼولې. (۱)

همدارنګه که چيري د اوويشتم په تراويح کي ختم د قرآن کريم وسي دا مستحب دي ليکن په يقيني توګه دا د قدر شپه بلل او نوري شپې نه بلل غلط کار دی، بايد ختم هم د همېشه لپاره په دې شپه کي لازم ونه بلل سي. (۲)

## د قدر د شپې د پټوالي حکمت

۳۱_ **مسئله**: کوم شی چي د هر قيمتي وي هغه په د هر تکليف سره حاصليږي، نو د قدر د شپې په شان داسي لوی دولت څنګه بېله تکليفه په لاس راځي، ځکه نو ددې شپې تاريخ نامعلومه سو، د حضرت نبي کريم ﷺ قول دی چي:

ژباړه: ژر ده چي سي به ستاسو لپاره خير (يعني د تاريخ په نه معلومولو کي به يې ستاسي لپاره خير وي) ښکاره خبره ده چي که يې چيري تاريخ معلوم سوی وای، بيا به يې دومره قدر او برکت نه وای، دا داسي مثال لري لکه د جمعي په ورځ کي چي د دعا د قبول

۱- فتاوي محمديه، ټوک۱۱، ص۸۹.
۲- فقه الاسلامي وادلته، ټوک۲، ص۱۶۲۲، مکتبه فريديه.

لپاره هغه ساعت نامعلوم دی چي دعا په کښې قبليږي او لکه د خداي ﷻ په نومونو کي چي اسم اعظم پټ دی او يا دا چي د الله ﷻ رضا په نيکۍ کي پټه ده، نو دا شپه هم داسي ده. (١) مفسير القران علامه ابن کثير وايي: دديِ شپې د پټوالي حکمت دا دی چي ددې شپې طلب کوونکی به د ټولي مياشتي د عبادت غم وخوري. (٢)

## د قدر د شپې فضيلت

٣٢_ **مسئله**: د حضرت انس ﷺ څخه روايت دی، دی مبارک وايي: رسول الله ﷺ وفرمايل چي کله د قدر شپه راسي نو جبرانيل ﷺ او ملائيکي د اسمان څخه راکښته کيږي او درود او سلام وايي پر هر بنده چي ولاړوي او که ناست چي ذکر د الله پاک ﷻ کوي (٣) همدارنګه عبادت او اطاعت کول ددې شپې خير او بهتر دی تر عبادت د زرو مياشتو (٤)
دحضرت ابي هريرة ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل چا که رونه کړل شپه د قدر په ايمانداری او دينداری سره وبه بخښل

١- فقه الاسلامي وادلته، توک٢، ص١٦٢٢، مكتبه فريديه
٢- تفسير خازن، توک٤، ص٤٥٢، مكتبه فاروقيه
٣- تفسير خازن،توک٤،ص٤٥٣،مكتبه فاروقيه- الترغيب والترهيب،توک٢،ص٢١،مكتبه محموديه- مشكواة شريف،توک١،ص١٨٢،مكتبه دارالاشاعته العربيه - مكاشفته القلوب، ص٦٢٠
٤- زبدة التفسير، ص٥٩٨

سي ده لره هغه مخکني ګناهونه.(١)

د حضرت بي بي عايشي ﷺ څخه روايت دی چي دا مبارکه وايي ما درسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه يارسول الله که چيري موږ د قدر شپه وويـنـو مـوږ بـه څـه وواېـو پـه دغـه وخـت کـي؟ حـضرت محمد ﷺ راته وويل دغه لاندي دعـا ووايـاسـت «اللهم انک عفو کريم تحب العفو فاعف عني».(٢)

پـه يـوه حديث شريف کي راغلي دي، کله چي سهار سي حضرت جبرائيل ﷺ ووايي: آی ملائيکو! د حـرکت وخت دی درځئ چي خو (نو) ملائيکي ﷺ ووايي چي الله ﷻ له مسلمانانو سره څه وکړل؟ جبرائيـل ﷺ ووايـي چـي خـدای ﷻ مسلمانانو ته د رحمت پـه نظر وکتـل او بخښنه يي ورتـه وکړه خو دغه څلورکسان نه دي پکښي شامل:

١- هغه څوک چي همېشه شراب څښي.

٢- هغه څوک چي مور او پلار ازار وي.

٣- هغه څوک چي وصله رحمي نه لري.

۴- هغه څوک چي تر درو ورځو زيات د چا سره خبري نه کـوي. واثلة ﷺ وايي: رسول الله ﷺ وويل: د قدر شپه يوه روښانه شپه ده. په دغه شپه کي نه يخ وي، نه ګرمي. نه وريخ وي، نه باران. که څه هم لمر

---

١ - الترغيب والترهيب، ص ٢٥ دوهم ټوک مکتبه محموديه

٢ - تفسير خازن، ص ٣٥٢ دوهم ټوک مکتبه فاروقيه - فقه الاسلامي وادلته، المطلب الثاني فصل رمضان ص ١٦٢۴ دريم ټوک مکتبه فريديه

راوخېژي مګر رڼا به نه لري. په بل روايت کې راغلي دي په دغه شپه کې څلور بيرغونه د اسمان څخه راکښته کيږي د رحمت بيرغ، دکرامت بيرغ، د حمد بيرغ، دبخښني بيرغ چې درحمت بيرغ دکعبې شريفې پربام دريږي دکرامت بيرغ پر سخره دريږي (سخره هغه ډبره ده چې په بيت المقدس کې ده)، د حمد بيرغ د مځکې او اسمان تر منځ دريږي او دبخښني بيرغ د رسول الله ﷺ پر قبر دريږي او بل داچې په دغه شپه کې د قرآن شريف يو ايت لوستل د نورو ورځو د قرآن کريم تر پوره ختم لاډېر ثواب لري. انس ﷺ روايت کوي چې رسول الله ﷺ وويل: خدای ﷻ د ليلة القدر شپه يوازې زما امت ته ور کړې ده چې بل هيڅ امت ته يې نه ده ورکړې. [1]

## دقدر د شپې علم د حضرت نبي کريم ﷺ سره وو

۳۳_ **مسئله**: نبي کريم ﷺ ته دقدر دشپې علم ورکړل سوی ؤ، کله چې حضرت رسول الله ﷺ خپلو صحابه کرامو رضي الله عنهم ته دخبر ورکولو لپاره له خپل کور څخه راووت که ګوري چې په مسجد نبوي کې د دوو مسلمانانو په منځ جنګ دی. نبي کريم ﷺ د جګړې د ختمولو لپاره کوښښ وکړ، هغه ؤ چې له ذهن مبارک څخه يې ددې شپې تعين له منځه ولاړ، دا د جنګ نتيجه وه چې د جنګ په

۱- سراج السلام ص ۳۳-۳۴ تصنيف د مولوي سيف الدين کندهاري کارواني- فقه الاسلامي و ادلته المطلب الثاني فصل رمضان ص ۱۲۲۵ دريم ټوک مکتبه فريديه.

سبب يې داسې موقع له لاسه ووتله. نو ددې څخه معلومېږي چې د مسلمانانو په منځ کې جنګ کول خدای ﷻ ته ډېر ناخوښ دي او له دې سره سره ددې شيې د هېرېدو په سبب سره بل خبر او برکت هم رامنځ ته سو لکه څنګه چې نبي کريم ﷺ په خپله ويلي دي چې: د قدر د شپې له لټولو سره د امت د ډېر خير او برکت خبره ده او د دې شپې فکر او طلب کول داهم يو نعمت دی که چيري داشپه څرګنده وای نو دا لوی نعمت به نه وای. (١)

## د سر سايې شرطونه

٣٤_ **مسئله** : د سرسايې د واجبېدو لپاره درې شرطونه دي.لومړی: ازادي يعني سرسايه ورکوونکی به مريی نه وي.

دوهم: مسلماني يعني کافر به نه وي.

دريم : د داسې نصاب مالک ګرځېدل چې تر اصلي ضرورت زيات وي. اصلي ضروريات لکه د استوګنې کور، د اغوستلو جامې، د کور ضروري سامان لکه آس، بايسکل يا بل داسې د سپرېدو شی، اصلحه، د ضرورت په وخت کې خادم او داسې نور د عيال لپاره ضروري شيان او همدارنګه به له پور(قرض) څخه خلاص وي. (٢)

پر دغه مال باندي د کال تېرېدل شرط نه دي همدارنګه پر دغه مال باندي ګټه شرط نه ده او نه د مال بقاء (پاته کېدل) شرط دي. په

---

١ - انور الباري شرح البخاري، ټوک٢، ص١٣١.

٢ -عالمګيري ص ١٩١ لومړی ټوک مکتبه رشيديه- فقه الاسلامي وادلته ص ٢٠٣٧ دريم ټوک مکتبه- فريديه

سرسايه کي بلوغ او عقل هم شرط نه دی ځکه چي پر کوچني او لېوني باندي هم سر سايه واجب ده نوکه چيري د کوچني او لېوني قريب او سر پرست سر سايه اداء نه کړه ګنهګار دی. (۱)

تردي چي پر نابالغ او پر لېوني هم سر سايه ورکول واجب ده، د هغو وليان (سرپرستان) بايد د هغوی سرسايه ورکړي
که چيري ولي (سرپرست) يې سرسايه اداء نه کړي او دوی په خپله شتمن وي نو دوی دي يې خپله تر بالغېدو او له لېونتوب څخه تر رغېدو وروسته سرسايه ادا کړي. (۲)
پر نيکه باندي دا لازمه ده چي د لمسيانو سر سايه که که چيري مسکينان وو ورکړي خو د لور د زامنو سرسايه ور باندي نسته که څه هم مسکينان وي. داپه هغه وخت کي چي پلار يې مړ وي. (۳)

## تر ټولو غوره اوښه سرسايه

۳۵_ **مسئله** : که د غنمو يا اوړ بشو قيمت ورکړل سي نو دا تر ټولو ښه سرسايه ده. که د ارزانۍ وخت ؤ نو نقدي وربيې ورکول ښه دي او که قېمتونه لوړ وو په هغه وخت کي بيا د خوراکي شيانو ورکول غوره دي خو دا ښه او مناسبه ده چي په دغو شيانو کي تر ټولو د ګران شي قيمت ور کړل سي ځکه چي، په حديث شريف کي راغلي

۱ - فقه علي المذهب الاربعه صـ ۵۳۱ لومړی ټوک مکتبه وحيدي کتب خانه
۲ - فقه علي المذهب الاربعه صـ ۵۳۰ لومړی ټوک مکتبه وحيدي کتب خانه-
۳ - فقه الاسلامي و ادله صـ ۲۰۳۷ لومړی ټوک مکتبه فريديه)-

دي (اناوسع الله فوسعوا) کله چي پاک خداي ﷻ تاسو ته زيات څه در کړي نو تاسي هم څه زيات شی ورکړی. (۱)

يادونه: الف: که يوچاديو عذر له مخي در مضان مبارک د مياشتي روژه وه نه نيوله نو پر هغه باندي هم سرسايه ورکول واجب ده څکه په سرسايه کي دروژي نيوونکی او نه نيوونکی کوم فرق نه سته.

ب: که چيري د يو سري دوه زامن وي هرڅه چي دوی دواړه ګټي هغه خپل پلار ته ورکوي خو د زامنو سره څه شي نه پاته کيږي خو بيا هم پر دغه زامنو باندي د سرسايي ورکول واجب دي.

پر دغه مال باندي د کال تيرېدل شرط نه دی همدارنګه پر دغه مال باندي ګټه شرط نه ده او نه دمال بقاء (پاته کېدل) شرط دي.

په سرسايه کي بلوغ اوعقل هم شرط نه دی څکه چي پر کوچني اوليوني باندي هم سرسايه واجب ده نو که چيري د کوچني اوليوني قريب اوسرپرست سرسايه اداء نه کړه ګنهکار دی. (۲)

تردې چي پر نابالغ اوپرليوني هم سرسايه ورکول واجب دي، دهغو وليان (سرپرستان) بايد دهغوی سرسايه ورکړي، که چيري ولي (سرپرست) سرسايه اداءنه کړي اوهغه په خپله په دغه وخت کي شتمن وي نو دی دي يې خپله تربالغېدو اوليوتوب څخه تررغېدو وروسته اداء کړي. (۳)

۱-عالمګيري ص ۱۹۱ لومړی توک مکتبه رشيديه.
۲-فقه على المذهب الاربعه ص ۳۱ الومړی توک مکتبه وحيدي کتب خانه.
۳-فقه على المذهب الاربعه ص ۳۰ الومړی توک مکتبه وحيدي کتب خانه.

پرنيکه باندي دا لازمه ده چې دلمسيانو سرسايه ورکړي کـه چيري مسکينان وه ، خو دلور دزامنو سرسايه وربانـدي نسته کـه څـه هـم مسکينان وي ، داپه هغه وخت کې چې پلار يې مړ وي .([1])

## سرسايه څه وخت واجبېږي

۳۶_ **مسئله**: سرسايه دکوچني اخـــتردشپې دسپېدو راختلو سره سم واجـــبېږي نـو څکـه پـه هغـه چاچي ترسـهار کېـدو دمخـه مرسـي اويافقير سي نوپرهغه باندي سرسايه واجب نه ده ، هـــمدارنګه کـه يې ترســـهار کېدلو دمخـه اسلام راوړی او يادمال خاوند سو ، يا کوچني هلـک يـا نجلـۍ ترســـهارکېدو دمخـه وزيږېـده نـو پـر دغـو ټولو باندي سرسايه واجب ده .([2])

## دسرسايې حکم

۳۷_ **مسئله** : سرسـايه واجـب ده فـرض نـه ده څکـه چـي دسرسـايې منکرنـه کـافرکېږي ، دعبـدالله بـن ثعلبـه ﷺڅخـه روايـت دی چـي رسـول اللهﷺفرمـايي : دکـوچني اخترڅخـه يـوه ورځ يـادوې ورځـي مخکـي خطبـه وويـل اوپـه خطبـه کـي يـې داسـي وويـل چـي : تاسـي دهرحر (ازاد) ، عبد(مريي) ، صـغير (کوچني) ، کبيـر(غټ)څخـه يـوه کاسه داوربشو اوخرما ورکړئ . نورسول اللهﷺپه دي حديث شريف

---

۱- فقه الاسلامی وادلته صـ ۲۰۳۷ لومړی توک مکتبه فریدیه).

۲ فقه الاسلامی وادلته صـ ۲۰۲۱ دریم توک مکتبه فریدیه . - بدائع الصنائع صـ ۲۰۷ توک دوهم مکتبه رشیدیه .

کي امر وکړی اوامر د واجب لپاره دی .([1])
په بل حدیث شریف کي دابن عمر ﷺ څخه روایت دی ، دی وایي چي رسـول الله ﷺ فرض وګرځـول سـرسایه پر خلکو باندي یوه کاسه دخرما یایوه کاسه داوربشو دهرحر(ازاد) ،عبد(مریي) ، ذکر (نارینه) ، انثی (ښځه) دمسلمانانو څخه ، او پوبل حدیث شـریف کي دابي سعید ﷺ څخه روایت دی ، دی وایي چي موږ درسـول الله ﷺ په وخت کي سـرسایه ورکول یوه کاسه دخـوراکي شیانو یایوه کاسه دخـرما یایوه کاسه داوربشو یایوه کاسه دوڅکو یایوه کاسه دوچو شبدو چي کوچني به هم ورسـره وه ([2])
رسول الله ﷺ په هغه کال سرسایه ورکړه چي روژه فرض سوه .

## دسرسايي فايده

۳۸_ **مسئله**: دامعلومېږي چي دادخوشحالۍ ورځ ده اوپه دغه ورځ داسلام شان اوشوکت په دېرښت سره لیدل کېږي اودصدقي په ورکولو سره دغه مقصدنور هم پوره کېږي ،سربېره پردي په سرسايې سره دروژي پوره والی هم کېږي ، دسرسايې په ورکولو سره روژه قبوله کېږي اوپه دي کي دالله ﷻ عظیم احسان چي موږته یې دروژي نیولو توفیق راکړ او بل داچي شکراداء کول هم دي ، په یو حدیث شریف کي راغلي دي چي شتمن دي هم سرسایه ورکړي

۱- فقه على المذاهب الاربعه صـ۵۲۰ لومړی توک مکتبه وحيدي کتب خانه .
۲- فقه الاسلامي وادلته صـ۲۰۳۴ دریم توک مکتبه فریدیه .- فتاوی تاتارخانیه صـ۲۱۲ دوهم توک مکتبه محمودیه .

او فقیـر دي هـم ځکـه چي الله ﷻ د دغـه سرسـايي پـه ورکولـو سـره شتمن پاک ګرځوي او هغـه څوک چي د نصاب خاوندنه وي ترهغـه زيات شی ورکوي او بل داچي همت اوغیرت به يې زيات سي.(١)

## دسرسايي په اړه ضروري مسئلې

۳۹_ **مسئله** : زمونږ دمذهب دعامو اصحابو رحمة الله علیهم په نزد دسرسـايي وخت دانسان تولـه عمردی که چیري يوچاسرسايه په خپـل وخت کـي ورنه کړه نو دده غاړي ترهغه وخته پوري نه خلاصيږي ترڅوچي دی يې په خپل ژوندکي ورنه کړي.(٢)

که چیـري پريوچاباندي سرسـايه واجـب سـوه اوهغـه نـه ورکـول او وروسته بيامسکين سو هیڅ شی ورسره پاتـه نـه سـول نو بيـاهم دده غاړي نه خلاصـيږي ځکـه دی خو پاتـه دی يعني مرنـه دی ، يوسړی به داسوال نه کوي چي که چیري مال هلاک سي نو زکـات بيـا نـسته نو سرسايه ولي ستـه ؟

هغه سړي ته مونږ داسي ځـواب ورکـوو چي : زکات خوپرمال باندي واجبـدی اومـال خوتولـه لـه منځـه ولاړی نوزکـات پرڅـه شـي بانـدي ورکړي اوسرسايه خوپر(تا)باندي واجب ده اوته خوژوندی يې نو پـه دي وجـه سرسـايه دغـاړي ځخـه نـه سـاقطيږي ، اوددې سرسـايه

١- مظاهر حق صـ۵۸ دريم ټوک .
٢- بدائع والصنائع صـ۲۰۲ دوهم ټوک مکتبه رشيديه .

ووکولو ته اداء ویل کېږي داقضاء نه ده .(۱)
که چیري دیوسړي مال داخترد ورځي دسپېدو وروسته له منځه ولاړی نو ددغه سړي څخه سرسایه نه ساقطېږي څکه امام صاحب رحمه الله دسرسایې واجبېدل ، داختري واجبېدل اودخپلوانو دنفقي واجبېدل په دې شرط سره وایي چي یوازي اویوازي قدرت پیدا کړي یعني دپیسوپاته کېدل شرط نه بولي چي هغه نوشرعي نصاب دی بلکي یوازي قدرت شرط بولي چي داختر په شپه دسپېدو څخه وروسته سړی قدرت پیدا کړي بس نوپردغه سړی باندي سرسایه واجب ده .(۲)

## اخترڅه ته وایي

۴۰_ **مسئله** : هرڅوک پوهاني اختراودخوښۍ ورځي لري اوپه هغه ورځ خلک اودخپل ژوند اورواج سره سم ښې اونوي جامې اغوندي ، ښه ښه خوراکونه کوي اوپه نورو لارو هم خپلي خوښۍ ښکاره کوي ، نو په اسلام کي هم داسي ورځي معلومي سوي دي چي یوه دکوچني اختر ورځ اوبله دلوی اختر ورځ ده ، همدا دمسلمانانو لپاره ملي اومذهبي ورځي دي ، له دې ورځوپرته که مسلمانان نوري ورځي لمانځي نوهغه په شریعت مقدس کي اصلاً

۱- بدائع والصنائع صـ۲۰۸ دوهم ټوک مکتبه رشیدیه .- فقه علی المذاهب الاربعه صـ ۳۱۵ لومړی ټوک مکتبه وحیدي کتب خانه.
۲- فقه الاسلامي وادلته صـ ۲۰۴ دریم ټوک مکتبه فریدیه .- فتاوی تاتارخانیه صـ ۲۰۷ دوهم ټوک مکتبه محمودیه .

ناروا دي ، بلكې داسلام لـه نظره هغه بـوازي خرافات دي دمسلمانانو داسې دخوشحالۍ تولنیز ژوند هغه مهال راپيل سو چې رسول الله ﷺ مدینې منورې ته هجرت وكړ ، دهمدې دواړواخترونو لړۍ دهم هغه مهاله راپيل سول لكه څرنګه چې ښكاره خبره ده دروژې دمیاشتي وروسته كوچنی اختر راځي اوذالحجې دمیاشتي لسمه دلوی اختر ورځ ده په كوچني اختر كي چي هر مسلمان نصاب ولري نودخپل كوردهر نفر پرسربه سرسايه وركوي اودلوی اختر په ورځ كه چيري يومسلمان دخپل كور تول سامان ولري هغه چې دی ضرورت ورته لري اودبل چاپور هم نه وي پربانـدي همدارنګه دی دیوشي نـصاب ولـري مثلاً (دسپينو زرودوه سوه درهمه) اوبل نصاب نو اختری (اضحیه) به كوي[1]

## وعیدګاه ته دښځوتلل

۴۱_ **مسئله** : لكه څرنګه چي دښځوتلل ټولولمونځونو ته منع دی ، هغه كه دشپې وي اوكه دورځي ، كه ځوانه ښځه وي اوكه سپين سري ښځې وي په دي زمانه كي مسجدته دښځوتلل مكروه دی ځكه دفساد اوفتني وېره ده ، درسول الله ﷺ په زمانه كي دښځوتلل ومسجدته دمسئلو دزده كړې په خاطرؤ خواوس هغه مقصدپاته نه دی ځكه چي شرعي احكام په عام ډول سره خپاره دي

۱- بحرائق كنزالدقائق ص ۲۷۶ دوهم ټوک مكتبه رشیدیه . - فقه الاسلامي وادلته البحث الرابع صلاة العدين ص ۱۳۸۶ دوهم ټوک مكتبه فریدیه .

اوښځو ته په پرده کې ګرځېدل ښه او مناسب دي او دا حکم عام دی که په حــرم شـريف کې وي ، که په مـسجد نبوي کې او يـا هم په بل کوم ځای کې نو د ښځو عـزت او ايمان خوندي پاتـه کېـدل په دې کې دي چې د اخـتـر لمانځه ته هم ولاړه نسي ځکه پر ښځو د اخـتـر لمونځ واجب نه دی.(۱)

## دکوچني اختر وروسته شپږورځې روژه نيول

۴۲_ مـسئله : کله چې د روژې د مياشـتې روژه پـوره سـي نـو الله ﷻ د مسلمانانو د خوشحالۍ په موخه د کوچني اختر ورځ پيدا کړې ده خو د کوچني اختر په ورځ روژه نيول حرامه ده ، ځکه د غه ورځ الله ﷻ د خوشحالۍ لپاره پيدا کړېده تر څو مسلمانان د خوشحالۍ ځرګندونه وکړي چې الله ﷻ د روژې نيولو او تراويح کولو توفيق ورکړی وو نو هر څوک چې په دې ورځ روژه نيسي دا په دې معنی ده چې د الله ﷻ خوشـحالۍ يې خوښه نه ده ، خو تر دغه لومړۍ ورځې وروسته په دوهمه ورځ روژه نيـول جـائزه ده بلکې زيـات ثـواب هـم لـري ځکه د مسلمانانو لپاره دا ډيرلوی همت او غيرت دی چې تر يوې مياشتې وروسته بيا هم روژې نيسي د دغه روژو د ارزښت په اړه رسول الله ﷺ فرمايي : څوک چې د روژې د مياشتي روژه ونيسي ، وروسته بيا

---

۱- هدايه ص ۱۵۲ ـ ۱۵۵ لومړی توک مکتبه رشيديه . - شرح الوقايه ص ۲۲۶ لومړی توک مکتبه حنيفيه . - کنزالدقائق ص ۴۵ لومړی توک مکتبه رشيديه . - فقه الاسلامي وادلته ص ۱۱۷۲ دوهم توک مکتبه فريديه . - بدائع والصنائع ص ۶۱۲ لومړی توک مکتبه رشيديه . - مبسوط للسرخسي ص ۴۳ دوهم توک مکتبه الغفاريه .

شپږ ورځې پسې دستي روژه ونيسي دومره ثواب لري لکه ټول عمرچې روژه ونيسي. (۱)

## دنوکانو دپريکولو لپاره خاص وخت

۴۳_ **مسئله** : امام ابوحنيفه ﷫وايي چې دنوکانو پرې کولو لپاره خاص دجمعې ورځ تاکل نه دي پکار خکه دامکروه کاردی خو نوکان چې هروخت غټ سول بايد پرې سي .
دپرې دغچې کولو لپاره يوازي اوږدوالی طرف نه دی پکار ، هر وخت چې پېره ترقبضه (تريوه موټ) اوږده سوه بايد دبغلو او اوږدوالي څخه غچې سي څکه رسول الله ﷺهم داسې کول يعني دبغلو او اوږدوالي څخه يې غچې کول . (۲)

## دخوابنې سره په خونه کې ګډ ژوند

۴۴_ **مسئله** : دخاوند لپاره دانه دي رواچې خپله مور اوخپله ښځه په يوه خونه کې ژوندکولو ته ارکړي څکه چې خاوند اوخپله ښځه په تکليف کېږي ولې چې دخپلې ښځې سره په داسې ګډ ژوند کې کوروالي کول مکروه کاردی خو ابوبکر صديق﷛ په همېشه کې

۱- صحيح المسلم عن ابی ايوب انصاري ﷛ باب استحباب صوم ستة ايام من شوال ص ۵۸۲ دريم توک مکتبه البشرای .
۲- ملتقط فی فتاوای حنيفيه ص ۲۷۰ .

داسي وخت کوروالي ته جواز ورکړی دی چي د دوی داسي ګومان سي چي دانورانسانان بیده دي او په موږباندي نه خبرېږي .(۱)

## دلمانځه څنډېدل

۴۵_ **مسئله** : که چیري یوه قابله (دایي) پردي باندي ببریدل چي داکوچنی به مړ سي نو لمونځ دي وځنډوي .
الف : که چیري یوچاپر داسي شي باندي لمونځ وکړی چي هغه شی مردارؤ خو هغه طرف چي ده لمونځ پروکړی هغه پاک ؤ نو لمونځ یې صحیح دی په دې شرط چي دده دلمونځ کولو په وجه هغه مردار طرف نه ښورېدی .
ب : که چیري یوچا په لمانځه کي یو نوشتې ته وکتل او په پوه سو معنی یې ورته معلومه سوه لمونځ یې نه فاسد یږي .
ج : زاړه قرانکریمونه ، سپارې او کتابونه چي کارنه ورځخه اخیستل کېږي نو ښه خبره داده چي په یوپاک ټوکر کي ویېچل سي او په یو پاک ځای کښېي په خاوره کي پټ سي .(۲)

## دکفرالفاظ

۴۶_ **مسئله** : که دکوم مسلمان له خولې څخه داسي الفاظ راووزي چي دکفرخبره ورڅخه جوړېږي نو په هغه کي هم تاویل (ښه فکر) په

۱- ملتقط فی فتاوای حنیفیه ص ۱۰۷.
۲- ملتقط فی فتاوای حنیفیه ص ۳۰-۳۲.

کاردی بایدد کفرفتوای وربانـدي ونـه سـي ، خوبایـدچي دداسـي خبرو او الفاظو څخه په کلکه مخنیوی وسي .([1])

## علماؤ ته ښکنځل کول

۴۷_ مسئله : یوخـاص عـالم تـه پـه ښـکنځلوکي دکفرخبر نـه راځـي خوکه ټولو علماو رحمة الله علیهم ته ښکنځل کوي نو ددې سړي سره ناسته ، خوراک اوڅښاک نـه دي پـه کـارترڅوپوري چـي ددې ګناه څخه توبه ونه کاږي.([2])

## دږیرې خریل حرام دي

۴۸_ مسئله : الله ﷻ په قرانکریم کي فرمـایي ژبـاړه: هغـه چـي رسـول الله ﷺ وتاسـوته راوړي دي پـه هغـه بانـدي عمـل وکـړی او هغـه چـي رسول الله ﷺ ورڅخه منع کړي یاست دهغه څخه ځپل ځانونه وساتی ددې ایت شریف څخه معلومه سوه چي رسول الله ﷺ خبره دالله ﷻ خبره ده نو پـه کـارده چـي درسول الله ﷺ خبـره ومنـو ځکـه چـي داد مسلمانانو لپاره ددنیـااواخرت دسعادت اوکامیابۍ لاره ده ، ږیره درسول الله ﷺ سنت طریقـه ده او پـه یـوه حـدیث شــریف کـي یـې فرمایلي دي : هــرچاچي زماپـه سنت پـوري لاس ټینـګ کـړ پـه هغـه وخت کي چي پـه امت کـي فسـادوي نوددغـه سـړي لپـاره دسلو

۱-فتاوای محمودیه ص ۲۵۲ یوولسم ټوک .
۲-امدادالاحکام ص ۱۱۸ اول ټوک .

شهيدانو ثواب دی، په بل حديث شريف کې رسول الله ﷺ فرمايي:
څوک چې زما د سنتو سره مينه ولري نو هغه زما سره مينه لري او څوک چې زما سره مينه لري هغه به زما سره په جنت کې وي. (١) ډېره د رسول الله ﷺ د ډېرو ضروري سنتو څخه ده، په اوس وخت کې چې د ځينو خلکو داخيال دی چې دا به د رسول الله ﷺ طبعي سنت ؤ او يا د عربو له رواج سره سم به رسول الله ﷺ ږيره پرې ايښې وه دا نو ښکاره ګمراهي ده، ډېرې په هکله ډېر روايتونه سته چې په هغه کې رسول الله ﷺ ډېرې پرېښودلو تاکيد کړی دی لکه دغه روايت چې د ابن عمر رضي الله عنه څخه دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: د مشريکانو سره مخالفت وکړی ږيره غټه کړی او بريتونه کوچني کړی. (٢) دا چې ځيني خلک ږيره غڅي کوي او يا يې خريي دا د مجسو (اورپرستانو) عمل دی، مسلمانان بايد ډېر کوښښ وکړي چې د کفارو سره خپل ځانونه برابر نه کړي، ځکه رسول الله ﷺ په يوه حديث شريف کې فرمايلي دي: هرڅوک چې د هرچا سره خپل ځان مشابه کوي نو هغه به د هغوی په ډله کې راپورته کېږي. همدارنګه په يوه بل حديث شريف کې د ابن عمر رضي الله عنه روايت دی چې رسول اکرم ﷺ وفرمايل چې: د سنتو څخه يو د نامه لاندې ويښتان خريل دي، د نوکانو پرې کول

١- (من احب سنتی فقد احبنی ومن احبنی کان معی فی الجنة) مجموعه الرسائل ص ٢٢-٢٠ تصنيف مولوي سيف الدين کندهاري.
٢- (عن ابن عمر رضي الله عنه عن النبی ﷺ قال خالفوا المشرکين وفروا اللحی واحفوا الشوارب. فتح الباری شرح البخاری ص ٢٢٨ لسم ټوک مکتبه رشيديه. - عمدة القاری شرح البخاری کتاب اللباس ص ٧١ دوه ويشتم ټوک مکتبه رشيديه

دي او دبريتونو غځېي كول دي او دابن عمر ﷺ په يوه بل روايت كښې راغلي دي چې نبي كريم ﷺ وفرمايل : بريتونه ډېر كوچني غځې كړئ او ږيره اوږده كړئ .(١)

## دږيري اندازه

٤٩ـ **مسئله** : يو موټ ږيره پرېښودل سنت ده ځکه د حضرت عبد الله ابن عمر ﷺ څخه روايت سويدى چې رسول الله ﷺ به ږيره د اوږدوالي او بغلو له خوا څخه كوچنۍ كول .(٢)

يو وخت حضرت عمر ﷺ د يوسړي غټه ږيره وليده نو ديوه موټ څخه زياته ږيره يې ورڅخه غځې كړه ، او د حضرت ابوهريره ﷺ څخه هم دغسې روايت رانقل سويدى .(٣)

زموږ د دين او مذهب علماء كرامو رحمة الله عليهم د دغه روايتونو په رڼاكي د ږيري لپاره يو موټ اندازه سنت بللي ده .(٤)

داچې ږيره په دين كې څونه اهميت لري ، علامه حصفكي ﷫ وايي چې د سنت په پرېښودلو سره كه څه هم انسان دوږخ ته نه ځي ليكن هغه به د رسول الله ﷺ د شفاعت څخه محروم وي .(٥)

١- عمدة القاري شرح البخاري ص٧٢ دوويشتم توک مكتبه رشيديه .- فتح الباري شرح البخاري ص٣٢٧ لسم توک مكتبه رشيديه .
٢- فتح الباری ص ٣٢٩ لسم توک مكتبه رشيديه .
٣- عمدة القاري ص ٧٢ دوويشتم توک مكتبه رشيديه .
٤- فتاواى هنديه ص ٨٨ پنځم توک .
٥- ردمختار كتاب الخطر والاباحة لومړي توک .

دړېري سپين وينښتان ايسته کول مکروه دي (۱)
رسول الله ﷺ وفرمايل : داوېښتان مه باسئ ځکه دا به دقيامت په ورځ دمسلمانانو لپاره نور وي (۲)
ږيره دي په دې خاطر پرمخ باندې کړه وړه هم نه پريږدي چې بيا خلک ده ته زاهداوتقواداره ووايي اوله دنيا څخه يې بې پروا وګڼي ځکه دا هم مکروه کاردی ، دلاندې شونډي څخه چې لاندې څه وېښتان دي دهغوکښل هم مکروه دي .امام احمد رحمه الله اوامام يوسف رحمه الله دغاړې دوېښتانوايسته کولو اجازه ورکړې ده خو عاموحنفي فقهاؤدې کارته هم مکروه ويلي دي .(۳)

## په ږيره باندې درنګ استعمال

۵۰ـ **مسئله** : دوېښتانوپه لړکې يوه ضروري مسئله په ږيره باندې رنګ لګول دي ، رسول الله ﷺ په حديث شريف کې فرمايلي دي چې يهوداونصارا په ږيره باندې دسوررنګ استعمال نه کوي نوتاسې په ږيره سوررنګ استعمال کړئ (۴)
دمکې شريفې دفتح په وخت کې دحضرت ابوبکرصديق رضي الله عنه پلار حضرت ابوقحافه په داسې حال کې درسول الله ﷺ په خدمت کې

۱- شرح مهذب ص ۲۹۲ لومړي توک
۲- سنن ابوداود ص ۵۷۸ دوهم توک مکتبه رشيديه .
۳- فتاوای هنديه ص ۲۵۸ پنځم توک .
۴- بخاري شريف باب خضاب ص ۸۷۵ دوهم توک مکتبه الغفاريه . - سنن ابوداود باب خضاب ص ۵۷۸ دوهم توک مکتبه رشيديه . - عمدة القاري کتاب الباس ص ۷۷ دوويشتم توک مکتبه رشيديه .

حاضر کړل سو چي د سر او ږيري ويښتان يې ببخي تک سپين وه نو په دې وخت کي رسول الله ﷺ وفرمايل چي د تور رنګ څخه ماسيوا دې په بل رنګ سره سر او ږيره وررنګ کړل سي (١)
که څه هم په خپله د رسول الله ﷺ د خضاب د استعمال او نه استعمال په باره کي د روايت کوونکو رايي مختلفي دي ليکن دا خبره ثابته ده چي ابوبکر صديق ﷺ او حضرت عمر ﷺ د خضاب استعمال کړی دی. (٢)

## د رنګ ډول

٥١_**مسئله**: دا چي کوم ډول رنګ استعمال سي، په يوه حديث شريف کي راځي چي حضرت عبدالله ابن عمر ﷺ به زعفراني رنګ استعمالاوه د طبراني په يوه روايت کي داسي راغلي دي چي رسول الله ﷺ د مديني منوري انصاروته د سره رنګ د استعمالولو ښوونه کړېده. (٣)
په يو بل حديث شريف کي راځي چي په اخيره زمانه کي به يو قوم وي چي په ږيره باندي تور رنګ استعمالوي نو د جنت بوی به پيدا نه کړي (٤)
همدارنګه په يوه بل حديث شريف نبي کريم ﷺ فرمايلي دي چي الله ﷻ به هغه ځاته چي په تور رنګ سره يې ږيره توره کړې وي هيڅ

١-ابوداود عن جابر ﷺ باب الخضاب صـ٥٧٨ دوهم توک مکتبه رشيديه .
٢-ابوداود عن جابر ﷺ فی الخضاب صـ٥٧٨ دوهم توک مکتبه رشيديه .
٣-فتح الباري شرح البخاري صـ ٣٢٢ لسم توک مکتبه رشيديه .
٤-عمدة القاري صـ ٧٩ دوويشتم توک مکتبه رشيديه .

توجه نه کوي ، اودطبراني په روايت کي رسول الله ﷺ داسي چانه
چي په تورړنګ سره يې ږيره توره کړې وي ښېراکړي ده اوويلي يې
دي چي الله ﷻ دي دهغه مخورتورکړي . (۱)
کـه څـه هـم دسـنن ابـوداوداول ذکرسـوي روايـت ماسـيوا دنـورو
روايتونو دصحت په باره کي محدثين حضرات اتفاق نه لري خو په
خپله داخړي ذکرسوي روايت په باره کي دابن حجر عسقلاني داسي
بيان دی چي : (اسناده لين يعني په اسنادوکي يې نرمي سته .(۲)
خوبياهم دځينو بزرګانوڅخه دتورړنګ استعمال هم ثابت دی لکه
حضرت حسن اوحسين رضی الله عنهما اوپه تابعينوکي ابن شهاب زهري ،
ابن سيرين ، عروه بن زبير رحمة الله عليهم اودعبدالله بن عباس په باره کي
دتورړنګ استعمال رانقل سوی دی .(۳)

## دخوراک کولوسنت طريقه

۵۲_ **مسئله** : دخوراک په وخت کي بايد کوښښ وسي چي په سنت
طريقه باندي وخوړل سي نوپه دې اساس به زموږخوراک زموږ لپاره
دعبادت حيثيت پيداکړي دخوراک سنت طريقه په لاندي ډول ده :
د خوراک په وخت کي بايد له راسته لاس څخه کارواخيستل سي (۴)
بـل داچي خوراک بايدپه دروګوتوسره وسي څکه چي د کعب بن

۱- عمدة القاري كتاب الباس ص ۷۹ دوويشتم ټوک مكتبه رشيديه .
۲- فتح الباري شرح البخاري ص ۳۲۲ لسم ټوک مکتبه رشيديه .
۳- عمدة القاري شرح البخاري ص ۷۹ دوويشتم ټوک مكتبه رشيديه .
۴- اذااكل احدكم فلياكل بيمينه بصحيح المسلم كتاب الاشربة ص ۱۲۰ شپږم ټوک مكتبه البشرای .

مالک ﷛ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ په درو ګوتو سره خوراک کاوه .(١)

اصلاًخبره داده چې بيله ضرورته بايد دلاس تولـه برخه دخوراک په وخت کي ونه لړل سي خوهغه اندازه بايدپه کارولوېږي چې کارور څخه اخيستل کېږي څکه درسول الله ﷺ په زمانه کي څنګه چې خرمااوډوډۍ عامه غذاوه نو په دروګوتو سره به په ډېره اسانتيا سره خوراک کېدلای سوای خو په دې زمانه کي دځينو خوراکونو لپاره څلورګوتو ته اړتياپيدا کېږي نوبياکه چيرې په څلوروګوتو باندي خوراک وکړل سي هم پروانه لري . رسول الله ﷺ دخوراک څخه وروسته دغاب ځتل اودګوتو ځتل خوښ بللي دي اوداسي يې فرمايلي دي چې په دسمال باندي دي لاس نه وچيرې څوک څه پوهيږي چې په کومه ډوډۍ کي برکت پروت دی (٢)

له دې حديث شريف څخه دامعلومه سوه چې ترڅوګوتي ځتل سوي نه وي لاسونه دي نه مينځي اوبل دايوطبي مصلحت هم لري چې دخوراک په منځ کي په ګوتو پوري لعاب ومښلي اودځتلوپه وجه په خوله کي هم لعاب پيدا کېږي چې دالعاب دډوډۍ دهضمولو سره ډېر کومک کوي .(٣)

١-وكان رسول الله ﷺ ياكل بثلاث داصابع ، صحيح المسلم كتاب الاشربة صـ١٣٢ شپږم توک مكتبه البشراى .
٢-فتاواى هنديه باب في الاكل صـ ٣٣٧ پنځم توک مكتبه رشيديه . - ولايمسح يده باالمنديل حتى يلعق اصابعه لايدرى في اي طعامه البركته ، صحيح المسلم كتاب الاشربة صـ١٣٣ شپږم توک مكتبه البشراى
٣-صحيح البخاري لعوق الاصابع صـ ٨٢٠ دريم توک مكتبه الغفاريه .

اوبل داچي په خوراک کي داسي څه عمل کول چي هغه انساني صحت ته تاوان رسوی مکروه دي نو په دي اساس رسول الله ﷺ د خوراک اوڅښاک پرشي باندي دپوکولو څخه منع کړي ده .(١)
فقهاؤدانه ده خوښه کړي چي دخوراک شیان دي بوي کړل سي اويادي ګرم ګرم وخوړل سي .(٢)
داهم سنت طریقه ده چي خوراک دي دخپلي خواڅخه وخوړل سي اودغاب له منځه څخه خوراک شروع کول مکروه دی (٣)
څکه چي عمربن ابی اسلمة ﷺروایت کوي چي زه کوچنی وم درسول الله ﷺ په څنګ کي یعني ترروزني لاندي مي ژوند کاوه خو دډوډی په وخت کي مي لاس په کاسه کي هري خواته غزاوه نو هغه، چي حضرت بهترین ﷺراته وفرمایل : دډوډی خوړلو په وخت کي بسم الله ووایه ، په راسته لاس باندي خوراک کوه ، له هغه ځای څخه خوراک کوه چي درته نژدي دي .(٤)
رسول الله ﷺ په ولاړي باندي له خوراک څخه منع کړي ده (٥)
خوپه لوڅ سرسړه خوراک پروانه لري لیکن داکار مکروه او اسراف دی چي دډوډی مابین خوري اوڅنډي یې پریږدي داسي بیاپروانه

١-صحیح المسلم کتاب الاشربة ص١٢٧ دوهم ټوک مکتبه البشرای - جامع الترمذي ص٢٥٣ دوهم ټوک مکتبه رحمانیه
٢- عالمګیري باب فی الکراهة فی الاکل ص٣٣٧ پنځم ټوک مکتبه رشیدیه
٣- عالمګیري ص٣٣٧ پنځم ټوک مکتبه رشیدیه
٤-صحیح المسلم کتاب الاشربة ص١٢١ دوهم ټوک مکتبه البشرای
٥-صحیح المسلم کتاب الاشربة ص١٢٤ دوهم ټوک مکتبه البشرای - جامع الترمذي باب ماجاء في النهي عن الشرب قائما ص٢٥٢ دوهم ټوک مکتبه رحمانیه

لري چې يوه ډوډۍ پرېږدي اوبله ډوډۍ خوښوي .(۱)
دخــوراکي شيانوعيب بنکاره کول اوياويل هم نه دي رواځکه داد رســول الله ﷺ طــريقه وه چې کوم شی به يې خــوښ وو هغه به يې خــوړی اوکه بــه يې کــوم شــی خــوښ نــه وونــه بــه يــې خــوړی خــوعيب به يې نه پرلګوی .(۲)

## مسواک وهل

۵۳_ **مسئله** : درسول الله ﷺ لـه سنتوڅخه يو ډېرمهم سنت مسـواک وهل دي ځکه چې رسول اکرم ﷺ فرمايلي دي: که چيري زه په دې باندي نه ببريدلای چې زماپرامت باندي بـه سختي راسـي نومابـه د هر لمانځه لپاره دوی ته دمسواک وهلوحکم کړی وای .(۳)
خپله رسول الله ﷺ ډېر زيات مسواک واهه ځکه چې لـه وفات څخه يوڅوساعته مخکي چې دونده قوت يې هـم نـه درلوده چې پـه خپلـه يې مسواک وهلی وای خوحضرت عائشه ﷺ دده مبارک پـه اشـاره يـوه سـوه اومسـواک يـې لونـدکړی اوپـه خولـه مبارکـه کـې يـې وروګرځاوه ځکه نو ټولـه علماء کـرام رحمة الله عليهم پـه دې خبره باندي

---

۱- ولاباس بالاكل مكشوف الراس وهوالمختار. عالمګيري باب في الكراهة فی الاكل صـ ۳۳۶-۳۳۷ پنځم ټوک مكتبه رشيديه . - ولاباس بالاكل متكاناًاومكشوف الراس فی المختارومن الاسراف ان ياكل وسط الخبزيدع حواشيه - ردمختارصـ ۲۳۹ جلد الخامس مكتبه رشيديه .
۲- جامع الترمذي صـ ۱۰۱ لومړی ټوک مكتبه رحمانيه . - سنن ابوداود باب مسواک صـ ۷ لومړی ټوک مكتبه رشيديه . - فقه الاسلامي وادلته صـ ۴۵۲ دریم ټوک مكتبه فريديه . - بخاري باب سواک يوم الجمعه صـ ۱۲۲ لومړی ټوک مكتبه غفاريه
۳- صحيح البخاري باب ماعاب النبي ﷺ طعام صـ ۷۱۴ دریم ټوک مكتبه الغفاريه .

متفق دي چې مسواک وهل سنت دی ، په یوبل حديث شريف کې راځي چې سرورکائنات ﷺ فرمايلي دي چې مسواک دخولې پاکوونکی دی اودالله ﷻ رضا ده .([1])

## دمسواک وهلو وخت

۵۴_ مسئله : مسواک هروخت وهل ښه کاردی خوپه لاندې وختونو کې ډیرښه کاردی : ۱- دهراوداسه پروخت . ۲- دغاښونو د ژړوالي پروخت . ۳- دقرانکريم دتلاوت پروخت . ۴- دخولې دبدبويي پر وخت دغه بدبويي که دهوړې دخوړلو په وجه وي اوکه دبل شي دخوړلو په سبب وي ۵- له خوب څخه دويښيدو پر وخت . ۶- دبيده کيدو پر وخت . ۷- دخپلې ښځې سره دکوروالي څخه مخکې . ۸- له دباندې څخه کورته دراتلو پروخت .([2])

## مسواک بايددڅه شي څخه وي

۵۵_ مسئله : مسواک بايد له لرګي څخه جوړ وي خو لرګی بايدنرم وي چې غاښونه په ښه توګه پاک کړي او وری هم خوږنه کړي، د رسول الله ﷺ دپيلو(ونې)ول خاص درخته ده چې زياتره وخت مسواک ور څخه جوړېږي)مسواک ډيرخوښ وو. که چيرې مسواک نه وو يا

[1] جامع الترمذي ص۱۰۱ لومړي توک مکتبه رحمانيه . - سنن ابوداود باب مسواک ص۷ لومړي توک مکتبه رشيديه - فقه السلامي وادلته ص۲۵۴ لومړي توک مکتبه فريديه . بخاري باب سواک يوم جمعة ص۱۲۲ لومړي توک مکتبه غفاريه .

[2] - فقه الاسلامي وادلته ص۲۵۵ لومړي توک مکتبه فريديه .

دیوضـرورت پـه خاطربانـدي چانـه سـوای اسـتعمالولای نوبیـا د شهادت ګوتـه هـم کفایـت کـوي چـي دمسـواک پـه ډول کاروررخـه واخيسـتل سـي اوداوسـنۍ زمـانې برس هـم دغابښونو لپـاره دسـنت پرځای استعمالیږي خو د مسـواک ځای نه نیسـي. (۱)

## دمسواک وهلو طریقه اوداب

۵۶ـ **مسئله** : مسواک دي هم په اوږدوالي اوهم په بروالي سره ووهـل سي خوبنه خبره داده چي په ژبه دي يې په اوبو سره هم ووهـي اوپـه غابښونو دي په بروالي سره هم ووهل سي (۲)

مسواک دي دغابښونو په دننه اودباندي برخـو اوپراوری باندي دي هم ووهل سي اودستوني په پورتنۍ برخه دي هم کرار کرار وموښـل سي ، همدارنګه دي مسواک وهـل لـومړی لـه راسـتي خواڅخه پيـل سي ، پـه اخر کـي دي مسـواک بيرتـه پرې منځـل سـي اودمسـواک لپاره خاصه دعـاء نسـته خولـه پخوانيـو بزرګـانو ځخه ځيني داسـي توري رانقل سوي دي :(اَللّٰهُمَّ بَيِّضْ بِهِ اَسْنَانِيْ وَشَدَّبِهِ لَثَاتِيْ وَلَهَاتِيْ وَبَارِکْ لِيْ فِيْهِ يَااَرْحَمَ الرَّاحِمِيْنَ)(۳)

۱- فتاوای عالمګیري ص۷ لومړي ټوک مکتبه رشیدیه.
۲- فتاوای عالمګیري ص۷ لومړي ټوک مکتبه رشیدیه
۳- فقه الاسلامي وادلته ص۴۵۷ لومړي ټوک مکتبه فریدیه.

## دسنت لمونځ کولو پروخت دجماعت لمونځ

۵۷_ **مسئله** : ځيني وختونه خلک پرسنتو ولاړوي ، جماعت ودريږي په دې صورت کې دې سنت پرېښوول سي اوجماعت دې ورسره ونيسي اوکه سنت پوره کړي او وروسته بيا په جماعت کې ورسره شريک سي درسول الله ﷺ دافرمان دی : کله چې اقامت وسي نو په دې وخت کې له فرض لمانځه پرته بل هيڅ لمونځ نسته (۱)

ددغه حديث شريف په رڼاکي راځي چې : کله جماعت ودريږي سنت لمونځ شروع کول جائز نه دی البته که چاله مخکې څخه سنت پيل کړي وه وروسته جماعت ودريږي نو په دې وخت کې دوه صورتونه دي ،اول که يې لومړی رکعت نه ووپوره کړی يعني تراوسه يې د لومړي رکعت سجده نه وه کړې نو سنت دې پرېښوول سي اوپه جماعت کې دې شريک سي . دوهم که يې دسنت لمانځه يورکعت پوره کړی وو نو په دې صورت کې دې په لنډه توګه (لږقرائت سره) دوهم رکعت هم وکړي التحيات دې ووايي اوسلام دې وګرځوي که څه هم نيت يې دڅلورو رکعتونو کړی وي اوکه دسنت لمانځه پردريم رکعت باندې جماعت ودريږي نو دې بياهم په لنډه توګه څلورم رکعت وکړي اوپه جماعت کې دې شريک سي .(۲)

۱- مسلم ص ۲۴۷ لومړی ټوک.
۲- فتاوای عالمګيري ص ۱۱۹ لومړي ټوک مکتبه رشيديه.

## صلوٰة تسبیح

۵۸_ **مسئله** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وعباس رضي الله عنه ته وفرمایل چي : ای کاکا ! درونه ښیم داسي یوعمل چي هغه ته پوره کړې او الله ﷻ ستاسو ټول ګناهونه (نوي وي که زاړه ، په خطاسره وي اوکه په قصدسره ، کوچني وي اوکه لوی ، پټ وي اوکه ښکاره )درمعاف کړي .[1]

## دصلوة التسبیح داداء کولو طریقه

۵۹_ **مسئله** :کله چي نیت وتړي ترسبحانک اللهم وروسته به پنځلس ځله (سبحان الله والحمدلله ولااله الاالله والله اکبر)ووایي ،بیابه اعوذبالله ، بسم الله ، الحمدلله اوسورة ووایي ، وروسته ترهغه به بیالس ځله (سبحان الله والحمدلله ولااله الاالله والله اکبر) ووایي بیابه رکوع ته ولاړسي ، په رکوع کي به تردرې واره تسبیح وروسته لس ځله (سبحان الله والحمدلله ولااله الاالله والله اکبر) ووایي ، کله چي درکوع څخه راپورته سي بیابه لس واره(سبحان الله والحمدلله ولااله الاالله والله اکبر) ووایي ، بیابه سجدې ته ولاړسي اوهلته به درې واره تسبیح ووایي ، تردې وروسته به لس ځله (سبحان الله والحمدلله ولااله الاالله والله اکبر) ووایي ، دسجدې څخه تر راپورته کیدو وروسته به بیالس واره (سبحان الله

[1] مشکوٰاة المصابیح کتاب الصلاة باب صلاة التسبیح ص ۱۱۰دوهم ټوک مکتبه البشراي - مرقات المفاتیح شرح المشکوٰاة ص ۲۱۲دریم ټوک مکتبه رشیدیه .

والحمدلله ولااله الاالله والله اكبر) وايي ، تردې وروسته دوهمي سجدې ته خي اوهلته بيا تر درې ځله تسبيح وروسته لس واره (سبحان الله والحمدلله ولااله الاالله والله اكبر) ويل کېږي بياچي کله دسجدې څخه راولاړسو نو وروسته به الحمدلله اوسورة ووايي چي نوردرې رکعته لمونځ هم داول رکعت په څېر اداء کېږي . په هر رکعت کي (۷۵)واره تسبيح ويل کېږي چي مجموعه دڅلورو رکعتونو تسبيحات (۳۰۰)ځله کېږي دالمونځ چي هره ورځ وسي ډېرثواب لري ، که هره ورځ ونه سي ، په هفته کي بايد يو وار وسي که په هفته کي هم ونه سوای کولای نودي په مياشت کي يووار وسي ، اوکه په مياشت کي يې هم نه سی کولای نودي په کال کي يووار وسي ، که په کال کي يې هم نه سي کولای نو په خپل ژوند کي خوبې يووار وکړه .(۱)

دصلاة التسبيح دلمانځه داداء کولو بهترين وخت دماپښين ترلمانځه وروسته دی دابن عباس ﷺ څخه چاپوښتنه وکړه چي : کوم سورتونه په صلاة التسبيح کي ښه دي چي وويل سي ، هغه ورته وفرمايل چي دغه څلور سورتونه دي ووايي : (التكاثر ، والعصر ، قل ياايهاالكافرون ، قل هوالله احد) چي ډېرثواب لري.

يادونه : ۱- که په رکعتونو کي غلط کېدلاست نوبيادوه دوه رکعته جلاجلا اداءکړئ.

۱- مشکواة المصابيح کتاب الصلاة ص۱۱۰دوهم ټوک مکتبه البشراي . - مرقات المفاتيح کتاب الصلاة ص۲۱۸دريم ټوک مکتبه رشيديه . - درالختار ص۵۰۸اول ټوک مکتبه رشيديه . - جامع الترمذي ص۲۲۰اول ټوک مکتبه رحمانيه .

۲- کـه دتـسبيحاتوپه حساب کـي غلـط کېدلاسـت اوپـه ذهـن کـي موحساب نه سوای کولای بيالږ دګوتو پرسرو باندي زور کوئ چي حساب درڅخه ورک نه سي اوفکر کوئ چي حضور مو په حساب کي خراب نه سي.

## داسقاط دجواز دليل

۶۰_ **مسئله**: په اوس وخت کي چي کوم خلک داسقاط په نيت کوم عمل اجرا کوي نوځيني دهغوی څخه دشريعت سره سم نه وي او فقط داسقاط په شکل کي يوتظاهري عمل ترسره کوي، موږ تولو ته په کارده چي لومړی اسقاط وپېژنواوبياوروسته دشريعت سره سم هغه سرته ورسوو. اسقاط پـه لغـت کـي غورځولـو تـه وايـي اودشريعت په اصطلاح کي دمړي دذمې خلاصيدلوته وايي څکه الله ﷻ په قرانکريم کي فرمايي ژباړه: واخلـه يـوه دسـته دجـارو دخاشو يا وبنو يا ريحانو يا نلانو په اندازه دسلو دانو ،وخپله ښځه پـه وواهـه اوخپـل خـان مـه حـانثوه ‹پرخپـل خـان قـسم مـه اړوه› .(۱) دابـن عبـاس ؓ څخـه روايـت دی وايـي: دحـضرت أيـوب ؑ دناروغی په وخت کي شيطان ديوطبيب ‹ډاکټر›په شکل دهغه ؑ له ښځي سره يوځای سو ، هغې دی طبيب وګاڼه اودخپل خاوند

---

۱- دوخذ بيدک ضغثافاضرب به ولاتحنث، سورة ص۵ ايت ۴۴تفسيرنبخة البيان صـ ۲۹۲دوهم توک مکتبه دارالاشاعته تصنيفه اوتاليف دارالعلوم هاشميه - تفسير المدارک صـ۴۳۹دوهم توک مکتبه فريديه - مبسوط للسرخسي کتاب الحيل صـ ۲۲۹دپرشم توک مکتبه الغفاريه. - عمدة القاري شرح البخاري کتاب الحيل صـ ۰ ځلوېښتم توک مکتب رشيديه - تفسير المنير صـ ۲۲۸دوولسم توک مکتبه امير حمزه کتب خانه.

دعلاج لپاره یې غوښتنه ورڅخه وکړه ، شیطان ددې په جواب کې داسې ووېل : زه داکارکوم خو په یوه شرط ،هغه داچې کله چې دی جوړسي داسې په وایي چې زه دغه طبیب جوړکړم ،نورڅه نذراو شی نه غوارم ، کله چې دایوب ﷺ ښځې داخبره ایوب ﷺ ته وکړه ، نو ایوب ﷺ ورته ووېل . قسم په الله ﷻ که زه خدای ﷻ جوړکړم ، نو تابه سل (دُرې) ووهم ، بیاایوب ﷺ دخپل خان لپاره دعاءوکړه او الله ﷻ ایوب ﷺ ته روغ صحت ورکړ ، نوبیایې دخپل قسم دپوره کولو لپاره اراده وکړه خوداچې دغې ښځې دایوب ﷺ د پرخدمت کړی ؤ اوګناه هم ددې نه وه نو الله ﷻ په خپل رحمت اومهربانی سره په دې کې یوڅه تخفیف (سپک والی) راوستی اوداسې یې وفرمایل : دخپل ځان دقسم څخه دخلاصون لپاره یوه جمبه نری لښتې سره یوځای کړه اوخپله ښځه په وواهه چې هغه سل دانې لښتې وي ، نوایوب ﷺ هم هغه سې وکړه .[١]

دعلماؤکرامو رحمة الله علیهم په مذهب حیله ډیر ډولونه لري ، دمثال په توګه حیله دحیله کوونکي په نیت پوري اړه لري ، که چیري حیله کوونکی په روا لار باندي خپل ځان باطلي لاري ته حق اویاثبوت ته دباطل خپل ځان رسوي نوداحیله حرامه ده اوکه په روا لار باندي واثبات ته حق اویاپورته کولوته دباطل خپل ځان ساتي نوداحیله بیاواجب ده اوکه په روا لارباندي دمکرو کارڅخه خپل ځان ساتي

١- معارف القران سورة ص ص ٢٠٢ . - صفوة التفاسير ص ٦١ دریم ټوک . - تفسير الجلالين سورة ص ص ١٩١ دریم ټوک مکتبه البشرای . مبسوط للسرخسي کتاب الحیل ص ٢٢٩ دیرشم ټوک مکتبه الغفاریه

نوداحيله بيا مستحب ده اوكه دبنه كارڅخه سړی خپل ځان ساتي داحيله بيا مكروه ده ، دحيلې دجواز لپاره دسورة (ص۴۴)ايت شريف دی اوبله داخبره ده چي په حيله کي سړی له ډيروتكليفونو څخه خلاصيږي لكه په دې لاندې مثال کي چي سړی ديوچاسره ديوكارپه باره كي قول كوي اوقسم سره يوځای دانشاءالله تعالی لفظ پرخوله باندې راوړي نوپه دې وخت کی دقسم داوبنتلو څخه خلاصيږي (۱)

په دې اړه سنن ابوداود دضعيف زناكاره كيسه داسي بيانوي : دشهاب زوی ﷺوايي ماته ابوامامةﷺوويل چي ماته خينو اصحابودرسول اللهﷺداسي وويل چي : يونفر دمديني منوري له انصاروڅخه چي ډيرضعيف ؤ اويوازي هډوكي پاته ؤ ، يوه ورځ يوه ښځه دده خوني ته ورننوتل نودغه سړي زناورسره وكړه وروسته چي نورخلک دده پوښتني ته راغلل نودغه ضعيف سړي دخپلي زناپه اړه هغوی ته معلومات وركړل او ورته ويې ويل چي زمادسزاپه هكله له رسول اللهﷺڅخه پوښتنه وكړئ يعني فتوای ورڅخه وغواړئ. هغوی راغلل رسول الله ﷺته يې دده ضعيف اودزناحال ووايه. رسول اللهﷺورته وفرمايل : يوه چمبه (دسته ) نری لښتي سره يوځای كړئ بيادغه مريض په ووهئ .(۲)

رسول اللهﷺته يونفرراغی اوويې ويل ماقسم كړئ دی په دري

---

۱-فيض الباري صـ۲۸۰ څلورم توک.

۲-سنن ابوداود كتاب الحدود في الامته تزني واقامة الحد علي المريض صـ۶۱۲ دوهم توک مكتبه رشيديه.

طلاقه سره «دخپلې ښځې» که زه دخپل وروړسره خبرې وکړم، رسول اکرم ﷺ داسې طريقه ورته وښودله چې اول خپلې ښځې ته يوطلاق ورکړه چې عده يې تېره سوه بيا دخپل وروړسره خبرې وکړه بيا دخپلې ښځې سره نوې نکاح وتړه. (١)

## داسقاط شرطونه

٦١_ **مسئله**: ١- دمړي عمربه معلوم وي چې څوکلن دی، که چيرې دعمربه اړه پوره معلومات نه کېدای نودې تخميني «اټکل» دهغه عمر وټاکي، کله چې عمر وټاکل سو نو بيابه له هغه څخه کم نارينه وو(١٢) کاله کم کړي اوکه ښځه وه (٩)کاله به کم کړي همدارنګه به دښځې دعمرڅخه ددې دحيض اونفاس وخت هم وباسي ترڅو اصلي عمربه دقيق ډول سره معلوم سي.

٢-دهرې ورځې لپاره شپږلمونځونه دې ځکه چې وترهم جلا لمونځ دی، دهرې مياشتې لمونځونه (١٨٠) دي اودهرکال لمونځونه (٢١٦٠) کېږي کله چې دمړي عمرمعلوم سونودهر لمانځه لپاره دې نيمه پيمانه غنم يادهغه قيمت ورکړي ځکه په فديه کې غنم اصل دي.

٣- داسې يوه دوره دې جوړه سي چې په هغه کې به مسکينان چې عاقلان أوبالغان وي ناست وي، خانان اوکافران به نه وي پکښې

---

(١)- مبسوط للسرخسي کتاب الحيل، ص ٢٢٩ دېرشم ټوک، کتبه الغفاريه.

ناست ، کـه چيـري خانـان اوکـافران پـه دوره کـي ناسـت وي نوپـه حساب کي دي نه راوستل کېږي ، همدارنګه به لېوني اومعتـو (هغه څوک چي کله لېوني اوکله بياسم وي) هم نه وي څکه چي ولېوني اومعتو ته هبه (بخښنه) روا ده خوددوی بخښنه بل چاته نه ده رواوپه اسقاط کي خو بل چاته بخښنه هم سته .

داسي به ورته ويـل کېږي : اوس دغه دې زموږ مسلمان ورور مـړ سوی دی اوعـاجز هـم دی نوستاسـوڅخه رحمـاً(درحـم پـه ډول) داغواړم چي دغه مال چي په تولـه فديه باندي هم پوره نه رسېږي تاسي ته چي هبه (وبخښل) سي اوستاسي خاص ملک وګرځېدی بيرته يې تاسي ددغـه مړي دکومـک لپاره هبـه (بخښنه) کړی .(١)

۴- دغه مال چي اوس په فديه کي ورکول کېږي بايد داسي مال وي چي مړي دهغه وصيت کړی وي يا د وارث خپل مال وي يادقرض مال وي ، دخواست اوأمانت مال به نه وي څکه چي دخواست او امانت په مال سره فديه نه صحيح کېږي .

۵- مسکين ته چي فديه ورکوي خپل لاس به ورڅخه ايسته کوي ، دفديې ګرځوونکی به هم تلوارنه کوي اوخپله ګرځوونکی به هم فديه په ښه طريقه ديقين سره خپل خان ته تسليموي .

۶- دفديې راکړه ورکړه به په طريقه ديقين سره وي ، دپسخندپه طريقه سره به نه وي ، دفديې ګرځوونکي به دمړي قريب وي ، که

١- فقه الحنيفي في ثوب الجديد الهبه ص۳۹۰ دوهم توک مکتبه حقانيه - فتاواى قاضي خان ص۲۸۶ دوهم توک . - خلاصة الفتاواى ص۱۹۲ لومړی توک

د مــړي قریب دعذرپه سبب فدیه نه سوای ګرخـــولای نوبه وکیل نیسي او ورته وایي به چي ته زماله خـــوا دفـــدیې په اخیستلو او ورکولو کي وکیل یې.

۷- دقسمونو دکفارې لپاره (دفدیې لپاره) لس قبضه ضروري یعني لس واره بـه یـې خلکوتـه ورکـوي ، اودظهاردکفـارې لپـاره شـپیته قبـضه ضـروري دي یعنـي شـپیته واره بـه یـې خلکوتـه ورکـوي.

۸-دفدیې ګرخوونکی به په دې باندي پوهیږي چي یـوه فدیـه دبلي فدیې پرځای ورنه کړي دمثال په ډول دلمانځه فدیه دروژې په فدیه کي ورنه کړي (۱)

۹-داسقاط په ورکړه کي په بـخنده نه وي بلکي پـه یقیني ډول سره بـه وي (۲)

۱۰- که چیري مړي وصیت نه ؤ کړی نوباید په وارثانو کي کوچنیـان نه وي اوهم باید ټولـه وارثان حاضـروي خوکـه پـه وارثـانوکي څـوک حاضرنه وو اویاپه وارثـانوکي کوچنیـان وه نوبیـادغـه داسقاط فدیـه نه صحیح کېږي. (۳)

### داسقاط ترتیب

۶۲_ **مسئله** : ۱- دلمانځه دکفارې ورکول دي.

۲- دروژې دکفارې ورکول دي. -۳

۱- منته الجلیل ص ۲۲۵.

۲- فتاوای قاضي خان ص ۲۸۶دوهم توک . - خلاصه الفتاوای ص۱۹۲اول توک.

۳- منهاج السنن ص ۲۵خلورم توک. - ردالمحتار ص۵۴۲اول توک.

درو ژې د کفارې کفاره ورکول دي .

۴- د قسمونو د کفارې کفاره ورکول دي .

۵- د ظهار کفاره ورکول دي .

۶- د ټولو شرعي حقوقو کفاره ورکول .

يادونه : که چيرې مړی (دوې يادې ښځې )ولري نو بيا به د هرې ښځې لپاره جلا جلا د ظهار کفاره ګرځوي .([1])

## د زکات تعريف

۶۳_ **مسئله** : زکات په لغت کې پاکوالي او برکت ته وايي او د شريعت په اصطلاح کې د خپل مال هغه ټاکلې برخې ته زکات وايي چې د شريعت لخوا ټاکل سوې وي ، او بل چا (فقير) ته ورکول کېږي .([2])

## د زکات نيت

۶۴_ **مسئله** : هر مسلمان ته ښايي چې کله د خپل مال څخه د زکات برخه جلا کوي نو دي د زکات نيت وکړي او يا دې د زکات ورکولو پروخت باندې د زکات نيت وکړي ، که چيرې يو څوک يو فقير ته پيسې يا مال ورکړي خو د زکات نيت يې نه وي کړی نو زکات يې نه صحيح کېږي ([3])

١- جراة الائمة بيان طريقه اسقاط صـ ۴۷ .

۲- فقه على المذهب الاربعه صـ۱ ۵۰ لومړی ټوک مکتبه وحيدي کتب خانه .- فتاوای عالمګيري کتاب الزکاة صـ ۱۷۰ لومړي ټوک مکتبه رشيديه .- مبسوط للسرخسي کتاب الزکاة صـ۱ ۲۰ دوهم ټوک مکتبه الغفاريه .

۳- فتاوای عالمګيري کتاب الزکاة صـ ۱۷۰ لومړي ټوک مکتبه رشيديه .

يادونه : که چيري يوچادزکات نيت وکړ خوپه هغه وخت کي يې د زکات لپاره خانګړي پيسې جلانه کړي اودټول کال په جريان کي يې لږلږ ورکولې اودورکړي په وخت کي يې هم دزکات نيت نه کاوه نوزکات يې نه صحيح کېږي.

## دزکات په حکم دخان پوه کولو وخت

۶۵_ **مسئله** : مــؤمن مسلمان ته ترهغه وخته پوري چې دزکات د نصاب خاوندنه وي ګــرځېدلی (يعني شل مثقاله سره زر يادوه سوه درهمه سپين زر يادهغــوشيانو دقيمت په اندازه نقدي پيسي اويابل دتجارت مال ونه لري) دزکات عملي زده کــول فــرض او ضـروري نه دي خـــودزکات دفرضيت عقيده درلودل فرض ده ،خوکله چي ددغو شيانو خاوند سو نو بياهغه وخت دزکات عملي زده کول پرفرض دي. (۱)

## دزکات دوجوب شرطونه

۶۶_ **مسئله**:دزکات دواجبيدولپاره لاندي شرطونه ضروري دي:

۱- بلوغ : پرکوچني زکات نسته که څه هم دمال خاوندوي.
۲- عقل:پرلېوني باندي زکات نسته که څه دمال خاوندوي
۳- اسلام : پرکافرباندي زکات نسته کـه لـه اول سرڅخه

۱ - فقه على المذهب الاربعه كتاب الزكاةص۵۰۲ لومړی ټوک مکتبه وحيدي کتب خانه - هدايه كتاب الزكاةص ۱۶۲ لومړي ټوک مکتبه رشيديه. - مبسوط للسرخسي كتاب الزكاةص۲۵۳ دوهم ټوک مکتبه الغفاريه

کافروي اوکه وروسته مرتد (د اسلام څخه اوښتی وي ) سوی وي څکه کله چي مرتد اسلام راوړي د امام ابوحنیفه رحمه الله په مذهب به دتېري سوي زماني زکات نه ورکوي ، بلـه خبره داده چي دزکات دفرضیت لپاره اسلام شرط دی لاکن مرتد خو کافردی اوبل په زکات کي نیت لازم دی اوله کافرڅخه نیت نه صحیح کېږي .

۴- دکال تېریدل: دنصاب پرپیسوباندي دکال تېریدل شرط دي په دي خاطرچي دغه سړی به ددغه مال پوره یوکال خاوندوي، دکال څخه سپوږمیزکال مراددی څکه چي هغه (۳۵۴) ورځي دی لیکن شمسي کال کله کله فرق کوي ،خو دغه دکال تېریدل په نقدوپیسو،زراوتجارتي شیانو کي دی خو په میوواودزراعت په شیانوکي دکال تېریدل شرط نه دي بلکي په هغه کي وهرفصل ته اعتبارسته .

۵-نصاب : نصاب به پوره وي څکه که چیري نصاب پوره نه وي نو په هغه مال کي زکات نسته مثلاً لکه لاندي حالتونه:

- دشلومثقالوسروزرڅخه نیم مثقال سره زر زکات دی .
- ددوسوو درهموسپین زرڅخه پنځه درهمه سپین زر زکات دی .
- په نقدي پیسوکي څلویښتمه برخه زکات دی .
- په دیرشوغوایوکي دیوه کال ګلګی یاګلګی ده .
- په پنځه اوښانو کي یوپسه زکات دی .

- په هغه مخکه کې چې دباران یاویالې په اوبو خړوبیږي په هغه کي لسمه برخه اوپه هغه مخکه کی چې دماشین په اوبو باندي خړوبیږي شلمه برخه زکات (عشر) ورکول کېږي
۶- حریت : زکات ورکوونکی به ازاد وي خکه پر مریي باندي زکات نسته ، هغه که مکاتب (هغه باداریې په مال باندي ازادوي) وي اوکه نه وي .([١])

## دزکات حکم

۶۷_ **مسئله** :زکات داسلام دپنځو ارکانو څخه څلورم رکن دی او زکات دخپلو ټولو شرایطو سره دهجرت په دوهم کال باندي فرض سو .([٢])
الله ﷻ په قرانکریم فرمايي :﴿وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ﴾يعني زکاتونه ورکړئ ([٣])
په بل ځای کي داسي مهرباني کوي :﴿ وَالَّذِيْنَ فِيْٓ اَمْوَالِهِمْ حَقٌّ مَّعْلُوْمٌ﴾ اوهغه کسان چي ددوی په مالونوکي معلوم حق دی .([٤])
په درالمختارکي راځي چي دزکات بیان اوحکم په قرانکریم کي دلمانځه سره یوځای څوځایه داسي راغلی دی ﴿اَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ﴾ يعني لمونځونه وکړئ اوزکاتونه ورکړئ ، اوپه بل ایت کي راځي چي (خذمن اموالهم صدقة تطهرهم وتزکیهم بها) په شرط ددې چي

١- فقه على المذهب الاربعه کتاب الزکاة ص۵۰۲-۵۰۵ لومړی ټوک مکتبه وحیدي کتب خانه -هدايه کتاب الزکاة ص ۱۶۷ لومړي ټوک مکتبه رشیدیه . مبسوط للسرخسي کتاب الزکاة ص۲۵۵ دوهم ټوک مکتبه الغفاريه
٢- هدايه کتاب الزکاة ص۱۶۷ حاشيه اوومه اول ټوک مکتبه رشیدیه .
٣- سورة الحج ایت ۴۱.
۴- سورة المعارج ایت ۲۴.

که تاسي توبه وکښل اولمونځ وکړئ اوزکات ورکړئ .([1])
په حديث شريف کي راځي چي سرورکائنات ﷺ ومعاذ رضي الله عنه ته وويل : (تؤخذمن اغنيائهم وتردوفي فقرائهم) له شتمنو څخه زکات واخلئ اوددوی پر مسکينانو باندي يې وويشئ ، درسول الله ﷺ په يوه بله وينا کي هم دزکات ګټي بيان سوي دي لکه په دې ارزښتمنه وينا کي چي سليم بن عامر رضي الله عنه يې روايت کوي چي رسول الله ﷺ وفرمايل : دخپلو مالونو زکات ورکوئ نوتاسي به جنت ته داخل سئ .([2])
په يوه بله مبارکه وينا کي چي رافع بن خديج يې روايت کوونکی دی سردارعالم ﷺ فرمايي : هغه څوک چي دزکات پر راټولولو باندي ولاړوي يعني زکاتونه راجمع کوي په حقه سره (غلانه پکښي کوي) دانو لکه هغه څوک چي د الله ﷻ په لاره کي جهاد کوي ترهغه وخته پوري چي بيرته خپل کورته راځي .([3])
په بل حديث شريف کي رسول الله ﷺ فرمايلي دي (ادوزكاة اموالكم وعليه اجماع الامة) دخپلو مالونو زکات ورکړئ اوپردې باندي دټول امت اتفاق دی ([4])
همدارنګه دنبي اکرم ﷺ په بله وينا کښي راځي چي دی ﷺ فرمايي : اسلام پرپنځوشيانوباندي ولاړدی له هغوپنځوڅخه يوزکات

١-سورة التوبه ايت ٥.
٢-جامع الترمذي كتاب الزكاة - فقه على المذهب الاربعه كتاب الزكاة صـ ٢٠٥ لومړی ټوک مکتبه وحيدي کتب خانه
٣-مشكواة شريف كتاب الزكاة صـ ١٥٧ لومړي ټوک مکتبه دارالاشاعة العربية.
٤-هدايه كتاب الزكاة صـ ١٤٧ لومړي ټوک مکتبه رشيديه.

ورکول دي .(١)

يادونه : هرکله چي پرمال اوپیسو باندي کال تېرسي اوزکات ور باندي واجب سي نو ژر تر ژره دي زکات خپل مستحق ته ورکوي لکه فقير،مسکين اوداسي نورو ته ځکه په ځنډولو کي يې ګناه ده (٢)

## زکات بايدچاته ورکړل سي

٦٨ـ مسئله : اِنَّمَاالصَّدَقَاتُ لِلْفُقَرَآءِ وَالْمَسَاكِيْنِ عَلَيْهَاوَالْمُؤَلَّفَةِ قُلُوْبُهُمْ وَفِيْ الرِّقَابِ وَالْغَارِمِيْنَ وَفِيْ سَبِيْلِ اللهِ وَابْنَ السَّبِيْلِ (٣)

ژباړه : په تحقيق سره زکاتونه ، فقيرانو ، مسکينانو ، دزکات راټولوونکو ، داسلام الفت نيوونکو ، مکاتب مريانو ، پوروړو ، دالله ﷻ په لارکي مجاهد اومسافرته ورکړئ .

له پورتني ايت شريف څخه معلوميږي چي زکات دغه اته ډوله خلکوته ورکول کېږي خودحضرت ابوبکرصديق ﷺ په وخت کي دمؤلفة القلوب (داسلام سره الفت نيوونکي) څخه زکات منع سو.

فقير: هغه چاته ويل کېږي چي لږ شئ ولري خونصاب ته نه رسېږي يعني دهيڅ شي نصاب نه لري .

يادونه : که څوک عالم اوپوه سړي ته زکات ياخيرات ورکړي نو

---

١- صحيح البخاري كتاب الايمان ص ٢ لومړي توک مکتبه غفاريه . - فقه على المذهب الاربعه كتاب الزكاة ص ٥٠٢ لومړی توک مکتبه وحيدي کتب خانه . - مبسوط للسرخسي كتاب الزكاة ص ٢٠٢ دوهم توک مکتبه الغفاريه

٢- فتاوای عالمگيري كتاب الزكاة ص ١٧٠ لومړي توک مکتبه رشيديه .

٣- سورة التوبة ايت ٦٠.

ترهغـه غـوره او افـضل دي چـي نـاپوه او جاهـل تـه يـې ورکـړي .
مسکين : هغه چاته ويل کېږي چي هيڅ شی ونه لري او هر ګړی دي
ته اړ دی چي دخپـل عيـال لپـاره دودی يادپټيدو شيان پيدا کړي ،
مسکين ته سـوال او خـيرات تول روادي ليکن فقـير داسي نه دی
څکه فقيرته نه دي رواچي ديوې ورځي شی ولري او دتن جامـه ولري
اودی دي سـوال (فقر) کوي .
عامـل (راټولوونکی) : عامـل هغـه چاته ويـل کېږي چي داسلامي
حکومت لـه خوا څخه پرځينو سيمو باندي مؤظف سوی وي چي
زکاتونه راټول کړي نودغه سړي ته دخپل کارپه اندازه زکات ورکول
روادي .

مکاتب : هغه مريی دی چي خپل بادار ورته ووايي چي ماته دومره
اندازه پيسي راکړه نور ته ازادېې .
مديون : هغه څوک دی چي دبل چاپيسي پرباندي وي اودی خپله
دونه پيسي نه لري چي نصاب پوره کړي ترهغه وروسته چي دی هم
دپوروړي پيسي ورکړي اويا خودده پيسي پرنوروخلکوباندي وي
اودی يې نه سي ورڅخه اخيستلای .
يادونه: که څوک مديون(پوروړي)ته زکات ورکړي نوغوره ده ترهغه
چي فقيرته يې ورکړي څکه چي پوروړی له بل چاڅخه غاړي خلاصوي .
فـي سـبيل الله : هغـه فقيـردی چـي لـه جهادڅخه پاتـه سـوی وي
(پرصحيح روايت باندي) .

**ابن سبيل** : هغه څوک دی چي اوس په بل وطن کي مسافر وي خو په خپل وطن کي هرڅه لري .

**يادونه** : ابن سبيل ته پيسي په پور ورکول غوره کار دی ځکه چي دی په خپل وطن کي هـــر څه لري خو بيا هم که چيري سخت ضرورت وي نو دضـــرورت په اندازه ســره دي زکات ورکړل سي مثلاً که يې په دوه زره افغانۍ ضـــرورت رفع کېږي نو دري زره افغانۍ دي نه ورکوي (١)

**يادونه** : علماؤته په دې نيت چي موږ ته لمونځ راکوي زکات ورکول نه دي روا ځکه زکات به بلاعوض (بدلې) وي نو که چيري په دې نيت ورکړل سي نو بيا دلمانځه په عوض کي درېږي ، خو که څوک دالله ﷻ درضا په خاطر علماؤ ته زکات ورکوي نو دا بهتره او غوره کار دی ترهغه چي فقيرته يې ورکړي (٢)

## وبل چاته دويني ورکول

**٦٩ــ مسئله** : پــه اوس وخت کـي چـي داپريـشن پروخـت يـادوېري کمزورۍ پروخت دېوانسان دبدن وينه دبل انسان په بدن کی اچول کېږي ددې لپاره دعلماؤ په منځ کي څه اختلاف سته .

١- فقه على المذهب الاربعه كتاب الزكاة صـ ٢٢ لومړی ټوک مکتبه وحيدي کتب خانه . - عالمګيري کتاب الزکاة صـ ١٨٨ لومړي ټوک مکتبه رشيديه . - هدايه کتاب الزکاة صـ ١٨٧ اول ټوک مکتبه رشيديه . - مبسوط للسرخسي کتاب الزکاة صـ ٢٠٢ دوهم ټوک مکتبه الغفاريه .
٢- نورالايضاح حاشيه ٩ صـ ١٢٠ مکتبه حنيفيه .

پوښتنه :ايا ديوانسان دبدن وينه راايستل اودبل انسان په بدن کې اچول روادي اوکنه ؟
جواب : وينه دانسان دبدن څخه دراايستلو وروسته ناپاکه اونجسه سي اودنجس اوخراب شي اچول په بدن کي حرام دي او ددې وجې څخه هم چي دادانسان دبدن يوه حصه ده اودانسان دبدن دعزت اوحرمت دادتقاضاده چي بايد دانسان په بدن کي يوه برخه هم په نجس شي سره استعمال نه سي خودسخت ضرورت په وخت کي په حراموشيانو سره هم شريعت دعلاج لپاره اجازه ورکړې ده لکه څنګه چي قران عظيم الشان هم دمجبورۍ په وخت کي دخنزير دغوښودخوړلو اجازه ورکړې ده ،اوفرمايي : بېشکه الله ﷻ په تاسو باندي مرداره حرامه کړې ده ، وينه ، دخنزير(خوګ) غوښه اوهغه شی (ذبيحه ياحلال سوي حيوان ) چي په هغه باندي دذبحي په وخت کښې دالله ﷻ دنامه څخه په غير دبل شي لپاره اوازپورته کړی سوی وي .نوهغه څوک چي مضطر(مجبور) شی په داسي حال کښې چي بغاوت کوونکی نه وي (ربښتيامجبوروي اودمرداري خوراک ته بهانه نه جوړوي ) اوتجاوزکوونکی هم نه وي (چي دضرورت څخه زياته اندازه وخوري ) نوپه هغه باندي څه ګناه نسته .
بېشکه الله ﷻ بخښونکی دی (که کومه ګوله تري زياته وخوړله سي بخښنه به ورته وکړي ) اومهربان دی (چي په دې حالت کښې يې

ورته اجازه ورکړه ) .(۱)
دغه رقم رسول الله ﷺ عرنينوته هم داوښ دشيدواوبولو دڅښلو اجازه ورکړې ده ، عرنين هغه خلک وه چې دمديني هوابده ورياندي ولګېدل اومريضان سول ، رسول الله ﷺ امرورته وکړی چې دصدقې داوښانو بولي اوشيدې سره ګډي کړئ اوويې څښئ چې جوړسئ نو دوی هماغسې وکړه .(۲)
رسول الله ﷺ عرفجه ﷺ ته دسروزروډپزې جوړلو اجازه ورکړه، که څه هم عرفجه ﷺ په اول وارسره دسپينو زروپزه ايښې وه کله چې دده پزې بدبوی کاوه نو بيايې درسول الله ﷺ په امرسره دسروزرو پزه دخان لپاره جوړه کړه .(۳)
دخنزيرغوښه اوبولي خو دواړې حرامي دي اودسروزرواستعمال هم دنارينه وولپاره حرام دی نو اوس دامعلومه سوه چې شريعت دسخت ضرورت په وجه اجازه ورکړې ده اوسره ددې چې دکوچني څخه ماسيوا دلويانو لپاره دښځي دشيدوخوراک حرام دی لکه څنګه چې عالمګيري دي ته اشاره کړې ده په دې کې هيڅ باک نسته ، که دعلاج لپاره دښځي شيدې دسړي په پزه کې وڅڅول سي

۱- (انما حرم عليكم الميتة والدم ولحم الخنزير وما اهل به لغير الله فمن اضطر غير باغ ولا عاد فلا اثم عليه ان الله غفور رحيم) سورة البقره ايت ۱۷۳ .
۲- صحيح البخاري باب ابوال الابل والدواب ص ۳۶ اول توک مكتبه غفاريه .
۳- (عن عرفجه بن اسعد قال اصيب انفي يوم الكلاب في الجاهلية فاتخذ انفا من ورق فانتن علي فامرني رسول الله ﷺ ان اتخذ انفا من ذهب) جامع الترمذي ابواب اللباس ص ۳۲۹ اول توک مکتبه رحمانيه .

اويادعلاج لپاره رانيول سي [1]
خوداخبره به په پام کي نيسو که چيري داسي حالت پېښ سي چي ددغه سړي لپاره به خامخا وينه پيداکېږي ځکه ډکترانو ته دامعلومه ده چي بله چاره نسته اودويني دنه ورکولو په وجه ناروغ ته دسخت تکليف امکان موجوددی لکه څنګه چي دې خبري ته عالمګيري هم اشاره کړې ده :
ژباړه : يوناروغ ته دعلاج لپاره دويني يابولو څښنل اودمرداري غوښي خوړل روادي په دې شرط چي يو مسلمان ډاکترډافيصله وکړي چي ددې څخه ماسېوا په بل شي باندي جوړوالی ممکن نه دی اوپه رواشيانو کي ددې شي پرځای بل شی نه درېږي .
همدارنګه دويني رانيول اوخرڅول هم روادي په دې شرط چي سخت ضرورت به ورته وي لکه څنګه چي دښځي شيدې درانيوونکي اوخرڅوونکي دواړو لپاره روادي همدارنګه ويني خرڅول اورانيول هم روادي . [2]

### ددعااثبات او فضيلت

۷۰_ **مسئله** : ژباړه : اوای خلکو، ستاسو رب ﷻ (تاسوته) وايي (اوامردرته کوي) چي تاسوخاص زماعبادت وکړئ (اوخاص زماڅخه سوال وکړئ ) چي تاسوته ځوابونه درکړم ( اوارتياوي مو

---

۱- فتاوای عالمګيري کتاب الرضاع صـ۳۲۲ لومړي ټوک مکتبه رشيديه .
۲- عالمګيري صـ۱۱۲ څلورم ټوک .

درپوره کړم). يقيناً هغه کسان کوم چې زما د عبادت څخه تکبر کوي ډیر ژربه دوږخ ته په داسې حال کښې ورداخل سي چې د ذلت (سپکوالی) د رلودونکی به وي. (۱)

د دعا لفظي معنی داده چې څوک یوچاته بلنه ورکړي او راغواړي يې خو په اکثره استعمال کې د حاجت غوښتلو لپاره استعماليږي، د قرآنکريم دغه لورايت مبارک خود رسول الله ﷺ د امت ډیر غټ عزت ښکاره کړی دی څکه قتاده ﷺ د کعب الاحبار ﷺ څخه روايت کوي: چې په اوله زمانه کې به دا خصوصيت د انبياؤ ﷺ وو چې وحي به ورته وسوې چې تاسې دعاوي کوی زه يې قبلوم، او س د نبي الرحمة ﷺ په برکت داویارده امت ته هم خاص سوچې الله ﷻ ورته وفرمایل دعا کوئ زه يې قبلوم، داخو ښکاره خبره ده چې لاسونه دسوال لپاره اوږدېږي چې په دې کې ډېره دعاجزی خبره ده. (۲)

- د حضرت دابوهريرة ﷺ څخه روايت دی، دی وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل: الله ﷻ ته تر دعا کولو بل عزتمند او محبوب شی نسته څکه په دعا کې دعاجزي ښکاره کول دي. (۳)

- په بل حديث شريف کې رسول الله ﷺ فرمايلي دي: دعبادت اصل او مغز دعا کول دي او همدا رنګه بل ځای رسول الله ﷺ فرمايي:

---

۱- وقال ربکم ادعوني استجب لکم ان الذين يستکبرون عن عبادتي سيدخلون جهنم داخرين سورة المؤمن ايت ۶۰

۲- معارف القران پاره ۲۴ ص ۸۰.

۳- تفسير المظهري سورة المؤمن ايت ۶۰ ص ۲۷۰ تم توک مکتبه علوم الاسلاميه.

دعاکول په خپله عبادت دی (۱) -

سرورکائنات ﷺ فرمايي : نه راګرځي قضاء مګر دعايي راګرځوي او عمر دسړي نيکي ورزياتوي ، مراددقضاء څخه هغه بلاءده چي بنده پرخپل ځان باندي دهغه بلاء څخه بېريږي اوياور څخه د معلقه قضاءمراد ده .(۲)

-دنبي کريم ﷺ په يوه بله وينا کښي راغلي دي چي دی ﷺ وايي : که پريوچاددعادروازه خلاصه سوه نوالله ﷻ به درحمت دروازي هم ورته خلاصي کړي اوالله ﷻ ته داخوښه ده چي دتکليف څخه ليري کولولپاره دعا وکړل سي اودهلاکت څخه دليري کولولپاره دعا وکړل سي .(۳)

-همدارنګه نبي اکرم ﷺ په بله مبارکه ويناکښي داسي فرمايلي دي : غوښتنه کوئ دخپل رب ﷻ څخه دخپلو حاجتونو ترداسي اندازي پوري چي څه وخت مو دچوټي تسمه وشکيږي دهغه غوښتنه هم دخپل رب ﷻ څخه وکړئ .(۴)

-درسول الله ﷺ په بل حديث کښي فرمايي : تاسي سستي مه کوئ په دعاءکي ځکه ددعاسره څوک نه دي هلاک (مړه) سوي .(۵)

-درسول الله ﷺ بله وينا ده چي وايي : هرڅه چي بنده دالله ﷻ څخه وغواړي الله ﷻ هغه ورکوي اوياد هغه په اندازه سره بلاءورڅخه دفع

۱-تفسير المظهري سورة المؤمن ايت ۰ ۶ص ۲۶۸اتم ټوک مکتبه علوم الاسلاميه .
۲-تفسير المظهري سورة المؤمن ايت ۰ ۶ص ۲۷۱اتم ټوک مکتبه علوم الاسلاميه
۳-تفسير المظهري سورة المؤمن ايت ۰ ۶ص ۲۷۰اتم ټوک مکتبه علوم الاسلاميه .
۴-تفسير المظهري سورة المؤمن ايت ۰ ۶ص ۲۷۱اتم ټوک مکتبه علوم الاسلاميه
۵-تفسير المظهري سورة المؤمن ايت ۰ ۶ص ۲۷۱اتم ټوک مکتبه علوم الاسلاميه

کوي تر څو چي د ګناه او صله رحمي د قطعي غوښتنه ونه کړي.[1]
- په بل حديث شريف کښي راځي چي سرور کائنات ﷺ فرمايي:
دعا د مؤمن لپاره اسلحه ده او د دين لپاره ستن ده او د اسمانونو او
مځکي لپاره نورانيت دی.[2]

## د جماعت د لمانځه اهميت

۷۱_ **مسئله**: په جماعت لمونځ کول په قرانکريم سره هم ثابت دي، لکه چي الله ﷻ خپل ګران پيغمبر ﷺ ته فرمايلي دي: ﴿وَإِذَا كُنتَ فِيهِمْ فَأَقَمْتَ لَهُمُ الصَّلَوٰةَ فَلْتَقُمْ طَآئِفَةٌ مِّنْهُم مَّعَكَ وَلْيَأْخُذُوٓا أَسْلِحَتَهُمْ فَإِذَا سَجَدُوا فَلْيَكُونُوا مِن وَرَآئِكُمْ وَلْتَأْتِ طَآئِفَةٌ أُخْرَىٰ لَمْ يُصَلُّوا فَلْيُصَلُّوا مَعَكَ وَلْيَأْخُذُوا حِذْرَهُمْ وَأَسْلِحَتَهُمْ وَدَّ الَّذِينَ كَفَرُوا لَوْ تَغْفُلُونَ عَنْ أَسْلِحَتِكُمْ وَأَمْتِعَتِكُمْ فَيَمِيلُونَ عَلَيْكُم مَّيْلَةً وَاحِدَةً﴾[3]
د ايت مطلب: کله چي ته له دوی سره په جهاد کي يوځای يې نو دوی دوې ډلي کړه، يوه ډله دي له خپل ځان سره پر لمانځه ودروه چي اسلحه هم ورسره وي او بله ډله د دښمن په مخ کي ودروه.[4]
په حديث شريف سره هم د جماعت لمونځ ثابت دی لکه څنګه چي رسول الله ﷺ فرمايلي دي: د جماعت لمونځ تر يوازي لمانځه د سنن ابوداود په روايت (۲۷) درجې ثواب لري، او د صحيح البخاري په

---

۱- تفسير المظهري سورة المومن ايت ٦٠ صـ ۲۷۱ اتم ټوک مکتبه علوم الاسلاميه.
۲- تفسير المظهري سورة المومن ايت ٦٠ صـ ۲۷۰ اتم ټوک مکتبه علوم الاسلاميه
۳- سورة النساء ايت ۱۰۲.
۴- فقه الاسلامي وادلته انواع الصلاة صـ ۱۱۶۵ دوهم ټوک مکتبه فريديه. - تفسير روح المعاني سورة النساء ايت ۱۰۲ صـ ۱۷۵ پنځم ټوک مکتبه رشيديه. تفسير القرطبي سورة النساء ايت ۱۰۲ صـ ۳۴۴ پنځم ټوک مکتبه رشيديه

روايت (۲۵) درجې ثواب لري .[۱]

دجماعت دلمانځه دفضيلت په اره ډيراحاديث مباركانو كي راغلي دي چي د هغوى له نتيجې څخه معلومېږي چي جماعت دلمانځه دتكميل لپاره يومهم جز دی ، همدارنګه رسول الله ﷺ هيڅ وخت دجماعت لمونځ نه دی پرې ايښی ان تردې چي دناروغۍ په حالت كي يې هم (چي مسجدته دتلوتوان به يې نه درلودی) ددوونفروپه مرسته خپل ځان مسجدته رساوه اولمونځ يې په جماعت سره كاوه ، نبي كريم ﷺ ته دجماعت پرېښوونكي انسان ډيربدايسېده څكه ابوهريرة ﷺ روايت كوي چي رسول الله ﷺ به داقصدكاوه چي مايوچاته امركړی وای چي دغه خلكوته لمونځ وركړه اوزه دهغو خلكوكورونوته ولاړسم چي لمونځ نه كوي اود دوی كورونوته اور واچوم .[۲]

دجماعت لمونځ په اجماع (ټولنه) دصحابه كرامو رضی الله عنهم هم ثابت دی څكه ټولو صحابه كرامو رضی الله عنهم دجماعت دلمانځه پرټينګوالي باندي اجماع كړې وه .

---

۱- سنن ابوداودكتاب الصلاة ص۸۲ اول توک مكتبه رشيديه . - بدائع والصنائع ص۳۸۴ لومړي توک مكتبه رشيديه - جامع الاصول ص۲۵۰ السم توک . - نيل الاوطار ص۱۲۶ دريم توک . - فقه على المذهب الاربعه كتاب الصلاة ص۳۷۲ لومړی توک مكتبه وحيدي كتب خانه . - جامع الترمذي ابواب الصلاة ص۱۵۳ لومړي توک مكتبه رحمانيه - فقه الاسلامي وادلته الفصل العاشرانواع الصلاة ص۱۱۲۵ دوهم توک مكتبه فريديه

۲- بدائع والصنائع كتاب الصلاة ص۳۸۴ لومړي توک مكتبه رشيديه . - جامع الترمذي ابواب الصلاة ص۱۵۳ لومړي توک مكتبه رحمانيه - فقه على المذهب الاربعه كتاب الصلاة ص۳۲۸ لومړی توک مكتبه وحيدي كتب خانه . - فقه الاسلامي وادلته الفصل العاشرانواع الصلاة ص۱۱۲۹ دوهم توک مكتبه فريديه . - اعلاء السنن ابواب الامامة ص۱۲۲۰ دريم توک مكتبه امداديه

۲- احياء العلوم ص۱۵۱ لومړي توک . - فقه الاسلامي وادلته ص۱۱۲۵ دوهم توک مكتبه فريديه .

دپخـــواني عـــلماؤکرامو رحمة الله علیهم اوبنـه خلکوڅخـه بـه چي کله تکـبیر الاولی (لومـــړی تکبیر) تېرسو ، نودرېږ ورځـي بـه يې خپل خان بد احساساوه اوکه بـه جماعـت ورڅخـه تېرسونو اووه ورځـي به يې خپل خان بداحساساوه (١)

څکه ابن مسعود ﷺوايي چي کله چيري يوڅوک غـواړي چي هر سهاردالله ﷻسره ملاقات وکړي په داسي حال کي چي دی مسلمان وي نوددغوپنځولمونځودي ښه ساتنه وکړي، هرڅوک چي ښه اودس تـازه کړي اومسجدته راسي لمونځ وکړي نو الله ﷻبه ګام پرګام باندي يوه نيکي ورکړي اويوه درجه به يي ورلوړه کړي اويوه ګناه به يي ورڅخه ليري کړي او موږ‌نه دی ليدلی داسي څوک چي مخالفت دي ورڅخه وکړي مګر منافق چي منافقت يي ښه ښکاره وي (٢)

رسول الله ﷺفرمايي : هر هغه څوک چي دشپې په تياره کي مسجد ته ځي دهغه لپاره داخرت په ورځ به تمامه معنی (نور) دی (٣)

## يوڅومهمي خبري

٧٢_ **مسئله**: - امام صـاحب ﷫داسنت بللی دی چي دمقتدي الله اکبر به دامام دالله اکبرسره يوځای وي اوداېي شرط بللی دی چي دمقتدي الله اکبر به دامام څخه دمخه نه وي (٤)

٢ - جامع الاصول صـ ٣٧٠ شپږم ټوک .
٣ - سنن ابوداود كتاب الصلاة صـ ٨٢ دوهم ټوک مکتبه فريديه .
٤ - فقه الاسلامي وادلته كتاب الصلاة صـ ٨٧٢ دوهم ټوک مکتبه فريديه .

- دامام ابوحنيفه رحمه الله او امام مالک رحمه الله په نزد دمقتدي لپاره مستحب دی چي دامام تر ﴿وَلَا الضَّالِّينَ﴾ وروسته دي پټ (کرار) امين ووايي خو امام شافعي رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله يي بيا په پټ (کرار) لمانځه کي امين کرار مستحب بولي او په جهري (په زوره) لمانځه کي يي په لوړ اواز ويل مستحب بولي، ځکه امام ابوحنيفه رحمه الله او امام مالک رحمه الله دخپل خان لپاره دابوهريرة رضي الله عنه هغه حديث شريف رانقل کوي چي رسول الله ﷺ فرمايلي دي: کله چي امام امين ووايي نو تاسي هم امين ووايا ست که چيري ستاسي امين ملائکو عليهم السلام له امين سره يوځای سو نو الله جل جلاله به ستاسي مخکي ګناهونه درته معاف کړي. (١)
- دجماعت په لمانځه کي داسنت طريقه ده چي مقتدی به دامام دسلام سره يوځای سلام ګرځوي ځکه لکه مقتدی چي په نوروالله اکبرو کي دامام سره موافقه کوي نو په سلام کي به هم موافقه ورسره کوي. (٢)
- که پرامام باندي سجده سهوه واجب سي او په لمانځه کي د ننه وربه يادنه سي نو پرمقتدي باندي هم سجده سهوه کول واجب نه ده. (٣)
- مقتدي ته روانه دي چي دامام ځخه دمخه سجدي يا رکوع ته

---

١- فقه الاسلامي وادلته فصل الصلاة ص ٨٧٩ دوهم ټوک مکتبه فريديه.
٢- فقه الاسلامي وادلته فصل الصلاة ص ٩١٢ دوهم ټوک مکتبه فريديه.
٣- عالمګيري ص ٦٦ لومړي ټوک مکتبه رشيديه.

ولاړسي خکه داکاره دمقتدي لپاره مکروه تحريمي دی .[۱]

● کـه يوځـوک (کـه امـام وي کـه منفـرد) دقرائـت وروسـته ترركـوع مخکي ديورکن (رکوع ياسجدې) چي دري واره سبحان الله پکښي ويل کېږي دونه وخت چوپ پاته سي يعني په فکر کي ډوب ولاړوي اوهيڅ نه وايي نوسجده سهوه باندي لازمېږي .[۲]

● که چيري يوچا (امام يامنفرد) ته داسي شک پيداسي چي يوه سجده يې وکړه اوکه دوې ؟نوپه دې وخت کي به په غالب ګمان باندي عمل کوي اوکه غالب ګمان نه ورته معلومېدی نو يوه بله سجده دي وکړي اودلمانځه په اخرکي دي سجده سهوه وکړي .[۳]

● که پرامام يامقتدي باندي سجده سهوه لازمه وي اوبيا په اخره ناسته کي داشک ورته پيداسو چي سجده سهوه يې کړې ده اوکه نه ؟ نوپه دې صورت کي به پرغالب ګمان باندي عمل کوي اوکه يې غالب ګمان نه ورته معلومېدی نوبيادي سجده سهوه وکړي .[۴]

● که امام يامنفرد لمونځ کوونکي په يوه رکعت کي دوې رکوعې وکړي نو سجده سهوه به کوي که چيري يې سجده سهوه ونه کړه نو لمونځ به لـه سره راګرځوي خوکـه دغه مسئله دجمعې يااختر په لمونځونو کي پېښه سي، نودخلکودګڼې ګوڼې په وجه دي سجده

۱- بهشتي زيورصـ ۶۲حصه ۱۱ .- شامي صـ۳۲۹لومړي توک .
۲- عالمګيري صـ۶۵لومړي توک .-فتاوای رحيميه صـ۱۸لومړي توک .
۳- ردالمحتارصـ ۱۰۲لومړي توک .- فتاوای دارالعلوم ديوبند صـ۲۱۸څلورم توک .
۴- شامي صـ ۲۹۵لومړي توک .

سهوه نه کوي ځکه چي بيا په خلکو کي ګډوډی پيدا کېږي خولمونځ بې صحيح دی .([1])

● که چيري امام يا يوازي لمونځ کوونکی په رکوع يا سجده کي د تسبيح پرځای بسم الله الرحمن الرحيم ووايي نو سجده سهوه نه لازميږي ځکه د رکوع او سجدې تسبيح واجب نه دي ، خو که چيري د تشهد (التحيات) پرځای باندي بل څه ووايي نو سجده سهوه ورباندي لازميږي ځکه اخره تشهد (التحيات) ويل واجب دي او که چيري اوله ناسته وي نو په اوله ناسته کي تشهد (التحيات) سنت دي نو سجده سهوه نه لازمېږي ځکه سجده سهوه په دروشيانو سره لازمېږي لکه د فرض ځنډول، د واجبو پرېښودل او د واجبو ځنډ بدل .([2])

● د تکبير الاولی وخت : ښه خبره داده چي مقتدی تکبير الاولی ونيسي، ځيني علماء کرام رحمة الله عليهم وايي چي که د قرائت څخه مخکي مقتدی په لمانځه کي شريک سي نو د تکبير الاولی ثواب لري او ځيني بيا وايي چي که د قرائت څخه وروسته هم د امام سره په لمانځه کي شريک سي نو هم د تکبير الاولی فضيلت ورکول کېږي([3])

١- فتاوای دارالعلوم ديوبند ص ٣٧٩ څلورم ټوک . - ردالمحتار ص ٧٠٥ لومړي ټوک

٢- فتاوای دارالعلوم ديوبند ص ٣٩٢ څلورم ټوک . - هدايه کتاب الصلاة باب سجده سهوه ص ١٢٠ لومړي ټوک مکتبه رشيديه .

٣- فتاوای دارالعلوم ديوبند . - امداد فتاوای ص ١٨٥ لومړي ټوک .

## دجماعت لمونځ

۷۳_ **مسئله** : ابوهريرة ﷺ وايي چي رسول الله ﷺ وفرمايل : که چيري خلک په دې باندي خبروای چي په اذان او دلمانځه په اول صف کي څومره ثواب سته نو دوی به نه وای پرې ايښی او که داخلک په دې باندي خبر وای چي په اول تکبير کي څومره ثواب سته نو بيا هر چا دا کوښښ کاوه چي زه بايد وړدمخه سوی وای ، او که چيري داخلک په دې هم خبروای چي څومره ثوابونه دماخستن او سهار په لمانځه کي سته نو خامخا به دوی ودغو لمونځونو ته راتلل کړی وای . (۱) حضرت عثمان بن عفان ﷺ وايي ما د رسول الله ﷺ څخه واورېدل چي سرور کائنات ﷺ وويل هرچا چي دماخستن لمونځ په جماعت سره وکړی لکه ترنيمي شپې پوري چي پر لمانځه ولاړوي او که چا بيا دسهار لمونځ په جماعت هم سره اداء کړی لکه ټوله شپه چي پر لمانځه باندي ولاړوي . (۲)

## دقبردعذاب يوه نابلده کيسه

۷۴_ **مسئله** : عبدالحميد بن محمود مغولي رحمه الله وايي چي : زه دحضرت عبدالله بن عباس ﷺ په مجلس کي ناست وم چي يو څو نفره راغلل او عرض يې وکړ چي دحج لپاره راوتلي وه خوکله چي

---

۱- فقه الاسلامي وادلته ص ۱۱۶۶ دوهم ټوک مکتبه فريديه - تجريد کتاب الصلاة دمسئلي نمبر ۲۶۶ ص ۱۰۲۴ دوهم ټوک مکتبه محموديه

۲- فقه الاسلامي وادلته ص ۱۱۶۷ دوهم ټوک مکتبه فريديه .

مـوړ ذات الـصفاح (دیوخـای نـوم دی) تـه راورسـېدلو نـو زمـوړ يـو ملګری په لاره کي وفـات سـو ، مـوړ هغـه تـه غـسل اوکفن ورکړی ، بیامو قبرورته وکیندی ، کله چي موقبر وکیندی موړ په قبر کي يو مار ولیدی چي پرټوله قبر راګرځېدلی ؤ ، بیـامـوړ بـل قبر وکیندی پـه هغـه قبرکـي هـم هغـه مارموجودؤ ،نوموهغـه مـړی پرهغـه خـای باندي پرېښودی دادی اوس موړتاتـه راغلـو چي مـوړ اوس بـه دغـه مړي باندي څه وکړو ؟

حضرت عبدالله بن عباسﷺوويـل : دامـار دده خپـل هغـه بـد عمـل دی چي دی ورسره عادي ؤ ، ورسئ او هغه مړی په هغه قبر کي ښخ کړئ . زمـادي پـه الله ﷻ قسـم وي کـه تاسـي دده لپاره ټولـه مځکـه وکيندی (وکـاړی) نوبيابـه هـم دغـه مارپـه هغـه قبرکـي وي ، نومـوړ دغه مړی په دغه قبرکي په دغه قسم ښخ کړی . کله چي موړ دسفر څخه راغلو نو خلکوده دکوروالا(میرمني ) څخه پوښتنه وکړه چي ده (مړی) کوم ناوړه عمل کوي ؟

هغې ورتـه وويـل چي دده کـار دغـنم خرڅـول وه اوهره ورځ بـه يې د ګونی څخه دخپل کور لپاره یوڅه راګرځول اوپـه ګونی کي بـه يې دهغه په اندازه پروړ (بوس ) اچول اوپه چم اوفریب سره بـه يې بوس دغنموپه بيه خرڅول . (١)

١-البيهقي في شعب الايمان به حواله شرح الصدر صـ ٢٣٩.

## دوېښتانو دليري کولو لپاره

۷۵_ **مسئله** : دنامه لاندې وېښتانو دليري کولو لپاره (موی پاک) اوکريم استعمال چې په اوس وخت کې کېږي په دې کې هيڅ مشکل نسته اومثال يې دادی چې فقهاء ددې مقصدلپاره دچوني (اهاک) داستعمال اجازه هم ورکړې ده،ژباړه :که دنامه څخه دلاندې وېښتانو لپاره داهاک استعمال سې پروانه لري،نواصلي مقصد خو دوېښتانو صفايي کول دي نه سامان .(۱)

## دېښو په مابين کې ليري والی

۷۶_ **مسئله** : امام ابوحنيفه ﷺ وايي چې په ولاړه کې بايدلمونځ کوونکی دڅلورو ګوتو په اندازه دخپل پښوپه مابين کې جلاوالی راولي ځکه چې داکارپه لمانځه کې وعاجزی ته ډيرنږدې دی .(۲)

## دلمانځه ارکان (فرضونه)

۷۷_ **مسئله** :امام ابوحنيفه ﷺ وايي چې : په لمانځه کې شپږشيان رکن (فرض) دي ۱- تکبيرتحريمه (اول تکبير) ۲- په ولاړه لمونځ

۱ - فتاوای عالمګيري باب الکراهة ولوعالج بالنورة في العانة يجوز ص۳۵۸ پنځم ټوک مکتبه رشيديه .شرح المسلم للنووي باب خصال الفطرص۱۲۸ لومړي ټوک . -نيل الاوطار باب الختان ص۱۲۲ لومړي ټوک .
۲ - فقه الاسلامي وادلته الفصل الخامس ص۸۸۱ دوهم ټوک مکتبه فريديه .

کول ۳- دالحمد لله څخه وروسته ديوه سورة (قرائت) ويل ۴- رکوع کول ۵-سجده کول ۶-اواخري ناسته دالتحيات په اندازه سره .[1]

## داوداسه روښتيايي ګټې

۷۸_ **مسئله** : دپاکوالي لپاره داوبو استعمال دبدن داخلي مکروبونه له منځه وړي که چيرې په بدن کې مکروبونه پاته سي دخولې له لارې وزې اودهواسره يوځای کيږي اونوروانسانانو ته سرايت کوي چې دډول ډول ناروغيو دخپرېدوسبب ګرځي دبدن څخه دحقيقي اوحکمي مکروبونو دوتلولپاره داوبواستعمال يوه ښه لاره ده .[2]

## داوداسه حکمتونه

۷۹_ **مسئله** : پاکي دايمان يوه برخه ده که چيرې په دنيايي چاروکې دکوم کس کالي يابدن چټل وي دخوشحالۍ محفل يا دکوم لوړ رتبه کس حضورته په داسي جامه کي نه ورځي ځکه داده ځان لپاره بدګڼي که څوک يوداسي ځای ته بلل سوی وي چې هلته واده يانور دخوښۍ مراسم ترسره کيږي نولومړی خپل نظافت ګوري اوډول ډول عطرونه په ځان پوري وهي اوبياهلته ځي ، څرنګه چې مسلمانان د لوی الله ﷻ په حضور کي ودريږي اودجنت اوبخښني

---

۱- فقه الاسلامي وادلته الفصل الخامس صـ۸۱۵اول توک مکتبه فريديه .- فتاوای عالمګيري الباب الرابع في صفته الصلاة صـ۶۸لومړي توک مکتبه رشيديه - ردالمحتار کتاب الصلاة صـ۲۳۰لومړي توک مکتبه رشيديه . - فقه على المذهب الاربعه صـ۱۸۲ لومړی توک مکتبه وحيدي کتب خانه .

۲-بنايه شرح الهدايه .

سوال هم ور څخه کوي ايالازمه ده چې په چتلو جامو اوياخيرن بدن دلوی خدای ﷻ په حضورکي ودريږي ؟
انسان فکرکوي چي که چيري دکوم لوړ رتبه کس په وړاندي په خيرنه جامه ودريږم نو امکان لري چي په امتياز کي مې فرق راسي سره له دې چې داموقتي اولنډمهاله امتيازدی ، نوکه چيري څوک د خپل قادرذات ﷻ په وړاندي په چتل بدن ياجامه دريږي څنګه به دپوره امتيارهيله ولري ، دفقهي دکتابونو حکم همداسي دی چي دکارپه جاموکي لمونځ کول مکروه تنزيهي دی .([1])
مثال يې دادی لکه مستري چي په غوړوکالوکي لمونځ کوي ياهغه کس چي قصابي کوي يادقصاب سره کارکوي په هغوکالو کي لمونځ کوي .دنظافت نه مراعت کول دانسانانو په منځ کي دليري والي سبب کيږي ځکه چي دبدبويي څخه دهرانسان نفرت کيږي ، نو ځکه شارع دجمعې اواخترونو دلمونځونو لپاره غسل سنت ګرځولی دی ، اوسني طب هم ثابته کړي ده چي نظافت ساتل د مرضو دليری کيدوعامل دی ، دوی وايي دانسان دبدن پوست کوچني کوچني سوري لري دبدن دخيرنتيا په سبب دغه سوري بند يږي چي طبعاً دناروغيوسبب کيږي همدارنګه په نبوي

[1] - فتاوای هنديه الباب السابع صـ١٠٧ اول ټوک مکتبه رشيديه .

ارشاداتو کي واضح راغلي دي چي پاکي دلمانځه اولمونځ دجنت لپاره کیلي ده اوهم پاکي دایمان یوه برخه ده .([1])

## دښځو لپاره ږالي په غوږکول

۸۰_ **مسئله** : اسلام وښځوته دخپل ځان دښایست لپاره میانه لار اختیارکړېده ، یوه خواته یې دښایست لپاره دبې ځایه اوزیات تکلیفو څخه منع ورکړې ده اوبل طرف ته یې تریوې خاصي اندازې پوري ددې ښایست ته اجازه ورکړې ده څکه چي په غوږاوپزه کي یې دسوري کولولپاره اجازه ورکړې ده .([2])

ژباړه : دښځولپاره په غوږوکي دسوري کول باک نه لري اوهم دکوچنۍ نجونو ته اجازه سته چي خپل غوږونه سوري کړي څکه دوی درسول الله ﷺ په زمانه کي همداسي کول . نوښکاره خبره ده چي وغوږونوته سوري ورکول روادي نو دغوږوالیواوپیزوان استعمال هم صحیح دی دغه رقم دوېښتانو دښایست لپاره دسپینو زرو ،سرو زرو اویابل شي څخه جوړسوی ګل دایښوولو اجازه هم سته (ولاباس للنساء بتعلیق الحرزمن شعورهن من صفرونحاس اوحدید ونحوهاللزینة)اوهمدارنګه ښځوته دښایست لپاره په خپلو وېښتانوکي دزرو، میسو ،اوسپني اودغمیو په ایښوولوکي هیڅ پروانسته .([3])

---

۱- رواه احمد

۲- فتاوای عالمګیري ولاباس بثقب ......في زمان رسول الله ﷺ من غیر انکار صـ۳۵۷ پنځم توک مکتبه رشیدیه .

۳- فتاوای هندیه الباب العشرون في الزینة صـ۳۵۹ پنځم توک مکتبه رشیدیه

## دنڅا(رقص)او موسيقۍ مزدوري

۸۱_ **مسئله**: د موسيقۍ د الاتو څخه خوند اخيستل او ږغول ناروا اوحرام کار دی ځکه په حديث شريف کي پردې کارباندي ډيربدويل سوي دي ، داخوښکاره خبره ده چي داسي شيان اوداسي شيانو استعمال گناه ده ، نو داسي الاتو په سلسله کي فقهاء رحمة الله عليهم داسي اصول بيان کړي دي: يوازي اويوازي دغسي الاتورانيول اوخرڅول روانه دي بلکي خوداسي شيانو خرڅول اورانيول پروانه لري چي دبدلون وروسته دگناهونوالات ورڅخه جوړسي دمثال په ډول دشپېلۍ خرڅول روانه دي خودهغه لرګي خرڅول بياپروانه کوي چي شپېلۍ ورڅخه جوړيږي ځکه علامه ابن عابدين شامي وايي: ددې څخه معلومه ده چي دداسي شيانو خرڅول مکروه نه دي چي په خپله ذاتاً په هغه کي گناه نه وي دمثال په ډول داسي مينځه چي غزلي وايي،ښکروهونکی مينده (پسه)، داسي کوتره چي ډيره تېزه الوزي ، دميوو اوبه اوداسي لرګی چي شپېلۍ ورڅخه جوړيږي.(۱) په خلاصة الفتاوای کي داسي راغلي دي: که څوک ديوذمي (هغه چي اسلامي حکومت يې ذمه اخيستي وي) سره په دې غرض مزدوري وکړي چي دهغه لپاره دانګورو او يا داسي نورو ميوواوبه وباسي چي شراب ورڅخه جوړکړي ، نو د رسول الله ﷺ دفرمان سره سم به مکروه وي چي دشرابو په هکله

۱- ردالمحتار کتاب الکراهة فصل البيع .

رسـول الله ﷺ لــس نفـره لعنتــي بللــي دي اوکـه پـه درمــسال کــي دکـارکولو لپـاره مزدورسـي نـو هـيڅ پروانـسته څکـه چـي کـارخوپـه خپله ګناه نه لري . امام سرخسـي صاحب په خپـل کتـاب مبـسوط للسرخسي کتاب الاشربة کي داسي وايي چي دداسي مېوېـه اوبـو خرڅولوکي هيڅ پروانسته چي دهغه اوبو څخه شراب جوړکړل سي خوديـارانو(امـام محمـد ﷬اوامـام ابويوسـف ﷬) پـه نزدمکـروه دي .(١)

## دحمل نه کېدولپاره درمل (دوا)

۸۲_ **مسئله** : داولاد نـه پيداکېـدو صـورت دادی چـي دښځي رحم تـه دنارينـه نطفـه (مني) ورسېږي ، خوکـه داسـي دواوي استعمال کړل ســي چــي دحمــل مخــه نيــسي .دفقهــي شــريفي دمثالـونوڅخـه معلومېږي چي داصورت هم په عاموحالاتوکي ناجائز دی که څه هم داخبره صحيح ده چي اوس مـاده (مني)دروح اوژوند څخه خالي ده څکه ددې ضايع کول په داصلاحي قتل په درجه کي نه راځي،خوکـه چيري په خپل حالت کي پاته سوې وای نوديوڅـه مـودې وروسـته بـه دغه ديو ژوندي انسان شکل پيداکړی وای،نوداهم وژل ګڼل کېږي لکه څنګه چي شمس الائمه علامه سرخسي ﷬ددې خبري ښـه وضـاحت پـه داسـي ډول کـړی دی وايي:دښځي رحم تـه چي نطفـه

١- خلاصة الفتاوای صـ۳۲۴ څلورم ټوک .

ورسېږي نوترڅو چې خرابه نه سي دژونديې كېدو صلاحيت لري
څكه ددې دضايع كولوپه صورت كي به ديو ژوندي انسان ضايع
كول ګڼل كيږي او ددې تاوان به واجب وي لكه څنګه چې يوڅوك د
احرام په حالت كي دښكاره هګۍ ماته كړي نوپرده باندي به هغسي
تاوان واجب وي كوم تاوان چې ديو ښكار په وژلو باندي دي (١)
په دې هكله امام غزالي رحمه الله رايه داده چې دانساني وجودتر ټولو
اوله درجه داده چې نطفه رحم ته دننه سي اودښځي دنطفې (منيو)
سره ګډه سي اودژوند قبلولو صلاحيت په كي پيداسي ، نو ددې
ضايع كول ګناه ده .(٢)
نواوس داخبره معلومه سوه چې ببلـه عذره څخه داسي دوا
استعمالول نه ده په كار چې په هغه سره دحمل مخنيوى كيږي څكه
دالويه ګناه ده .(٣)
ژباړه :كه چيري بياداسي حالت مابين ته راغى چې دښځي په نس
كي دانسان خلقت سوى وو لكه وېښتان،نوكان اوداسي نور نوبيا
په داسي حالت كښي سخته ګناه ده چې دغه كوچنى ايسته كوي

١- المبسوط للشيخ شمس الائمة الفقهيه الاصولي النظارابي بكرمحمدبن احمدبن ابي سهل السرخسي حنيفي ص ٨٧شپږم ټوک
٢- احياءالعلوم ص ٥٣درهم ټوک
٣- معارف القران ص ٦٨٢اتم ټوک

خکه په دې وخت کې یې ایسته کول په هیڅ صورت کې جواز نه لري. [1]

## دحیض موده

۸۳_ **مسئله** : دحیض لنډه موده درې ورځې اوشپې اواوږده موده یې لس شپې او ورځې ده. [2]

نوکه چیرې یوې ښځې ته تردرو ورځواوشپوځخه لږوینه راسي نوهغه وینه به دحیض وینه نه وي بلکې هغه به دیوې ناروغۍ وینه وي چې په عربي کې ورته استحاض (مرض) وایي په عام ډول د(۹)کالو څخه مخکې دحیض وینه ښځې ته نه راځي که چیرې د(۹) کالو څخه مخکې وینه ورته راغله نو هغه به دحیض نه وي هغه ته استحاض (مرض) ویل کیږي. [3]

که چیرې یوې ښځې ته په هره میاشت کې درې ورځې حیض ورتلی خوکه دامیاشت دې ته (۶-۷-۸-۹)ورځې وینه ورغله نوداهم حیض بلل کیږي خکه دحیض ډیره موده لس ورځې اوشپې ده اوکه چیرې دلسو ورځواو شپو څخه وروسته هم وینه راتله نوهغه وینه دحیض نه بلل کیږي بلکې هغه وینه دناروغۍ ده چې په عربي کې استحاض (مرض) ورته ویل کیږي. که چیرې یوه ورځ وینه راغله

۱-العلاج الاسقاط الولداذااستبان خلقه كالشعروالظفرونحوهمالايجوز . - فتاوای هنديه باب الثامن عشرص ۳۵۶پنځم ټوک مکتبه رشيديه .
۲-التنف في الفتاوای ص ۸۹مکتبه يوسفيه .
۳-عالمګيري ص ۳۸لومړي ټوک مکتبه رشيديه .

بیابنده سوه اوبیاوینه راغله نوداټول ه دحیض وینه ده یعني ټوله موده دحیض ده که چیري یوه ورځ وینه وه اواته ورځي پاکي وه اویوه ورځ بیا وینه راغله نودا حیض نه دی ځکه دحیض په اخر کي وینه نه وي ولي چي دحیض په اخرکښي سپین والی راځي (وینه نه وي بلکي سپیني اوبه راځي) چي هغه پرپاکوالي دلالت کوي .(۱)

## دحیض په وخت کښي جماع (کوروالي)کول

۸۴_ **مسئله** : ابن عباس ﷺوایي چي رسول الله ﷺوفرمایل : کله چي سړی دخپلي ښځي سره دحیض په حالت کي جماع وکړي نونیم دینار سره زر دي خیرات کړي .(۲)

په بل حدیث شریف کي دابن عباس ﷺڅخه روایت دی چي سرورکائنات ﷺوفرمایل : که چیري دحیض وینې سرې وي یو دیناردي خیرات کړي اوکه دحیض وینه ژړه وي نونیم دینار دي خیرات کړي اوکفاره یې توبه اواستغفاردی .(۳)

خوداخبره غلطه ده چي پرسړی خپله ښځه طلاقیږي .(۴)

---

۱- عالمگیري ۳۷لومړي ټوک مکتبه رشیدیه .- بحرائق ص۳۳۲لومړي ټوک مکتبه رشیدیه

۲- جامع الترمذي ص۳۵۰لومړي ټوک مکتبه رحمانیه .

۳- مشکواة باب الحیض ص۲۷۵لومړي ټوک مکتبه البشرای .

۴- ویسن لمن وطئ الحائض ان یتصدق بدینار.....فلیتصدق بنصف دینار ، فقه الاسلامي وادلته ص۲۶۴۲خلورم ټوک مکتبه فریدیه .- عون المعبودشرح ابوداود کتاب الطهارة ص۳۲۱لومړي ټوک مکتبه قدیمي کتب خانه - سنن ابي داود کتاب الطهارة ص۳۵لومړي ټوک مکتبه رشیدیه - النتف في الفتاوای کتاب النکاح ص۱۸۸مکتبه یوسفیه .

## دخپلې ښځې سره دشاپه خواکې جماع کول

۸۵_ **مسئله** : دابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل ژباړه : لعنتي دی هغه څوک چې خپلې ښځې ته دشاله خوارا خې يعني جماع ورسره کوي .(۱)

په بل حديث شريف کې دابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل ژباړه : هغه څوک چې خپلې ښځې ته دشاپه خواکې راشي يعني جماع (وطي) ورسره کوي نو الله ﷻ په نظر د رحمت نه ورته ګوري .(۲)

دحضرت ابن عباس ﷺ څخه روايت دی چې نبي کريم ﷺ وويل ژباړه : الله ﷻ هغه چاته درحمت په نظرنه ګوري چې هغه نارينه يا ښځې ته دشاپه خواکې راتلګ کوي يعني جماع ورسره کوي .(۳)

دښځې سره دشاپه خواکې جماع کول حرام دي .(۴)

## خاوند ته اجازه سته

۸۶_ **مسئله** :-که چيري يې ښځې لمونځ نه کاوه نوخاوندا اجازه لري چې خپله ښځه ووهي

- که چيري خاوند خپله ښځه دجماع لپاره وغواړي او هغه کوم

---

۱- مشکواة المصابيح کتاب النکاح صـ ۲۰۸ دريم ټوک مکتبه البشرای .

۲- (لاينظر الله ﷻ الی رجل اتی اوامراة في الدبر) جامع الترمذي ابواب الرضاع صـ ۳۵۰ لومړي ټوک مکتبه رحمانيه

- ردالمحتارباب الوطی صـ ۱۷۰ دريم ټوک مکتبه البشرای .

۳- مشکواة المصابيح کتاب النکاح صـ ۲۰۹ دريم ټوک مکتبه البشرای .

۴- النتف في الفتاوای صـ ۱۷۳ مکتبه يوسفيه .

شرعي عذر ونه لري او انکار وکړي ، خبره يې ونه مني نو خاوند حق لري چې خپله ښځه ووهي .

- که چیري ښځه د خاوند له اجازه پرته له کوره ووځي نو خاوند ته دا اجازه چې خپله ښځه ووهي
- که چیري ښځه غسل نه کوي نو خاوند ته جواز لري چې خپله ښځه ووهي .
- که چیري ښځې خپل خاوند ته ځان نه ښایسته کاوه او یا يې نظافت نه مراعت کوی نو خاوند ته اجازه شته چې ښځه ووهي (١)

## له خوبه څخه د راویښېدو دعا

٨٧_ **مسئله** : کله چې به رسول الله ﷺ له خوب څخه راویښ سو نو سمدستي به يې د شکر د اداء کولو لپاره دغه لاندي کليمې ویلې : (اَلْحَمْدُلِلّٰهِ الَّذِيْ اَحْيَانَا بَعْدَمَا اَمَاتَنَا وَاِلَيْهِ النُّشُوْرِ) ژباړه : ټوله حمد ، ثنا او شکر الله ﷻ ته ثابت دي هغه الله ﷻ لره چې د مرګ څخه وروسته يې موږ ته بیا ژوند را کړی او د مرګ څخه وروسته د غه الله ﷻ ته ورتلل دي .(٢)

١- الملتقط في الفتاوای حنيفيه ص١٠٢ مکتبه حقانيه
٢- عمدة القاري شرح البخاري کتاب الدعوات ص٢٣١ دوويشتم ټوک مکتبه رشيديه - المصنف لابن ابي شيبه کتاب الاداب ص٥٠٠ ديارلسم ټوک مکتبه المجلس العلمي بيروت لبنان . - جامع الترمذي ابواب الدعوات ص٤٥٢ دوهم ټوک مکتبه رحمانيه .

## دپور داداء کولو لپاره دعا

۸۸_ **مسئله** : داچي انسان دپور کولو په وجه ذليله کيږي اورسول الله ﷺ به هم هغه چاته دجنازې لمونځ نه ورکاوه چي پور به پرباندي وُ ، رسول الله ﷺ دحضرت علي رضي الله عنه ددې لاندي دعاتاکيد کاوه چي دادعابه وايي (ترڅو چي الله جل جلاله به دی دپور څخه خلاص کړي ) «اللّٰهُمَّ اكْفِنِيْ بِحَلَالِكَ عَنْ حَرَامِكَ وَاغْنِنِيْ بِفَضْلِكَ عَمَّنْ سِوَاكَ» ژباړه : ای الله جل جلاله ! ماته حلال رزق راکړې اوله حرام څخه مې وساتې اوله هرچاڅخه مې بې احتياج کړې ماسيوا ستاڅخه .

## دبغل وېښتان

۸۹_ **مسئله** : رسول الله ﷺ دبغل وېښتان راکښل يې د فطرت له امورو څخه ګرځولي دي .(۱)

نوځکه ددې په مسنون (سنت) کېدو باندي اتفاق دی که چيري په کښلوکي تکليف وي نو دبغل وېښتان خريل يا په بله کومه طريقه سره صفا کول هم کافي دي .(۲)

دبغل وېښتان کښل ځکه ښه دي چي داډول وېښتان لږلږ بيرته راځي اوخيره هم لږېکښې راجمع کيږي خود خريلو په صورت کي دوېښتانو پيدا ښت زيات يږي اوپه دې وجه يې بدبوی هم

۱- سنن ابوداود ص۵۷۲ دوهم توک مکتبه رشيديه
۲- فتاوای هنديه الباب التاسع عشرص۳۵۸ پنځم توک مکتبه رشيديه

زياتــېږي لړترلږه په ځــلو ښـتو ورځــو کي يوځل دوښتانو صفا کول مستحب دي .([1])

دبغل دوښتانو په صفاکولو کي مستحب دي چي دراسته طرف له بغل څخه دي پيل په وکړي ، دسينې اوملاوښتان بيله عذرڅخه پرې کول په کارنه دي فقهاء ددې خريل دادب خلاف کاربللی دی ([2]).

## دخپلي ښځي سره جماع (نزديکت) کول

۹۰ ـ **مسئله** : وخاوند ته دااجازه سته چي دخپلي ښځي څخه نفع واخلي يعني نزديکت ورسره وکړي اودادې لپاره چي انسان دزنااولواطت څخه رامنع سي ، نواوس شريعت وخاوند ته دااجازه ورکړې ده چي دخپلي ښځي دټول بدن څخه نفع واخلي يعني مچه اخيستل ، مسح کول اوداسي نورخوماسيواددې څخه چي دخپلي ښځي سره دشاپه خواکي جماع وکړي اوياهم په خوله کي خپله تناسلي اله ورکړي ، لکه څنګه چي داکاردکفارودی اوهمدارنګه په ايت مبارک کي الله ﷻ فرمايلي دي :(نِسَآؤُكُمْ حَرْثٌ لَّكُمْ فَأْتُوا حَرْثَكُمْ أَنَّىٰ شِئْتُمْ).([3])

---

۱ - عون المعبودشرح سنن ابوداودکتاب الترجل ص ۱۵۰ يرولسم ټوک مکتبه قديمي کتب خانه
۲ - فتاوای هنديه الباب التاسع عشر ص ۳۵۸ پنځم ټوک مکتبه رشيديه
۳ - سورة البقرة ايت ۲۲۳

ژباړه : ستاسي ښځي ستاسي لپاره کروندې دي د (نسل کرلوځای) دی نو هرډول چي غواړئ دخپل کښت د کرلوځای ته ورسئ (هر رنګه چي غواړئ دخپلي ښځي سره جنسي عمل سرته ورسوئ) داچي په ايت شريف کي د (اني شئتم) لفظ راغلی دی نو ددې کلمې معنی داده چي تاسو وخپلو ښځوته راتلې کوئ په هره طريقه سره چي وي ، دمثال په توګه په ولاړي سره ، په ناسته سره ، ستوني ستغ ، اودشادخوا ، لېکن داخبره په پام کي بايدوساتل سي چي نژديکت به دښځي سره يوازي اويوازي دمخ په خواکي وي ، ځکه چي د ښځي دمخ طرف داولاددپيدا کيدو ځای دی اودشاطرف يې داولاد دپيدا کيدو ځای نه بلکي دنجاست ځای دی ، اوالله ﷻ په هرشي کي حکمت لري اوهغه داچي دښځي سره دشاپه خواکي نژديکت کول وښځي ته دمواسيرو دمرض دپيدا کيدو سبب کېږي .نو هر مسلمان ته په کار دي چي دخپلي ښځي سره دشريعت په چوکاټ کي نژديکت اونفع اخيستل وکړي ، دکفارو اوفاسقانو په ډول دښځي سره دشا په خواکي نژديکت کول اوياخپله تناسلي اله په خوله کي ورکول قطعي حرام کاردی نوانسان بايدکوښښ وکړي چي په خپل حلال کاراوفعل کي حرام څه ورداخل نکړي ، بلکي يوازي اويوازي په شرعي امورو باندي عمل وکړي .[1]

۱- فقه الاسلامي وادلته المبحث الرابع ص ۲۶۴۰ څلورم ټوک مکتبه فريديه .

## دجماع (نزديکت) اداب

۹۱_ **مسئله** : ۱-په ابتداء کي بسم الله الرحمن الرحيم ويل
۲- قل هوالله احد ويل .
۳- الله اکبر ويل .
۴- **تهليل** (لااله الا الله) ويل .
۵- باسم الله العلي العظيم اللهم اجعلهاذرية طيبة ويل .
۶- اللهم جنبني الشيطان وجنب الشيطان مارزقتني ويل .
۷- دنزديکت په وخت کي مخ پرقبله شريفه (بيت الله شريفه دعزت په خاطر) بايد نزديکت ونکړي .
۸- دنزديکت په وخت کي بايد هم خپل ځان اوهم خپله ښځه پټه کړي اوداسي نه چي لڅ وي ، ولي چي داکارمکروه دی اوپه حديث شريف کي راځي چي (اذااتي احدکم اهله فليتستر ولايتجرداتجردالعيرين (اني الحارين) يعني څه وخت چي څوک خپل اهل (ښځي) ته راتلل کوي (نزديکت ورسره کوي) نوخپل ځانونه دي پټ کړي اوخپل ځانونه دي داسي نه ښکاره کوي لکه وحشي خره .
۹- دجماع دشروع څخه مخکي بايدلاندي کارونه وسي .
الف- دښځي سره بازی کول
ب - دښځي څخه مچه اخيستل
د- همداکارونه تريوڅه وخته پوري کول په کار دي څکه چي دښځي شهوت څه وخت وروسته راپارېږي .

۱۰- دجماع په وخت کي ډيري خبري کول نه دي پکار ، ځکه چي داوخت دخبروکولو نه دی .

۱۱- دخاوند لپاره دانه دي په کار چي دښځي سره ترڅلورو ورځو پوري زيات بيله عذره نزديکت وځنډوي ، ځکه که چيري يوشخص څلور ښځي ولري نو په نوبت کي خامخاڅلورمه ورځ ويوې ښځي ته رسيږي .

۱۲- که چيري يوځوک غواړي چي دښځي سره دحيض په ورځوکي ملاعبت اوبازی وکړي ، نودښځي لپاره په کارده چي ازاريالنګ وتړي .

۱۳- که يوچاغوښتل چي دخپلي ښځي سره ددوهم ځل لپاره نزديکت وکړي نو ښه خبره داده چي اودس تازه کړي ، ځکه اودس په بدن کي خوشحالي اونظافت راولي ، خوکه چيري اودس نه سي تازه نوخپل تناسلي اندام دي پريولي .

۱۴- مستحب اوښه کارنه دی چي يوسړی په کال ،مياشت اويايوازي اويوازی ددوشنبې اوجمعې په شپه کي دښځي سره نزديکت وکړي .

۱۵- مستحب اوښه کاردی چي دجنابت په وخت کي دخپل بدن (سر ، زيرناف اوبغلو) ويښتان ونه خريي اوهمدارنګه دخپلو لاسو ، او پښو نوکان وانه خلي .(۱)

---

۱- ويکره تنزيهاحلق الشعروقص الاظافير... کلهااحسن الفتاوای ص۳۲ لومړي ټوک .- فتاوای هاديه کتاب الطهارة ص۶ لومړي ټوک مکتبه حقانيه .

۱۶- دواده په شپه چي خاوند او ښځه سره یوځای سي نوخاوندته دا مستحب دي چي د ښځي تندی ونیسي اودغه دعاووایي ‹اللهم اني اسالک من خیرماجبلتهاعلیه واعوذبک من شرهاوشرماجبلتهاعلیه›(۱)

## د ښځي د فرج پرځای دهغې په خوله کي د تناسلي الې استعمال

۹۲_ **مسئله**: داچي د ښځي د شاپه خواکي جماع اونږدیکت کول حرام کاردی اورسول اللهﷺ هم هغه څوک ملعون بللی دی چي د خپلي ښځي سره د شاپه خواکي جماع کوي ، نوداچي بیایوڅوک د خپلي ښځي په خوله کي خپل ذکر(تناسلي اله) ورکوي اویایې په خوله کي ورانزال کوي چي دابد ،زشت اوناوړه فعل د کفارو څخه رواج سوی دی نوداکاراوعمل بیاسخت حرام دی هم په شریعت کی اوهم په انسانیت کي اوبله داچي په خوله سره د الله ﷻ نوم یادیږي چي هغه یا په کلمه کي راځي اویاداسي د قرانکریم په نوروځایونوکي.(۲)

## حیض په څه وخت کي راځي

۹۳_ **مسئله** : دامام ابوحنیفه په نزدکه چیري وحاملي (هغه ښځه چي کوچنی یې په نس کي وي ) وینه راسي نو هغه وینې ته حیض نه بلکي استحاض (مرض)ویل کیږي که څه هم دغه وینه د کوچني

---

۱- ویستحب في لیلة الزفاف قبل الجماع ان یاخذ الرجل بناصیة المراع ویقول .- فقه الاسلامي وادلته المبحث الرابع صـ۲۶۳۶خلورم توک مکتبه فریدیه .

۲-وربماسواءمن الدبروضع الذکرفي فم المراة هماجاءنامن شذوذ القربین، فقه الاسلامي وادلته المبحث الرابع صـ۲۶۳۱خلورم توک مکتبه فریدیه .

دديري خارج سوي حصې (برخې) وروسته راسي بيا هم حيض (د ښځو مياشتنى عادت) نه بلکې مرض ورته ويل کېږي چې د مرض په وخت کې لمونځ ، روژه دخپل خاوند سره نژديکت او هم د قرانکريم تلاوت اونور فرضيات به هم کوي ، هغه که قضايې ، نفلي او يا نذري وي او همدارنګه د قرانکريم تلاوت هم کولای سي . خو څه وخت چې د دغه لمانځه وخت تېر سو بيا به د بل لمانځه لپاره بل اودس تازه کوي . ([1])

## دنارينه کتل وښځې ته

۹۴_ **مسئله** : که چيري يوه ښځه ديو چاخپله ښځه وي يعني نکاح يې ورسره کړې وي نوده ته دا روادي چې دخپلې ښځې وټول بدن ته وګوري او هم لاس ورووړي او حتى دخپلې ښځې وخاص اندام (تناسلي الې ) ته هم کتل ورته روادي او په دې خبره کې دڅلورو واړو مذاهبو دامامانو (امام اعظم رحمه الله ، امام شافعي رحمه الله ، امام مالک رحمه الله او امام احمدبن حنبل رحمه الله) اتفاق دی څکه دخاوند لپاره دښځې دغه خاص اندام دنفعې ځای دی خو داکار بيا بلا ضرورت څخه مکروه دی چې خاوند دښځې دغه خاص اندام ته ګوري اوښځه بيا دخاوند وخاص اندام ته ګوري څکه حضرت عائشه رضي الله عنها روايت کوي چې رسول الله ﷺ ما نه ده زما څخه څه ليدلي

[1] ١- فقه الاسلامي وادلته ص ٦١٢ لومړي ټوک مکتبه فريديه .- فقه على المذهب الاربعه ص ١١١ لومړی ټوک مکتبه وحيدي کتب خانه .

دي اونه ماده ښځه ښه ليدلي دي (خاص اندامونه). [1]
اوکه چيري بيادا ښځه داسي ځوک وي لکه خاله ، خورياداسي نور نو بيادورور اوخور يې لپاره دا رواده چي دخپلي خورياخاله ومخ ، سراوپښدي ته وګوري ليکن دا روانه دي چي وروراوخور يې دخاله و شايانس ته وګوري ځکه داکارحرام دی اوخصوصاً بيا ددوی نس ته کتل د هرحرام کاردی . [2]
اوکه چيري بيادا ښځه نابلده وه نو دامام اعظم رحمه الله په نزد دنابلده ښځي يوازي اويوازي ومخ اولاسونو ته کتل روا دي ځکه چي الله ﷻ په قرانکريم کي فرمايي : ﴿وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا مَا ظَهَرَ وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَىٰ جُيُوبِهِنَّ﴾. [3]
ژباړه : اوخپل ځان جوړونه (سنګار) دي نه ښکاره کوي پرته له هغه چي خپله څرګند سي ، اوپرخپلوسينو دي دخپلوپوړونو پلوونه واچواي . [4]
پاملرنه : وهرمسلمان ورورته په کارده چي ځان ، اولاد ، کورني اوبل مسلمان ورورته اسلامي لارښوونه وکړي اوپرحقه لاريې برابر کړي اوهيڅ کله پر عصري علومو باندي بسنه ونه کړي ، او همدارنګه وټولو مسلمانانو وروڼو اوخويندوته لازمه ده چي ددين

١ - (قالت عائشه رضي الله عنها مارايت منه ، ولارای مني الفرج) فقه الاسلامي وادلته المبحث الرابع ص ٢٦٥٠ خلورم ټوک مکتبه فريديه .
٢ - فقه الاسلامي وادلته ص ٢٦٥١ خلورم ټوک مکتبه فريديه .
٣ - فقه الاسلامي وادلته ص ٢٦٥١ خلورم ټوک مکتبه فريديه .
٤ - فقه الاسلامي وادلته ص ٢٦٥١ خلورم ټوک مکتبه فريديه .

په هره برخه کي کافي اوپوره معلومات ولري اوپه حقيقي مسائلو باندي ځان خبر کړي اوداځکه چي په يوه مسئله ځان پوهول ترزر رکعتونو نفلوغوره دي .

## استمنابل کف په لاس کي ځان خلاصول

۹۵_ مسئله : دشريعت له نظره دانسان ټول وجوداوصلاحيتونه دالله ﷻ امانت دي ، دانسان دوجودهرغړی ديوخاص هدف لپاره پيداسوی دی ، هرڅوک چي دخپل وجوديوغړی پرغلطه لاره باندي استعمالوي هغه په حقيقت کي دالله ﷻ په امانت کي خيانت کوي اودالله ﷻ په جوړښت کي دخپل زړه دخوښي سره سم بدلون راولي دانسان په وجود کي جنسي قوت اوماده (مني) هم ديوخاص مقصد لپاره ځای پرځای سوي دي چي دانساني نسل بقااوپايښت څخه عبارت دي يعني په دې سره انساني نسل پاته کېږي ، اوهغه انسان چي دغه ماده بې ځايه استعمالوي لکه په خپل لاس کي ځان خلاصول اوهم دښځي سره دشاپه خواکي لواطت کول ، دخپل اصلي هدف څخه خلاف کاردی ځکه رسول الله ﷺ فرمايي : داخرت په ورځ الله ﷻ د داسي کسانو (چي په لاس کي ځان خلاصوي)خواته درحمت په نظرنه ګوري .(۱)

۱-كنز العمال صـ۱۹۲اتم توک .

په يوبل حديث شريف کی رسول الله ﷺ وايي :پرداسي کسانوباندي چي په لاس کي خان خلاصوي دالله ﷻ اوملائکو ﷺ لعنت دی .(١)
ددې کاردحرام والي دثبوت لپاره دسورة المؤمنون دپنځم ايت څخه تراووم ايت پوري ښه وضاحت سوی دی ځکه هلته يې دجنسي خواهشاتو درفع کولولپاره دوه لاري ښوولي دي يوه داچي دخپلي ښځي سره جماع (ترديکت) کول اوبله داچي دخپلي منځي سره جماع کول ، له دې پرته بله لاره نسته اوداچي په خپل لاس کي خان خلاصوي دايوبل ډول کاردی چي په شريعت کي داسي کارته اجازه نسته .هرڅوک چي دخپل شهوت درفع کولولپاره داسي کارکوي نودرسول الله ﷺ ددې لاندي حديث شريف مطابق به دالله ﷻ لخوا څخه عذاب ووينې . ژباړه : درسول الله ﷺ ددې قول مطابق روانه ده ، ځکه په لاس کي خان خلاصوونکی ملعون (لعنتي) دی اودزيلعي کتاب په روايت کي راغي چي مااورېدلي دي چي داخرت په ورځ به يوقوم راپورته سي چي لاسونه به يې حمل داره وي هغه به هغه څوک وي چي په خپل لاس کي خان خلاصوي .(٢) اوکه

١- کنز العمال ص١٩٢ اتم ټوک .
٢- فلايحل لقول النبي ﷺ ناکح اليد ملعون ونقل الزيلعي انه قال سمعت ان قوما ما يعنون في المحشر وايديهم حبالهم هم الاستمنين بالکف بحدايه باب مايوجب ص١٩٩ لومړی ټوک مکتبه رشيديه . - کنزالدقائق کتاب الصوم ١١ حاشيه ص٨ لومړی ټوک مکتبه رشيديه . - فتح القديرشرح الهدايه کتاب الصوم ص٣٣٢ دوهم ټوک مکتبه رشيديه . - بنايه شرح الهدايه باب مايوجب القضاء والکفاره ص ٣٩ څلورم ټوک مکتبه حبيبيه . - فقه علی المذهب الاربعه الحدود اللواطالاستمنابالید ص١١٣ پنځم ټوک مکتبه وحيدي کتب خانه .

چيري يوڅاداکار ددې لپاره کاوه چې دزنااولواطت ورڅخه ونه سي نواميدسته چې الله ﷻ به عذاب ورنه کړي .(١)

## سجده سهوه

٩٦ـ **مسئله** : په لاندې صورتونو کې سجده سهوه لازميږي

- که دلمونځ کوونکي څخه واجب په سهوه سره پاته سي .
- کوم واجب چې له خپل ځای څخه وروسته سي .
- دکوم واجب اويا رکن ځنډ په دومره اندازه سره سي چې يو رکن پکښي اداء کيږي .
- که يو واجب دوه واره اداء سي .
- که يو واجب له خپل حال څخه متغير (بدل) سي مثلاً جهري لمونځ (په زوره والي دقرائت) په خفيه لمانځه کی (په کراروالي دقرائت) بدل سي ياخفيه په جهري بدل سي .(٢)
- دلمانځه له فرائضو څخه که فرض وروسته سي .
- فرض له خپل ځای څخه مخکي سي .
- يو فرض په هيره سره دوه واره وسي .

١- هدايه باب مايوجب صـ ١٩٩ لومړي توک مکتبه رشيديه . - درالمختار کتاب صـ ١٧١ دريم توک مکتبه رشيديه . کنزالدقائق لوي چاپ ١١ حاشيه صـ ٦٧ لومړی توک مکتبه رشيديه . - عالمگيري علي الياض بزازيه صـ ١٠٢ څلورم توک مکتبه رشيديه . فتح القديرصـ ٢٣٢ دوهم توک مکتبه رشيديه .- بنايه شرح الهدايه صـ ٣٩ څلورم توک مکتبه حبيبيه . فتاوای التارتارخانيه کتاب الصوم صـ ٢٨١ دوهم توک مکتبه محموديه . اعلاء السنن بباب مااوره الاستماع بالکف صـ ٣٩٢ اتم توک مکتبه امداديه .

٢- الموسوعه الفقهيه المقارنة التجريد مسئله ١٦٧ صـ ٧٠٧ دريم توک مکتبه محموديه .

● که چیرې په لمانځه کې وروسته والی اومخه والی راسي مثلاً دوهم رکعت تراول رکعت مخکې وسي یارکوع ترقرائت مخکې سي ، یاسجده ترركوع مخکې سي ، یارکن (فرض) څوځله تکرارسي په دې ټولو صورتونو کې سجده سهوه لازمیږي .([1])

## دسجده سهوې داداءکولو طريقه

۹۷ـ **مسئله** : کله چې له وروستۍ سجدې له اخري رکعت څخه را پورته سي (التحيات به ترعبده ورسوله) پوري ووايي ، نوسم دستي به راسته اوچپه طرف ته سلام وګرځوي .([2])

اوکه چیرې امام ؤونوبوازې راسته طرف ته به سلام ګرځوي ، وروسته دې بیادوې سجدې وکړي ، اوبیادې کښېني او التحيات ، اللهم صلي ، اللهم بارک اواللهم ربنا دې تراخیره پورې ووايي او دواړه خواووته دې سلام وګرځوي .([3])

## دحلالوحيواناتودوجوددڅینوغړوخوړل حرام دي

۹۸ـ **مسئله** : علامه کساني په خپل کتاب (بدائع اوصنائع) کې دحلالوحيواناتو دبدن اووه شیان حرام بللي دي چې بايدونه خوړل سي . ژباړه : دهغو حيواناتوچې غوښه يې خوړل کېږي دبدن اووه

۱ - المحتارعلي درالمحتارباب سجودالسهوص ۴۲۵لومړی توک مکتبه رشیدیه . کنزالدقائق بباب سجود السهوص۳۸لومړی توک مکتبه رشیدیه . - هدایه باب سجود السهو ص ۱۳۹لومړی توک مکتبه رشیدیه .
۲ - کنزالدقائق باب سجودالسهوص۳۸لومړی توک مکتبه رشیدیه .
۳ - هدایه ص۱۳۹لومړی توک مکتبه رشیدیه . - ارشادالاحکام ص۶۵مکتبه رحمانیه .

شيان يې حرام دي . ۱- بهيدونکې وينه . ۲- دنارينه حيوان دبولو نار .۳- خايې .۴- دښځينه حيوان فرج . ۵- مرغړي . ۶- مثانه . ۷ - تريخی . الله ﷻ په قرانکريم فرمايي: ژباړه ـ حلالوي الله تعالی ﷻ دمؤمنانو لپاره ټوله پاک شيان اوحراموي پردوی باندي خبيث شيان .(۱)

داچي هغه شيان چي ښه اوپاک طبيعت له هغه څخه نفرت کوي نوله همدي کبله حرام دي ځکه په هم دغه کتاب (بدائع اوصنائع) کي حضرت مجاهد ﷫ روايت کوي چي رسول الله ﷺ دغه شيان مکروه يادکړل : ۱- دپسه دبولونار. ۲- خايې .۳- دښځينه حيوان شرمګاه .۴- مرغړي . ۵- تريخی .۶- مثانه . ۷- بهيدونکې وينه ، نوله دې حديث شريف څخه معلومه سوه چي داشيان مکروه تحريمي دي ځکه چي دبهيدونکېويني سره يې يوځای يادکړل ، داخوښکاره خبره ده چي په قران عظيم الشان کي (دم مسفوح) يعني بهيدونکې وينه حرامه ګڼل سوې ده خودامام ابوحنيفه ﷫ څخه روايت سوی دی چي بهيدونکې وينه حرامه ده اودغه نور شيان مکروه دي .(۲) فقهاءکرام رحمة الله عليهم بيا په پورتني ايت کي د(خبائث) په لفظ کي له وسعت (پراخي) څخه کاراخيستی دی اودغه يې تر شپږو زيات کړي دي هغه ټول شيان يې پکښې داخل کړي دي چي .

۱-سورة الاعراف ايت ۱۷۵.
۲-بدائع والصنائع كتاب الضبايح والصيود صـ ۱۹۰ لومړی ټوک مکتبه رشيديه .

ښــه طبيعــت ورځــه کرکــه کــوي لکــه حــرام مغــز ، دلــري خــوراک اوپوستکی چي په ځينوسيمو کي خوړل کېږي .([1])

## په موټرونواوکورونوکي دښوځلکو عکسونه ځړول

۹۹ـ **مسئله** :دښوځلکوسره مينــه اوعلاقــه ســاتل ښــه اوغــوره کــاردی ،خو ښه خلک بايدوپيژندل سي،ښه خلک هغه خلک دي چي داهل ســنت والجماعــت عقيــده لرونکــي وي اودخــداي ﷻ وحــدانيت (يووالی)اودرسول ﷺ رسالت مني ، له شرک اوبدعت څخه په بشپړه توګه پاک وي ، دشريعت په احکاموباندي عمــل کــوونکي وي ، په قرانکريم اواحاديثوکي چي له کوموخبروڅخه منع راغلي وي دهغو څخه ځان ســاتي.الله ﷻ په قران عظيم الشان کي دخپلو دوستانو (ښوخلکو)بيــان داسي کړی دی ژبــاړه : واوری !!!بېــشکه څــوک چي دالله ﷻ دوســتان وي پرهغــوی کومــه بېــره اوخواشــيني نــسته،هغه کسان چي ايمان يې راوړی دی اوتقوای يې غوره کړيده .([2])
په پورتني ايت شريف کي الله ﷻ دولي لپــاره شرطونه بيــان کړل ، هغه داچي مؤمن به وي دشرک اوکفرله اعمالوڅخه به پاک وي اوبل داچي له ګناهونوڅخه به يې ځان ساتلی وی اوپرهېزګاره به وي ، که يوڅادغه نښي نه درلودې نوهغه هېڅکله دولايت اوښه سرېتوب مقام ته نسي رسېدلای ، ځکه چي الله ﷻ په قــران عظيــم الــشان کي

۱ـ تفسيرالکبيرسورة الاعراف ص۳۸۲ايت ۱۵۷پنځم توک مکتبه قلسيه.
۲ـ سورة يونس ايت ۶۲ـ۶۳ .

فرمايي ژباړه : دالله ﷻ دوستان يوازي هغه کسان دی چي تقوا ولري اوله ګناهونو څخه ځانونه وساتي ليکن په دغه حقيقت ډېرکسان نه پوهيږي . (١)

دبزرګانو اواولياء کرامو رحمة الله عليهم بله غټه نښه داده چي له هغوی سره په تعلق اوناسته ولاړه کي ددغه انسان ددين خواته مينه اورغبت ډېرېږي اودشرک ، بدعت اوګناهونو څخه يې په زړه کي نفرت پيداکېږي ، نودهرچاسره چي په ناسته اوولاړه کي دغسي يوحالت منځ ته راځي هغه دخدای ﷻ دوست اوښه سړی دی اوبايدخلک له دغسي خلکوسره خپل تګ راتګ ډېرکړي اودالله ﷻ په خاطرمينه ورسره وکړي ، دنفس اوباطن اصلاح دهر مؤمن لپاره يوه حتمي خبره ده اوهغه دبزرګانو اوښوخلکوسره په ناسته ولاړه کي طبعاً وده کوي اوزياتېږي ، مطلب داچي دبزرګانو اوښوخلکوسره دتعلق علامه داده چي انسان به دقرانکريم او احاديثو په هداياتو عمل وکړي ، خوداچي دبزرګانو اوښو خلکو عکسونه په خپل کوريا موټرکي راځړوي داله دوی سره مينه اوعلاقه نه ده بلکي ګناه کبيره (غټه ګناه) ده . څکه حضرت عائشه رضي الله عنها روايت کوي چي ژباړه : درسول الله ﷺ سره جبرائيل عليه السلام په يوخاص وخت باندي وعده کړې وه ، خو جبرائيل عليه السلام په هغه وخت کي نه راغی ، په دې وخت کي درسول ﷺ څخه يوه لکړه وه هغه يې

١- سورة الانفال ايت ٣٤.

له لاسه ولوېده او دا يې وويل چې الله ﷻ او دغه رسول ﷺ د خپلې وعدې څخه مخالفت نه کوي ، په دې وخت کې رسول الله ﷺ ولېدل چې يو سپی د هغه بچي تر يو کټ لاندې وه ، نو رسول الله ﷺ را ته وويل : دا (سپی او دهغه بچی) دلته کله راغلي دي ؟ عائشه ﷺ وا يې ما ورته وويل چې زه نه يمه خبره ، نو رسول الله ﷺ امر وکړی چې وېې غورځوئ ، کله چې سپی او دهغه بچی يې له دغه ځايه لېرې سول نو جبرائيل ﷺ رسول الله ﷺ ته راغی ،رسول الله ﷺ ورته وويل : تا وعده کړې وه ،زه ناست وم او ته نه راغلې ؟ جبرائيل ﷺ ورته وويل : زه هغه سپي منع کړم چې ستا په کور کې وو ، څکه موږ هغه کورته نه داخلېږو په کوم کورکي چې سپی او عکسونه وي .(۱)

## تعويذ داسلام له نظره

۱۰۰ـ **مسئله** : حضرت جابر ﷺ روايت کوي چې : رسول الله ﷺ د تعويذ څخه منع کړې وه خو وروسته دعمر ابن حزم ﷺ کورني رسول الله ﷺ ته راغلل او عرض يې وکړ چې موږ دلړم دم کوو او تا ددم کولو څخه منع کړې ده،بيا دوی خپل دم او تعويذ رسول الله ﷺ ته راوړ ، د کتلو وروسته يې ورته وفرمايل : موږ به څنګه دداسي تعويذ څخه منع کوو ، او دې ته ورته نوري تشويقوونکي خبري يې هم ورته وکړې چې که د هرچا په وس او طاقت کې وي چې ( په روا

۱ -صحيح المسلم باب تحريم تصوير ص ۱۹۹ دوهم ټوک مکتبه قديمي کتب خانه .

اومباح شیانو باندي ) خپل وورورته گټه ورسوي ودې رسوي څکه یومسلمان چي بل مسلمان ته گټه وررسوي نو دابنه کاردی . (۱)
حضرت عوف بن مالک اشجعي ﷛وايي چي موږدجاهلیت په وخت کي دم اوتعويذونه كوله ، نو موږ له رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه چي ته ﷺزموږ په دم اوتعويذونو کي څه حکم کوې ؟ رسول الله ﷺپه ځواب کي وويل چي : تاسي خپل دم اوتعويذونه ماته راوړئ ترڅوچي په هغه کي دشرک اوکفرکلمات نه وي نو روااوجائزدي .(۲)
دحضرت انس ﷛څخه روایت دی چي نبي کریم ﷺهغه دم او تعويذته اجازه ورکړې وه چي دزهرولپاره وي ، دهرشي زهرچي وي لكه دمار ، لړم اودنظر(نظرکېدل )اوهمدارنگه د(نملې) لپاره (نملې داسي يوه ناروغي ده چي دانسان دبدن پربغلوباندي دانې راپورته کېږي چي وروسته په ډېره تېزي سره ټول بدن ته رسېږي )(۳)

۱-مرقات المفاتیح شرح المشکواة کتاب الطب والرقی دحدیث نمبر ۴۵۲۹ ص ۳۰۲ اتم توک مکتبه رشیدیه .-صحیح المسلم باب الاستحباب الرقیه دحدیث نمبر ۵۶۷۹ ص ۲۲۴ دوهم توک مکتبه قدیمي کتب خانه .
۲-مرقات المفاتیح شرح المشکواة کتاب الطب والرقی دحدیث نمبر ۴۵۳۰ ص ۳۰۲ اتم توک مکتبه رشیدیه .-صحیح المسلم باب الاستحباب الرقیه دحدیث نمبر ۵۶۸۸ ص ۲۲۴ دوهم توک مکتبه قدیمي کتب خانه .-سنن ابوداود کتاب الطب ص ۵۴۲ دوهم توک مکتبه رشیدیه .
۳-مرقات المفاتیح شرح المشکواة کتاب الطب والرقی دحدیث نمبر ۴۵۲۷ ص ۲۲۴ دوهم توک مکتبه رشیدیه . -سنن ابن ماجه باب الطب ص ۲۵۱ مکتبه قدیمي کتب خانه .

## په لمانځه کي خولۍ پرسرکول

۱۰۱ـ **مسئله** : كه ديوچاڅخه په لمانځه كي خولۍ له سره ولوېږي اوپه يوه لاس يې راپورته كولای سي اوبيرته يې پرسرا يښودلای سوای نوداترهغه غوره ده چي لڅ سرلمونځ كوي .(۱)
همدارنګه كه چيري لنګوټه ورڅخه ولوېږي اوهغه هم په يوه لاس راپورته كولای سوای نوداهم دلڅ سرترلمانځه ښه كاردی خوكه چيري لنګوټي دوهم وارترل غوښتل نوبيادي په لڅ سرلمونځ وكړي ،كه چيري يوڅوك دتنبلۍ اوبي پروايي له كبله په لڅ سرلمونځ كوي نو دامكروه كاردی اوكه چيري دعاجزۍ په وجه په لڅ سر لمونځ كوي نوبياښه اومستحب كاردی ، كه څوك دګرمۍ په وجه په لڅ سرلمونځ كوي نوداهم مكروه عمل دی .(۲)

## دحيض په وخت كي دښځي سره يوځای اوسېدل

۱۰۲ـ **مسئله** : دحضرت انس ﷺ څخه روايت دی چي په يهودو كي به چي ښځه حايضه سوه (مياشتنۍ مريضي چي به ورته راغله ) نو نارينه ؤبه خوراک اوڅښاک يوځای نه ورسره كول اوهم به په يوه بستره كي نه ورسره بيديدل ، دغه ډول ښځي به په يوخاص ځای كي اوسېدلې ، نودرسول الله ﷺ څخه په دې اړه پوښتنه وسوه چي

---

۱- هي مايلبس ردالمحتارباب يفسد الصلاة صـ۳۷۲لومړی ټوک مكتبه رشيديه .
۲- فتاوای النابلسي المسماة بنهاية المراد في شرح هدايه ابن العمادصـ۲۴۰دوهم ټوک مكتبه حقانيه .

داځنګه عمل دی ؟ نوداووچې په دې اړه دا ایت نازل سوچې مهربانه ذات ﷻ فرمايي ژباړه : اودوی ستاځخه دښځودمیاشتني عادت په اړه پوښتنه کوي ، وواېه دوی ته : دا(د)پلیتی حالت دی ، نو دښځوځخه (ددوی ) دمیاشتني عادت په موده کي ځان لیري وساتئ اوترڅوچې دوی ښې پاکي نه سي مه ورنژدې کېږئ اوکله چي پاکي سي نوکولای سئ چي په هغه ځای کي چي الله ﷻ تاسي ته امرکړی دی (دمخ په خواکي ) ورته راتلل وکړئ ،بېشکه چې الله ﷻ توبه کوونکي خوښوي او(هم) هغه کسان چي ځانونه پاک ساتي خوښوي .([1])

نوروسته رسول الله ﷺ امروکړئ چې دخپلوښځوسره دحيض په موده کي هم خوراک اوځښاک کوئ اوهم په یوه ځای کي خوب کوئ اوبل داچي له دوی سره بازی کوئ خونژدیکت مه ورسره کوئ ([2])

## دمسلمان لپاره نه دي روا چي دکافرخدمت وکړي

۱۰۳ـ **مسئله** : ټوله علماءکرام پردې خبره باندې په یوه خوله دي چي وهیڅ مسلمان ته نه دي رواچي دکافرخدمت وکړي ، هغه مسلمان که حُر(ازاد) وي اوکه عبد(مریی ) وي اوبل داچي داخدمت که په اجاره (مزدوري ) سره وي اوکه اعاره (خواست ) سره وي ځکه په دې

۱-سورة البقرة ایت ۲۲۲.

۲-سنن النسائي باب تاویل قول الله عزوجل صـ۵۵لومړی ټوک مکتبه قدیمي کتب خانه . -سنن ابوداودباب الحائض ومباشرتها صـ۶۲لومړی ټوک مکتبه رشیدیه .

خدمت کي د مسلمان لپاره اهانت (سپکاوی) او ذلالت (خوار هدل) دي او د کافر لپاره عزت قدر او درجه ده او ټوله علماء کرام په دغه قول سره دليل وايي: ﴿وَلَن يَجۡعَلَ ٱللَّهُ لِلۡكَٰفِرِينَ عَلَى ٱلۡمُؤۡمِنِينَ سَبِيلًا﴾ (١)
ژباړه: او الله ﷻ هيڅکله د کافرانو لپاره پر مسلمانانو (د برلاسي لپاره) لاره نه جوړوي. (٢)

· او که چيري يو مسلمان د کافر لپاره ځان په داسي يو کار کي مزدور وګرځوي چي هغه کار يوازي او يوازي د کافر لپاره نه وي، بلکي د مسلمانانو او کفارو دواړو لپاره وي نو دا کار بيا يوازي د کافر لپاره نه سو او نه ودي کار ته خدمت ويل کېږي، نو اوس د مسلمان لپاره نه دي روا چي ځان د کافر لپاره په داسي يو کار کي مشغول کړي لکه د خنزيرانو پيول او يا هم د شرابو وړل او راوړل او داسي نور. (٣)
يادونه: نو الله ﷻ فرمايي اي مؤمنانو که څه هم په دنيا کي منافقان د کافرانو سره په پټه انډيوالي کوي، مګر دا انډيوالي به يې د قيامت په ورځ په ډاګه کړي او دوا ره به په دوږخ کي ورواچوي چي هلته به هميشه انډيوالان وي. (٤)

---

١- سورة النساء ايت ١٤١.
٢- عزيز التفاسير سورة النساء ص ٣٧٢ دريم توک مکتبه حقانيه.
٣- الموسوعه الفقهيه هيئت کبار علماء الاسلام ص ٣٨ دوولسم توک مکتبه حقانيه.
٤- عزيز التفاسير سورة النساء ص ٣٧٢ دريم توک مکتبه دار الكنوز العلميه. (لانها اعانة علي المعصية ولانه عليه سلام لعن في الخمر عشرة وعد منها حملها). - فقه الاسلامي وادلته البحث الرابع الجارة ص ٢٤٨٧ څلورم توک مکتبه فريديه

**پلاراومور داولادخادمان (خدمت كوونكي) نسي كېدلای**

۱۰۲_ **مسئله**: امام اعظم ابوحنيفهؒ دزوی لپاره داكړنه روانه بولي چي پلاريا موردي دخپل اولادلپاره څان خادم جوړكړي څكه په دې كاركي دپلاراومورلپاره اهانت (سپكاوی) اواستخفاف (كمی) اواذلال (خوارېدل) دي چي داكاردپلاراومور دعزت سره لايق اوورنه دی ، كه څه هم اولاد (زوی يالور)په رتبه اومرتبه كي ډير لوړوي ، اوبله خبره داده چي كه موراوپلارمسلمانان وي اوكه كافران فرق نكوي .نواوس خبره ثابته سوه چي دزوی لپاره دخپل موراوپلارخادمان جوړېدل حرام كاردی څكه اللهﷻ په ستركتاب قران عظيم الشان كي فرمايي ژباړه : اوكه (فرضاً)دوی دواړه ستاپه اړه كوښښ وكړي چي ته زماسره (په عبادت كي) هغه شی (بت) شريک وګرځوې دكوم(په اشتراک اوياپه موجوديت) باندي چي تاته علم (پوهه) نسته ، نو(په دغه صورت كي) ته دهغوی دواړواطاعت مه كوه ، خوددې سره سره په دنياكي ددواړوسره نيكي اوښېګڼه ملګري كړه (دنياوي ملګری مه ورسره پرېږده ). (په دې صورت كي) ته دهغه چاپيروي وكړه كوم چي مورته رجوع كوي (اوتاسمي لاري ته دعوتوي ، اوداځكه چي)بيا (دمرګ ورووسته) خاص ماته ستاسورجوع ده نوزه به موبه هغه شي باندي خبركړم

کوم چي تاسو یاست چي (په دنیا کي یې) کوئ.[1]
که څه هم دغه لوروایت مبارک دهغه موراو پلار په اړه دی چي هغه کافران وي لیکن بیاهم دموراو پلار عزت ور څخه معلومېږي چي لازمي دی.[2]

## پوازي پر پزه باندي سجده کول

۱۰۵ـ **مسئله**: دامام ابوحنیفه ﷬ په مذهب دا رواده چي پوازي پرپزه باندي سجده وکړل سي څکه الله ﷻ په قرانکریم کي فرمایي: (وارکعواواسجدوا) ژباړه: (ای مؤمنانو) رکوع اوسجده وکړئ.[3]
په ظاهره کي دا (ایت) خودسجدي دوجوب تقاضا کوي اوسجده خو پوازي پرپزه باندي هم راتلای سي اوبله داخبره ده چي ځیني خلک داسي فکرکوي چي کومه معنی چي په سجده کي سته هغه خودتندي په وجه ومابین ته راځي لیکن اوس خوداسي نه سوه پیښ بلکي پوازي اوپوازي پرپزه باندي سجده راغله (نو) دهغه په جواب کي به داسي وایو چي پزه اوتندی یوهډوکی دی نو که چیري سجده پرتندي باندي رواسي نو پرپزه باندي هم رواده اوداڅکه چي پزه د هډوکي یوطرف دی اوتندی دهډوکي بل طرف دی نو که دتندي یو طرف خوړېږي نو پرهغه بل طرف باندي خوسجده رواده،

---

۱- (وان جهداک علي ان تشریک بي مالیس لک به علم فلاتطعهماوصاحبهمافي الدنیامعروفا واتبع سبیل من اناب الي ثم الي مرجعکم فانبئکم بماکنتم تعملون) سورة القمان ایت ۱۵.
۲- الموسوعه الفقهیه تالیف هینت کبارعلماء الاسلام صـ ۳۸ دوولسم توک مکتبه حقانیه.
۳- سورة الحج ایت ۷۷.

همدارنګه پرتندي اوبارخوباندي هم ، ځکه په يوه حديث شريف کي راځي چي طاؤس ﷺ روايت کوي چي دپزي اوتندي يو هډوکی دی نو حديث مبارک ددې خبري تقاضاکوي چي پرتندي باندي سجده روا ده او همداسي پرپزه باندي هم رواده اوپردواړو باندي په طريقه اولی روا ده .[1]

## دزمزم په اوبوسره استنجاء وهل مکروه ده

۱۰۶_ **مسئله** : دزمزم په اوبوسره استنجاء وهل مکروه ده او همدا ډول دزمزم په اوبوباندي دجامو(کالو)اودبدن ځخه دنجاست ليري کول مکروه تحريمي دی ، مګردزمزم اوبه بل ځای ته نقل کول ښه او مستحب عمل دی ځکه جامع الترمذي کتاب روايت کوي چي عائشي ﷺدخپل ځان سره زمزم اوبه مديني منورې ته راوړي اوپرمريض باندي به يې تويولي .[2]

## دښځوو تل ومسجدته

۱۰۷_ **مسئله**: دمتاخرينوعلماءکرامو رحمة الله عليهم په نزد وهيڅ لمانځه ته دښځوتلل نه دي روا(ځکه اوس وخت دفتنودی )هغه ښځي که ځواني وي اوکه سپين سري وي .[3]

---

۱-الموسوعه الفقهيه المقارنه التجريد كتاب الطهارة ص ۵۳۲ دوهم توک مکتبه محمودیه .

۲-درالمختارباب الهدى ص ۲۷۸ دوهم توک مکتبه رشيديه .

۳-وکره متاخرالحنيفيه خرجهامطلقالفاسدالزمن ) - الموسوعه الفقهيه تاليف هيئت كبارعلماء الاسلام ص ۱۱۰ دوولسم توک مکتبه حقانيه .

## دجنت صفت اوبيان

۱۰۸ـ **مسئله**: دابوهريرة ﷺ څخه روايت دی ، دی وايي چي رسول الله ﷺ و فرمايل ژباړه :په جنت کي ديوې چلاخي په اندازه ځای خيراوښه دی تردنيا اوهرهغه څه چي په دنياکي دي .(۱)

عبادة بن صامت ﷺ روايت کوي چي رسول اکرم وويل ژباړه : په جنت کـي سل درجې دي(او)دهـري درجې(څخـه بيـاتربلي درجې پـوري)دومـره انـدازه ده لکـه داسـمان اومځـکـي تـرمنځ او(جنـت فردوس) په ټولو جنتوکي لوړه درجه لري اوددغه جنت څخه دجنت څلورويالي بهېږي اوپرهغه باندي لوړدالله ﷻ عرش دی نوکه تاسي دالله ﷻ څخه غوښتنه کول نودجنت فردوس غوښتنه کوئ (۲)

اوهمدارنګه دانس بن مالک ﷺ په روايت کي راځي چي سرور کائنات ﷺ وايي ژباړه : په تحقيق سره په جنت کي بازار(داهل جنت لپاره دجمع کولوځای ) سته چي اهل جنت په هره جمعه کي (دهفتې دروځوپه اندازه ، که نه نوپه جنت کي په حقيقت کي هفتـه نسته ، ځکه چي نه لمرسته اونه شپه اوورځ ولي چي هلته دشپې اوورځي معلومـات دالله ﷻ دنورپه غوړلواوراټولولوسره معلومېږي) ورته راځي نوپه جنت کي دشمال(چپ)طرف څخه باد رالـوزي چي دجنتيانوپه بدنواوکالو ننوزي چي ددې بادپه سبب دجنتيانو زينت

۱-مشكوٰة المصابيح باب صفة الجنة صـ۲۲ څلورم توک مکتبه البشرای.
۲-مشكوٰة المصابيح باب صفة الجنة صـ۲۵ څلورم توک مکتبه البشرای.

، بنايست اوپه بدن كي ښه والى زيات سي نوځه وخت چي بيرته وخپل اهل (كوراوخاى) ته راسي نو ددوى (جنتيانو) بنايست اوپه بدن كي ښه والى زيات سوى وي نو ددوى ته به خپل اهل (كورنى) ووايي چي قسم په الله ﷻ چي ستاسي بنايست زيات سوى دى ، دهغه وخت څخه چي تاسي زموږ څخه جلاسوي ياست نوناربنه به وخپلو ښځوته ووايي چي قسم په الله ﷻ چي موږ ستاسي څخه جلاسوي يوستاسي په بدن كي هم ښايست اوښه والى راغلى دى (ياهغه دبازارد باد په وجه اويا د دوى دښايست دانعكاس په سبب سره). (١)

## په لمانځه كي په امين باندي كراروالى سنت دى

١٠٩_ **مسئله** : دامام اعظم ابوحنيفه رحمه الله په مذهب په لمانځه كي تر ولاالضآلين وروسته امين كراروېل سنت دى ځكه الله ﷻ فرمايي ژباړه : خپل پالونكى ، په زارى اوپټه سره وبولئ بېشكه چي الله ﷻ تېري كوونكي نه خوښوي .(٢)
اوپه حديث شريف كي داسي هم راځي چي په دعاسره كراروالى كوئ . دابوموسى رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ پريوه قوم باندي تېرېدى چي هغوى په لوړ اوازسره دعاكول نورسول الله ﷺ

١-مشكواة المصابيح باب صفة الجنة صـ٣٢٥ خلورم توك مكتبه البشراى .- مرقات المفاتيح شرح المشكواة المصابيح كتاب الفتن صـ٨٣ ځنهم توك مكتبه رشيديه .
٢-(ادعواربكم تضرعاوخفية انه لايحب المعتدين) سورة الاعراف ايت ٥٥.

ورته وفرمايل: (انكم لاتدعون اصم ولاغائبا، ان الذي تدعونه اقرب اليكم من حبل الوريد) ژباړه: تاسي كوڼ اوغائب نه رابولئ (بلكي) هغه څوك چي تاسي يې رابولئ هغه تاسي ته (ستاسي) دغاړي تربنارګ در نژدې دى. اوپردې خبره باندي دغه لاندي حديث هم دلالت كوي، اعمش دابي صالح رضي الله عنه څخه روايت كوي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څه وخت چي امام په لمانځه كي (غَيْرِ ٱلْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا ٱلضَّآلِّينَ) ووايي (نوپه دې وخت كي تاسي) پته خوله سئ يعني (امين كراروواياست). (۱)

## مځكه دشهيدانو بدن نه خرابوي

۱۱۰ـ **مسئله**: دشهيدانو اجساد (بدنونه) مځكه نه خرابوي څكه چي ددې خبري دتائيد اوتاكيد لپاره دغه لاندي حديث شريف دى: مالك دعبدالرحمن بن صعصعه رحمه الله څخه روايت كوي چي د عمرو بن جموح رضي الله عنه اوعبدالله بن جبيرانصاري رضي الله عنه قبرونه په داسي ځاى كي وو چي هلته ودوى ته نژدې دباران په وخت كي سېل تېريدى اودوى په يوه قبركي پراته وه نوڅه وخت چي ددوى قبرونه لڅ سول اووكتل سول نوهيڅ تغيرنه وپكښي راغلى بلكي داسي معلومېدل لكه په پرون كي چي شهيدان سوي وه نوداحد

۱- الموسوعه الفقهيه المقارنة التجريد كتاب الصلاة صـ۸۰ ۵نهم ټوک مكتبه محموديه.

دغزااوددوی دقبرونو دلخېدو په مابين کي شپږخلويښت (۴۶) کاله تېرسوي وه .[1]

## موږک چي په غوړوکي مړ سي

۱۱۱ـ **مسئله** : ۱-دابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چي اصلي نوم يې عبدالرحمن دی ، دی وايي چي درسول الله ﷺ څخه دهغه موږک په اړه پوښتنه وسوه چي په غوړوکي ولوېږي نورسول الله ﷺ په ځواب کي ورته وويل چي و(وګورئ) که چيري په (کلکوغوړوکي) لوېدلی ؤ نوموږک اونژدې غوړي وغورځوئ اوکه چيري (غوړي) ويلي وه نوبيامه ورنژدې کېږئ .[2]

۲-دمېموني ﷺ څخه روايت دی چي په غوړوکښي موږک ولوېدی اوپکښي مړسو (نو) رسول الله ﷺ وفرمايل : موږک اوشاوخوا (غوړي) ورڅخه وغورځوئ (وروسته يې) وخورئ امکان لري چي هغه غوړي دي يخې او وچ کلک وه .[3]

۱-تفسيرالمظهري سورة البقرة ايت ۳۵ ص ۱۵۳ لومړی ټوک مکتبه علوم الاسلاميه
۲-عون المعبود کتاب الاطعمه ص ۱۸۱ لسم ټوک مکتبه قديمي کتب خانه .
۳-احکام القران سورة البقرة باب الفارة تموت في السمن ص ۱۲۶ لومړی ټوک مکتبه دارالکتب .- جامع الترمذي ابواب الاطعمة ص ۴۲۳ دوهم ټوک مکتبه رحمانيه .- عون المعبود کتاب الاطعمة ص ۱۸۰ لسم ټوک مکتبه قديمي کتب خانه .

## په لمانځه کي د تکبير الاولیٰ نيول

۱۱۲_ مسئله: د انس ﷺ څخه روايت دی چي سرور کائنات ﷺ وفرمايل ژباړه: که چا په لمانځه کي څلويښت ورځي (د امام سره) اول الله اکبر ونيوی نو الله ﷻ دده لپاره د اوره څخه خلاصون ليکي او د نفاق (منافقت) څخه خلاص والی (به هم ورته) نويشته کړي. (۱)

## دوهم سلام به تراول سلام کراروي

۱۱۳_ مسئله: د امام ابوحنيفه ﷫ په نزد په لمانځه کي تراول سلام بايدچي دوهم سلام کراروويل سي ځکه چي په سلام ګرځولو سره خبرتيا مراد ده او هغه خبرتيا په اول سلام سره راغله نو دوهم سلام بايدچي تر اول سلام کرار وويل سي. (۲)

## د مؤمن او کافر په مابين کي فرق

۱۱۴_ مسئله: د حضرت جابر ﷺ څخه روايت دی چي حضرت محمد مصطفی ﷺ وويل ژباړه: په مابين کي د الله ﷻ د بنده او کافر فرق (دادی چي) لمونځ پريښودي، (داچي اوس د الله ﷻ بنده لمونځ نه کوي يعني د الله ﷻ ناشکري کوي). (۳)

۱- فقه الاسلامي وادلته في ادراک ثواب الجماعة صـ۱۱۷۴ دوهم ټوک مکتبه فريديه.
۲- فقه الاسلامي وادلته بيان سنن الصلاة صـ ۹۱۲ دوهم ټوک مکتبه فريديه.
۳- مشکواة المصابيح کتاب الصلاة صـ۲۸۵ لومړی ټوک مکتبه البشرای.

## دخلافت موده (وخت) څومره وه

۱۱۵_ **مسئله** : حافظ ابن کثير رحمه الله په دلائل النبوت کي راوړي دي : دطريقي څخه دسفينې چي ازاده سوې مينځه درسول الله ﷺ ده چي رسول الله ﷺ وفرمايل : زما څخه وروسته ديرش کاله خلافت دی وروسته بيا بادشاهي ده نو دا ديرش کاله دامام حسن رضي الله عنه په خلافت سره پای ته ورسېده ، څکه امام طحاوي رحمه الله وايي چي دابوبکر صديق رضي الله عنه دخلافت دوره دوه کاله اودري مياشتي وه ، اودحضرت عمرفاروق رضي الله عنه دخلافت دوره دوولس کاله اوشپږ مياشتي وه ، اوحضرت عثمان رضي الله عنه دوولس کاله خلافت کړی دی ، اوهمدارنګه دحضرت علي کرم الله وجه دخلافت موده څلورکاله اونهه مياشتي وه اوحضرت حسن بن علي رضي الله عنه شپږ مياشتي خلافت کړی دی ، نوپه دې ترتيب سره انشاء الله چي دصادق المصدوق رسول الله ﷺ دقول مطابق ديرش کاله پوره سوه (۱)

## دنکاح تړل په مسجدکي مستحب دي

۱۱۶_ **مسئله** : نکاح تړل په مسجدکي مستحب کاردی ، اونکاح تړل او واده کول په مابين کي دکوچني اولوی اختر روا دي بلکي

---

۱- الموسوعه السير الخامس الرشدين امير المؤمنين الحسن بن علي بن ابی طالب رضي الله عنهما ص۱۲۲ اوروم ټوک مکتبه کثيربيروت لبنان .

سنت هم دي ځکه رسول الله ﷺ عائشه صدیقه رضي الله عنها د کوچني اختر په میاشت کي وخپل کورته راواده کړه. (۱)

## دلقيت (ورک) سوي شي حکم

۱۱۷ـ **مسئله**: که چیري یونفرچي احمدشاه نومېدی وبل نفرته چي خیرالله نومېږي خپل سرای یادوکان په کرایه ورکړي خوترهغه وخته پوري چي احمدشاه دلې وو ده (خیرالله) ددوکان کرایه واحمدشاه ته ورکول لیکن یوځومیاشتي وروسته احمدشاه ورک سو اودقریبانو ځای یې هم نه معلومېدی نواوس دخیرالله دپاره په کارده چي اول خویه احمدشاه پسي تلاښ وکړي که چیری دی نه پیداکیدی بیادي دغه پیسي داحمدشاهووارثانو ته ورکړي اوکه چیري وارثان هم نه پیداکېدل نوبیادي دغه پیسي خیرات کړي نوکه چیري بیا احمدشاه پیداسو اوده داخبره ورسره یاده کړل اوهغه داد خیرات خبره ومنل نودخیرات ثواب داحمدشاه سو اوکه چیري بیا احمدشاه داد خیرات خبره نه منل نودخیرات ثواب دخیرالله لپاره سو، او احمدشاه ته به نوري پیسي ورکوي. (۲)

۱- فتاوای بزازیه کتاب النکاح في نوع اخرص۱۵۵ لومړی ټوک مکتبه رشیدیه.
۲- فتاوای هادیه ص۱۲۵ مکتبه حقانیه. په حواله داحسن الفتاوای ص۲۹۰ شپږم ټوک.

## کوچنی په لمانځه امرکوئ

۱۱۸) **مسئله** : کوچنی چي داووکالو سي نوپه لمانځه باندي يې امــر کــوئ اوچي لسوکالو تـه ورســـېږي نودلمانځه پرنه کولو باندي يې وهئ. (۱)

په يوه حديث شريف کي راځي چي رسول الله ﷺ وفرمايل ژباړه : کوچنيان په لمانځه باندي (په داسي وخت کي) امرکوئ چي داوو کالو سي اودلسوکالوپه وخت کي يې (دلمانځه پرنه کولوباندي) وهئ اود خوب په وخت کي يې سره جلاکوئ. (۲)

## بدعت اودهغه پېژندنه

۱۱۹_ **مسئله** : موږ دمسلمانانو په حيث داعقيده لرو چي حضرت محمد ﷺ داسلام دين موږته رارسولي دی اوهرڅه چي موږته رسول الله ﷺ ويلي دي هغه ټوله دالله ﷻ خبري دي لکه څنګه چي په قران عظيم الشان کي فرمايي : رسول الله ﷺ دخپله خانه خبري نه کوي بلکي موږ وحي ورته کړي دي. (۳)

نوموږ ته نه دي په کارچي له خپله ځانه په دين کي نوي نوي خبري وکړو چي هغه ته په شريعت کي بدعت وايي (نوی کار په دين کي

۱- (اذابلغ الغلام سبع فامروه بالصلاة فاذابلغ عشرفاضربوه عليها) المصنف لابن ابي شيبه كتاب الصلاة صـ۲۰۱ دريم ټوک مکتبه المجلس العلمي بيروت لبنان.

۲- (قال مروهم بالصلاة لسبع ......سورة النورباب مايجب من غض البصرعن المحرمات احكام القران للجصاص صـ ۴۲۵ دريم ټوک مکتبه دارالکتب.

۳- ومماينطق عن الهوی ان هوالاوحي يوحی) سورة النجم ايت ۳-۴.

پیدا کول چي بیامونږ دالله ﷻ دغضب مستحق وګرځوځکه رسول الله ﷺ فرمایلي دي ژباړه : هربدعت ګمراهي ده .[1]
په بل روایت کي راځي چي رسول الله ﷺ وفرمایل : هرڅوک چي په خپله بدعتي شخص جوړسي اوبدعتي شخص ته ځای ورکړي نوپرهغه دي دالله ﷻ ،ملائکو اوټولو انسانانو لعنت وي .[2]
صحابه کرام رضي الله عنهم اوپخوانیو بزرګانو هم له بدعت څخه بد وړل ، صوفیان چي ددوی په نوم قسم قسم بدعتونه کېږي هغه هم دبدعت څخه مخالف وو اوبدبه یې پرویل ، حسن بصري رحمه الله به ویل : له بدعتي سره مه کښېنئ ځکه له بدعتي سره ناسته ولاړه زړه ناروغه کوي ، همدارنګه عیاض رحمه الله به ویل څوک چي دبدعتي سره کښېني هغه به ددین دحکمت څخه محروم (بې برخي ) وي .[3]
حضرت عبدالقادرجیلاني رحمه الله به په خپلوخطبوکي دبدعت څخه هم په ډیرټینګارسره منع کول .[4]
حضرت مجددالف ثاني رحمه الله به هم دبدعت څخه پناه غوښتل .[5]
فقهاءکرام رحمة الله علیهم لیکي چي په بدعتي شخص پسي په لمانځه کي اقتداء کول مکروه ده .[6]

---

١ - رواه مسلم عن جابربن عبدالله باب تخفیف الصلاة واخطبة صـ١٩٢ دریم توک مکتبه البشرای .
٢ - رواه بخاري في حرم المدینه .
٣ - الاعتصام صـ٩١-٩٦.
٤ - فیوض یزداني صـ٥٠٧.
٥ - مکتوبات صـ ١٨٩ لومړی توک .
٦ - عالمګیري صـ ٣٢١.

رسول الله ﷺ وايي : هرنوی کارپه دين کې پيدا کول بدعت دی اوهربدعت ګمراهي ده .[1]

افسوس چې نن زموږ ټولنه په ډول ډول بدعتونو باندې اخته او مختلف بدعتونه يې خپل دودونه او رواجونه ګرځولي دي چې دلته يې يوڅونموني دمثال په ډول بيانوو:

۱-کوم عبادتونه چې په انفرادي (يوازي) ډول ثابت وي هغه عبادتونه په اجتماعي (ټولنيز) ډول سره کول روانه دي .[2]

۲- کوم عبادات چې په پټه (کرار)سره يې ويل ثابت وي هغه عبادات په زوره سره ويل بدعت دی .[3]

۳-که په شريعت کې ديوکارلپاره خاص(ځانګړی)وخت نه وي ټاکل سوی خوکه دغه کارپه يوخاص وخت کې وسي داهم بدعت دی.[4]

۴- ديوکارلپاره چې کوم ځانګړی کيفيت نه وي ثابت سوی اوهغه کارلازمي ګڼل هم دبدعت په جمله کې راځي .

دامام مالک رحمه الله په وخت کې داسکندريه په ښارکې خلک سره يوځای کېدل اودقرانکريم ديوسورت قرائت به يې په يوځای (اجتماعي) ډول سره کاوه نوحضرت امام مالک رحمه الله دې کارته هم بدعت وواېه .[5]

۱-مشکواة شريف .
۲-درالمختارص ۲۳۵دوهم ټوک .
۳-بزازيه على هامش الهنديه ص ۲۷۵دريم ټوک .
۴-الاعتصام ص ۲۹لومړی ټوک .
۵-الاعتصام ص ۳۲.

۵- داسي يو کارچي په هغه سره د دين په يو کار کي د کمبود (لږوالي) اويازياتوالي گومان پيدا کېږي ياداچي (لږ) ضروري وي نويوڅوک هغه (ډير) مهم اوضروري گڼي نوداکارهم علماء کرامو په بدعت کي شميرلی دی چي داکار دعامو خلکولپاره د غلط کېدوسبب گرځي

۶- په دين کي چي کوم شی واجب نه وي ، هغه شی په دومره اندازه لازمول چي که چيري يې يوڅوک سرته ونه رسوي نوخلک پېغور او ملامتياپروايي يعني دهغه دضروري کېدو گومان کېږي نوداهم بدعت دی .

۷- دخيريو کارچي خاص ديو کارلپاره ثابت نه وي دهغه کول هم له بدعت څخه خالي نه دی ،څرنگه چي هشام بن عبدالمالک د دوارو اخترونو دلمانځه لپاره اذان او اقامت سلسله جاري کړه نوعلماؤ کرامو رحمةالله عليهم دې کارته بدعت اومکروه وويل ځکه چي داختر دلمانځه لپاره اذان اواقامت نه دی ثابت سوی .(۱) حضرت مجدد الف ثاني ﷺوايي چي په هيڅ بدعت کي نورنسته (۲)

## دبدعت په وخت کي علماء بايدڅه وکړي

۱۲۰ _ مسئله : حضرت رسول اکرم ﷺفرمايي:کله چي فتني او بدعتونه (داسي کارونه چي په شريعت کي نه وي )ښکاره سي اوزما اصحابو رضي الله عنهم ته ښکنځل کېږي نوهرعالم دي خپل علم ښکاره

۱- الاعتصام صـ ۱۸ .
۲- مکتوبات دامام رباني صـ ۲۳۳ .

کړي، که هر عـالم داسـي ونـه کـړه نوپرهغـه دي دالله ﷻ ،ملائکـو او ټولوخلکولعنت وي اوخداي ﷻ له ده څخه فرض اونفل نه قبلوي (۱)

## په خوب کي ابادي ليدل

۱۲۱ـ **مسئله** : حضرت ابـن سيـرين رحمه الله ويلي دي : کـه چيـري کـوم کس په خوب کي داسي ځاى ووينـي چي هغـه اوس ابادسوی وي دمثـال پـه توګـه مسجد ، مدرسـه اوخانقـا(عبـادت ځـاى ) اوداسـي نورنو ددې معنی داده چي داسلام دين بـه سم سي ، عقـل بـه يې کامل سي اوپه اخرت کي به يې ثواب په برخه سي .

که چيري پـه خـوب کـي خرابـه مځکـه چي پـه خپلـه اباده سوې وي ووينـي نـوددې دامعنی ده چي ده تـه بـه ددنيـا ګټـه ورسيږي اوکـه اباداوسم ځاى خراب ووينـي نـو ددې دامعنی ده چي ده تـه بـه ددنيـا ګټه ورسيږي اوکه اباداوسم ځاى خراب ووينـي نو ددې دامعنی ده چي په دغه ځاى کي به بلاء، غم او تکليف راځي .

حضرت جابرمغربي رحمه الله ويلي دي : کـه څوک خپـل ځـان پـه يوابـاد اوسم ځاى کـي ووينـي نـوددې دا معنـی ده چي دهغـه ابادځـاى پـه اندازه په خيراوګټه پيـدا کړي اوکـه خپـل ځـان پـه يوخراب ځـاى کـي ووينې نوددې معنی داده چي پـه راتلونکي وخت کي بـه ورتـه شـر ، فساداوياتاوان ور ورسيږي.حضرت جابرمغربي رحمه الله وايي:پـه خـوب

۱-عجيب الرسائل في ترغيب الفضائل وترهيب الرذائل صـ۳۰۲ .

کي يوخای ابادليدل ځلورمعناوي لري:
۱-د دنياکاروبار سميدل .
۲-خيراوګټه.
۳-خپل مقصدته رسېدل .
۴-د بندوکارونو خــلاصيدل .(۱)

## ښځي پرې کول

۱۲۲_ **مسئله** : د ښځي لپاره روانه دي چي دخپل سرو ښتان غوټي کړي لکه څنګه چي دنارينه لپاره روانه دي چي دخپلي ږيري و ښتان غوټي کړي ، که چيري يوخاوندخپلي ښځي ته ووايي چي دسرو ښتان غوټي کړه نو هم دغه ښځي ته روانه دي چي دخپل سر و ښتان غوټي کړي ځکه چي په حديث شريف کي راغلي دي چي دخلکولپاره خدمت کول روانه دي چي دالله ﷺ له خواڅخه په ګناه کي اخته کېږي .(۲)

## دتهجدلمونځ

۱۲۳_ **مسئله** : دابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چي دفرضي لمانځه وروسته ترټولو غوره لمونځ دشپي (تهجد) لمونځ دی .(۳)

۱- تعبيررواياء علامه ابن سيرين صـ ۷۳ .
۲- ملتقط الفتاوای الحنيفيه صـ۱۰۲ مکتبه حقانيه .
۳- جامع الترمذي ابواب الصلاة صـ۲۱۰ لومړی توک مکتبه رحمانيه .

حضرت ابوامامه ﷺروايت کوي چي رسول الله ﷺوفرمايل : تاسي ته بنايي چي په شپه کي خپل رب ﷻته ودرېږئ څکه چي ستاسو څخه دمخه تېرسوو نيکوخلکوهم داعادت ؤ ، داستاسو رب ﷻته تاسو نژدې کوي اوګناهونه مو له منځه وړي .(١)

## دخوبنداوتوپ پرته له بدن څخه دمنيو(سپرم)وتل

١٢۴_ **مسئله** : کله کله انسان ته داسي حالت پيښېږي چي له تناسلي الې څخه يې مني (سپرم) راوزي خوپه توپ سره نه وي څکه نوخوند هم ورسره نه وي ، داسي حالت اکثراً هغه وخت پيښېږي چي کله انسان پرملا باندي سخته ضربه وخوري يا يوداسي درونه شی پورته کړي چي له توان څخه يې اضافه وي ، نوپه دغه وخت کي پردغه انسان باندي غسل نه واجبېږي ، داداسي مثال لري لکه ديوچالاس دي چي خراب سي اوبيرته يې پريولي .(٢)

## که جنب سړی ، حائضه اويانفاسه ښځه مړه سي

١٢۵_ **مسئله** : که چيري يوسړی په داسي حال کي مړسي ، يا يوه ښځه په داسي حالت کي چي حايضه يانفاسه وي مړه سي ، په دي وخت کي دي يوازي يوغسل ورکړي کفايت ورته کوي دوهم غسل

١-مشكواة المصابيح كتاب الصلاة باب التحريض علي قيام الليل ص-٧١دوهم ټوک مكتبه البشراى .
٢-اذاخرج المني على وجه الدفق والشهوة لم يجب الغسل ، الموسوعه الفقهيه المقارنة التجريد ٣٢مسئله حكم مني ص-٢٠٧لومړی ټوک مکتبه محموديه ..- الموسوعه الفقهيه تاليف هيئت كبار علماء الاسلام ص- ٩٩خلورم ټوک مکتبه حقانيه .

ته ارتیانسته خودعادي مرو سره يې فرق دادی چې دهغوی خوله اوپزه نه مینځل کېږي لیکن ددوی خوله اوپزه به ورمینځي ځکه چې دوی په داسي حال کي مره سوي دي چې که ژوندي وای هم غسل وربانـدي فرض وو ، داچي دمړي لـه خولي څخه اوبه بيرته نـه را تويېږي نو غسل ورکوونکي ته په کاردي چې پرخپله ګوته باندي يوټوکروېبچي اوبيادي دمړي غاښونه اووری وروموږي .[1]

## که حائضه ښځه دسجدې ایت واوري

۱۲۶_ **مسئله** : که چیري یوه حایضه ښځه له کوم کس څخه دسجدې ایت واوري نوپردې ښځه باندي دتلاوت سجده نه لازمېږي .[2]

## حایضه ښځه دلمانځه پروخت

۱۲۷_ **مسئله** : دحایضي ښځي لپاره دامستحب دي چې کله دلمانځه وخت داخل سي نـو اودس دي وکـړي اوپرهغـه ځای دي کښېني چي پخوايي لمونځ وربانـدي کاوه اوتسبیح (سبحان الله) ،

۱ - ولوکان جنبا اوحائضا اونفساء فعلاً امرالمضمض والاستنشاق اتفاقا ، درالمختارباب الصلاة الجنائز ص ۶۳۲ لومړی ټوک مکتبه رشیدیه . - بحرائق شرح کنز الدقائق کتاب الجنائز ص ۲۰۱ دوهم ټوک مکتبه رشیدیه .

۲ - والحایض اذاسمعت اية السجده لاسجدة عليها كذافي التاتارخانيه . - فتاوای هندیه باب السادس فصل الرابع ص ۳۸ لومړی ټوک مکتبه رشیدیه .

يـاتهليـل (لاالٰه الاالله) دي ددومره وخـت لپاره وواېـي چـي مخکـي يـې لمونځ پکي کاوه .([1])

**يوه ښځه چي له خوبه راويښه سي اوحيض ورته راغلی وي**

۱۲۸ـ **مسئله** :که چيري يـوه ښـځه پـه داسي حـال بيـده سوې وي چي پاکه وه کله چي له خوبـه راپورتـه سوه نوحيض ورتـه راغلی وو ، نـو شريعت دې ښځي تـه امر کـوي چي ددې حيض لـه هغـه وخت څخه شروع کېږي چي کله دا بيـده کېـدل ، نو کـه چيري دغـه ښـځه پـه داسي وخت کـي بيـده سوې وه چي ماپښين دلمانځه وخت وو او لمونځ يي نه ووکړی اوکله چي راپورتـه سوه نو دماپښين وخت تېـر اودماځيګروخت داخـل سـوی وو نـوپردې ښـځي بانـدي دماپـښين دلمانځه قضاسته ، هرکله چي لـه حيض څخه پاکـه سي نـو ددغـه لمانځـه قـضاء بـه راوړي ، اوددې بـرعکس کـه چيـري يـوه ښـځه پـه داسي حال کـي بيـده سوې وي چي پـه حيض کـي وي ، کله چي لـه خوبه راپورتـه سي نو پاکه سوې وه ، نوداښځه بـه دهغـه وخت لمـونځ هم راګرځوي په کوم وخت کي چي دابيده سوې وه .
يادونه:پاته دي نه وي : په داسي مسئلوکي احتياط په کاردی .([2])

١-ويستحب للحايض اذادخل وقت الصلاة ان تتوضا وتجلس عنه .. ، فتاوای هنديه باب السادس فصل الرابع صـ ۳۸لومړی ټوک مکتبه رشيديه .
٢-فقه الحنيفي في ثوبه الجديداحكام الحيض اي نمت حائضاوقامت من نومهاطاهرة .....صـ ۱۱۶ لومړی ټوک مکتبه حقانيه

## ښځوته د(کرسف) استعمال

۱۲۹_ **مسئله** : داچي الله ﷻ دادم ﷺ پرلوړنوباندي په يوخاص وخت کي دحيض ناروغي راولي ، نوښځوته په کاردي چي دحيض په وخت کي کرسف (يوخاص شی دی چي له پنبوڅخه جوړېږي اوښځي يې دحيض په وخت کي کار ورځخه اخلي) استعمال کړي ، هغه ښځي چي واده يې سوی وي دهغولپاره کرسف هروخت استعمالول مستحب دي او دپېغلونجونولپاره يوازي دحيض په وخت کي دکرسف استعمال مستحب کاردی ،څوکه له کرسف پرته ښځه (پېغله اوياواده سوې) لمونځ وکړي پروانه لري .(۱)

## دهغوکالواغوستل چي عکسونهورباندي وي

۱۳۰_ **مسئله** : دښځواونارينه وو دوارولپاره دداسي جامواغوستل چي پرهغه باندي دحيواناتوعکسونه وي حرام دي څکه چي حضرت ابي طلحه ﷺ وايي چي مادرسول الله ﷺ څخه واورېدل چي هغه مبارک وويل : هغه کوروته ملائکي نه ورځي چي په هغه کور کي سپی اوعکسونه وي ، څوکه چيري سرنه لري نوبياباک نه لري څکه چي له سرپرته ژوندنه کېږي .(۲)

---

۱- بحرالرائق شرح کنز الدقائق کتاب الصلاة باب الحيض انه سنة للثيب حالة الحيض مستحبه حالة الطهرصـ ۳۳۲- ۳۳۵لومړی ټوک مکتبه رشيديه .
۲- قال سمعت رسول الله ﷺ يقول لاتدخل الملائكة بيتاً فيه كلب ولاتصاوير) الموسوعة الفقهيه تاليف هيئت كبارعلماء السلام صـ۱۲۲شپږم ټوک مکتبه حقانيه .

## ا دځکندن پروخت دلاسونو اوپښوسره کول

۱۳۱ـ **مسئله**: که چیري دیوې ښځي ځکندن وي اومړه کېږي ، نوري ښځي ددغي ښځي پرلاسونو اوپښوباندي نکریزي وراېږدي نوداکار په شریعت کي ناروادی .(۱)

## بیله اودس اوتیمم څخه لمونځ کول

۱۳۲ـ **مسئله**: هغه څوک چي دواړه لاسونه یې ترڅنګلو اودواړي پښې یې تربجلکو پوري پرې وي اوپه مخ کي یې هم زخمونه وي نو ددغسي شخص لپاره بیله اودسه اوتیمامه څخه لمونځ کول روادي ځکه هغه ځایونه چي بایدپریولل سوي وای هغه خونسته نو دا داسي مثال لري لکه دغه شخص چي داوله سره په پریوللو باندي نه وي امرسوی .(۲)

## دیوې واده سوي ښځي سره دواده کړه سوي سړي زناکول

۱۳۳ـ **مسئله**: که چیري یوسړي واده کړی وو اودخپلي ښځي سره نږدیکت هم وکړي لیکن وروسته یې ښځه مړه سوه او وروسته ده دبلي داسي ښځي سره زناوکړه چي هغې هم واده کړی وو اوبیا یې

۱- ولایسرح شعره اي یکره تحریما ولایقص ظفره الاالمکسورولاشعره ولایختن ....ان التزیین بعد موتها ولامتشاط وقطع الشعر لایجوز ) ردالمختارباب الجنائز صـ ۲۳۳لومړی ټوک مکتبه رشیدیه .- ولایقص ظفره وشعره لانهاللزینة ، وقداستغنی عنا، مجموع الانهر کتاب الصلاة صـ ۲۶۶لومړی ټوک مکتبه حرمین الشرفین .
۲- واما مقطوع الیدین والرجلین من المرفقین والکعبین ، اذابوجهه جراحة فانه یصلي بلاوضوء ولایتیمم ولایعیدو کمافي التنویر فتاوای النابلسي المسماة بنهایه المرادفي شرح هدایه ابن العماد صـ ۲۰لومړی ټوک مکتبه حقانیه .

دخپل خاوند سره نژدیکت هم کړی وو لیکن دزنا په وخت کې یې خاوند مړوی نو اوس دوی دواړه محصینین بلل کېږي (محصین هغه چاته ویل کېږي چې واده یې کړی وي) ددوی دواړو سزارجم (په ډبرو باندی سنګسارول) دي اوکه چیرې بیانښځې اویاسړي نکاح کړې وه خوښځې د خپل خاوند یاخاوند دخپلې ښځې سره نژدیکت نه وي کړی نو په دې وخت کې بیادوی په دُرو باندې وهل کېږي.(١)

## دسجدې تلاوت دایت ویل په درخته کې

١٣٤_ **مسئله** : که چیرې کوم کس ددرختې په یوښاخ کې ناست وي او دسجدې ایت تلاوت کړي ورروسته بیابل ښاخ ته نقل سي بیاد سجدې ایت مبارک ووایي دافرق نه کوي چې هغه ښاخ لیرې وي اوکه نژدې وي نو په داسې حال کې پر دغه ویوونکي باندې دوې سجدې لازمیږي . (٢)

## که چیرې څوک دسجدې ایت واوري

١ - (انه محصين فيرجم قال في الدرالمختار واعلم ان الايجب بقاء النكاح لبقاء اي الاحسان فلو نكح في عمره مرة ثم طلق وبقي مجرد اوزني رجم) فتاواى كلملية في الحوادث الطرابليسية كتاب الحدود ص ٢٥ مكتبه حرمين شريفين .
٢ - مجموع الانهر كتاب الصلاة باب سجود التلاوة ص ٢٣٥ لومړی ټوک مکتبة الحرمين الشريفين .

۱۳۵_ **مسئله** : دسجده تلاوت ایت کـه چیـري یوځـوک دیونفرځخه واوري اویـایې دجلاجـلا کـسـانو څخـه واوري اودی پردغـه یوځـای ناسـت وي نویـوه سجده تلاوت کفایت کوي .(۱)

## که چیري یوکس دسجدي ایت په دوه ځایه کي تلاوت کړي

۱۳۶_ **مسئله** : کـه چیـري کـوم کـس یوایـت دسـجدې تـلاوت کـړ وروسته ولاړسو اویو یـادوه ګامـه یې واخیـستل اویادیوکونج څخه بل کونج ته ولاړی په دې شرط چي ډیره غټه فاصله نه وي نو په دې وخت کي یوه سجده پرلازمیږي یعني یوه سجده به کوي . (۲)
اوکه یوکس دسجدي ایت تلاوت کړي وروسته خوراک وکړي او یا ځنبل وکړي یابیده سي یاپرارخ واوړي ، یا دیوچاڅخه دیوشي زده کړه وکړي یاداچي کوم شی رانیسي نو وروسته یې بیا دغـه ایت تلاوت کړ نو پرده باندي دوي سجدې لازمیږي .(۳)

## که چیري یوسړی په کښتي کي مړسو

۱-(ارسمعهامن واحداومتعدد) مجموع الانهر کتاب الصلاة باب سجود التلاوة صـ ۲۳۴ الومړی توک مکتبة الحرمین الشریفین .
۲-مجموع الانهر کتاب الصلاة باب سجود التلاوة صـ ۲۳۵ لومړی توک مکتبة الحرمین الشریفین
۳-مجموع الانهر کتاب الصلاة باب سجود التلاوة صـ ۲۳۵ لومړی توک مکتبة الحرمین الشریفین

۱۳۷ـ **مسئله** : که چیري یوڅوک په کښتۍ کي مړ سو یا یې قریب نه وو ، او یا خوږې قریب وو لیکن دوی پر بیریدل چي خراب به سي ، نو غسل ، کفن او لمونځ دي ورکړي او دریاب ته دي یې واچوي . [۱]

۱ - «ومن مات في سفينة غسل وكفن وصلي عليه والقى في ....» فقه الحنيفي في ثوبه الجديد كتاب الصلاة ص ۳۴۴ لومړی ټوک مکتبه حقانیه .

## دښې جامې اوکالي اغوستل

۱۳۸_ **مسئله**: ښې جامې اوکالي اغوستل فرق نه لري په دې شرط چې تکبراوفخر په کښې نه وي ځکه په حديث شريف کې راځي چې يوه ورځ رسول الله ﷺ راووتی اوده په بر اوړو دزرو درهمو پټوو، اوډير وخت چې به کله رسول الله ﷺ لمانځه ته راوتی اوده پراوړو به دځلورو زرودرهمو پټوو اوخپله امام اعظم رحمه الله دځلوروسوو دينارو پټوپر اوړو کړی دی.(۱)

## دجمعې دلمانځه لپاره غسل کول

۱۳۹_ **مسئله**: دجمعې دلمانځه لپاره غسل کول سنت دي ځکه دعبدالله بن عمر رضي الله عنه ځخه روايت دی ده وويل مادرسول الله ﷺ ځخه واورېدل چې څوک ستاسو ځخه دجمعې دلمانځه اراده وکړي نو غسل دې وکړي.(۲)
په بل مبارک ارشاد کې چې سمرة بن جندب رضي الله عنه يې روايت کوي راغلي دي چې سرورکائنات ﷺ فرمايلي دي: څوک چې دجمعې

۱- ولابأسه.. .وخرجه رسول الله ﷺ ذات يومه وعليه رداؤه قيمتالف درهم ....وابوحنيفه كان يرتدى رداء قيمة اربع مائة دينار،فقه الحنيفي في ثوبه الجديد حكم لبس نالثياب الفاخرة صـ۲۵۴ پنځم ټوک مكتبه حقانيه .
۲- قال سمعت رسول الله ﷺ يقول اذااراد......) فتح الملهم شرح صحيح المسلم دحديث نمبر ۱۹۲۸ صـ۲۶۷ پنځم ټوک مكتبه دارالحياءالتراث العربي. - فقه الحنيفي في ثوبه الجديد صـ۱۰۵ لومړی ټوک مكتبه حقانيه .- صحيح المسلم كتاب الجمعه صـ۱۴۹ دريم ټوک مكتبه البشرای .

دلمانځه لپاره اودس تازه کړي دا ښه کار دی لیکن څوک چې د جمعې دلمانځه لپاره غسل هم وکړي نو دا بهترین عمل دی.[1]

## دناروغ پوښتنه

۱۴۰ـ **مسئله**: روغتیا او ناروغي دانسان ازلي ملګري دي، ناروغي انسان ته دالله ﷻ بې اندازې قدرت وربه زړه کوي او دروغتیا په خبرچې دالله ﷻ لوی نعمت دی دشکرجذبه هم پیدا کوي خوځیني وختونه بیا ناروغي دروغتیا ضمانت کوي اوبه دې کې داخرت ګټه هم سته څکه رسول الله ﷺ په یوه وینا کې فرمایي ژباړه: کله چې یو مؤمن ته یو اغزی (څوز) ورجګ سي اوهغه یې په صبراو رضا وزغمي نو الله ﷻ دهغه په عوض کې یوه درجه ثواب ورکوي.[2] څرنګه چې دروغتیا او شفاء توان دالله ﷻ په قدرت کې دی څکه الله ﷻ دشعراء دسورة په (۸۰) ایت کې فرمایي: (واذامرضت فهو یشفین) ژباړه: کله چې زه مریض سم خدای ﷻ ماته صحت راکوي. رسول الله ﷺ په یوه حدیث کې فرمایلي دي ژباړه: کله چې یو مسلمان دبل ناروغ مسلمان پوښتنه کوی نو ګواکې هغه دجنت دخرماوو په درختو کې وي.[3]

---

۱- فقه الحنیفي في ثوبه الجدید الفسل المسنون، یسن الغسل الصلاة الجمعه، حدیث اذا اراد احدکم ان یاتي الجمعه لیغسل ص ۱۰۵ لومړی ټوک مکتبه حقانیه.
۲- جامع الترمذي ابواب الجنائز ص ۲۱۵ لومړی ټوک مکتبه حقانیه.
۳- جامع الترمذي باب ماجاء في عیادت المریض. - مشکواة ص ۱۳۲ لومړی ټوک مکتبه دار الاشاعة العربیة.

همدارنګه رسول الله ﷺ بل ځای داسې ارشاد کوي : خپل راسته لاس دې پر مريض باندې کښېږدي او دغه دعا دې ووايي . (۱)

رسول الله ﷺ يوسړي ته چې هغه له درد څخه په عذاب وو وويل : خپل لاس پر هغه ځای باندې کښېږده چې درد کوي ، درې واره بسم الله الرحمن الرحيم او اووه ځله دغه دعا ووايه (اعوذ بعزة الله وقدرته من شرما اجدوا حادر) ژباړه : زه د الله ﷻ په عزت او قدرت سره پناه غواړم دهغه شيانو څخه چې اوس سته او يايې فکر کېږي . (۲)

که چيرې يو مريض فاسق او فاجر وي د هغه پوښتنه هم بايد وسي ځکه دا دانسان د خواخوږۍ مسئله ده ، که چيرې کافر مريض سي دهغه پوښتنه هم بايد په دې نيت سره وسي چې د اسلام د ښو اخلاقو اظهار (ښکاره کېدل) وسي او بل دا د مسلمان لخوا څخه اسلام ته خاموش (پټ) دعوت هم دی . (۳)

## بم او صفوه نسته

۱۴۱_ **مسئله** : بم يو مرغه دی چې په هغه سره خلک بدفالي کوي ، هغه داسې مرغه دی چې دورځې له خوا يې سترګې کمزوري وي او بنه ليدل نه سي کولای ځکه نو د شپې لخوا الوزي او ناري وهي ،

۱- (اللهم رب الناس اذهب الباس اشف انت الشافي لاشافي الاانت شفاء لايغادر سقما) جامع الترمذي ابواب الجنائز ص ۱۱۲ لومړی ټوک مکتبه رحمانيه .
۲- مشکواة ص ۱۳۴ لومړی ټوک مکتبه دار الاشاعة العربيه
۳- بحرائق ص ۲۰۲ اتم ټوک .

اکثره وخت په خرابو کې وي ، ځینې خلک وایې چې عربو دجاهلیت په وخت کې داسې ګمان کاوه چې : کله یو انسان مړسي او هډوکي یې وراسته سي نو بیا بوم ورڅخه جوړېږي او د قبر څخه راوزي او د دوی واهل (کورنی) ته معلومات راوړي او بیانو الوزي چې په عربي ژبه کې ورته (هامة) وایي ، همدا رنګه عربو د صفري په باره کې ښکاره ګمان درلودی چې دا دانسان په بدن کې یو مار (چنجی) دی کله چې انسان وږی سي نو دغه ماریې چیچي چې بیا ورڅخه مړه کېږي او په دغه سره یې بد فالي کول .([1])

نو د داسې ښکاره عقیدو د پرېښودلو لپاره رسول الله ﷺ دغه لاندې دوې وینا وې کړي دي :

۱- دحضرت ابن مسعود ﷛ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل : صفره نسته ځکه ټول سالرونکي الله ﷻ پیدا کړي دي او دهغوی ژوند ، رزق او تکلیف یې هم ورته لیکلی دی .([2])

۲- دحضرت ابو هریرة ﷛ څخه روایت دی ، دی وایي چې رسول الله ﷺ وویل : نه بوم سته او نه صفره .([3])

۱- مشکواة المصابیح باب الفال صـ ۱۶ ۱خلورم توک مکتبه البشرای . - مرقات المفاتیح شرح المشکواة المصابیح کتاب الطب والرقی باب الفال والطیرة صـ ۳۴۲ ۱تم توک مکتبه رشیدیه

۲- جامع الترمذي ابواب القدر صـ ۲۸۲ دوهم توک مکتبه رحمانیه .

۳- جامع الترمذي ابواب القدر صـ۲۸۲ دوهم توک مکتبه رحمانیه .

## خوب

۱۴۲_ **مسئله** : دا معلومه خبره ده چي د خوب تعبیر کول د یر لوی علم دی چي په دې سره د راتلونکي حالات معلومېدای سي ځکه رسول الله ﷺ فرمایلي دي : د نبوت ځخه بل څه نه دي پاته بیله خوشخبري ، صحابه کرامو رضي الله عنهم پوښتنه وکړه ، خوشخبري څه شي ده ؟ رسول الله ﷺ ورته وویل : نیک (رښتیني) خوبونه .(۱)

نوددې حدیث شریف ځخه دا معلومه سوه چي اوس خونبوت نسته ، د مؤمنانو لپاره د ښه ښه خوبونو لیدلو معلومات داینده وخت لپاره ورکوي . د ښه خوب ارزښت د دې حقیقت ځخه هم معلوم دی چي کله د الله ﷻ له خوا رسول الله ﷺ په اولو وختونو کي لیدی او هغه به هم سهار د اسي ښکاره سو لکه لمر ، د الله ﷻ له خوا چي به رسول الله ﷺ ته معلومات ورکول کیدل هغه هم د غه خوب وو ،رسول الله ﷺ به رښتیا خوب د نبوت د شپږ څلویښتمي حصې ځخه یوه حصه بلل .(۲)

---

۱-بخاري شريف صـ۱۰۳۶دوهم ټوک مکتبه غفاریه .
۲-صحیح البخاري شريف صـ۱۰۳۶دوهم ټوک مکتبه غفاریه .

## ښه خوبونه

۱۴۳ـ **مسئله**: دحضرت انس ﷛څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: ښه خوب دنبوت شپږڅلويښتمه برخه ده .(۱)

اوهمدارنګه ابوهريرة ﷛ روايت کوي چي سرورکائنات ﷺ وفرمايل: چاچي زه په خوب وليدلم په تحقيق سره هغه زه وليدلم ځکه شيطان زماپه رنګ نه سي کېدلای .(۲)

اوپه هغه حديث شريف کي چي قتادة ﷛يې راروايت کوي رسول الله ﷺداسي وايي:خوبونه دالله ﷻله خوا څخه دي اوفاسد خيالات دشيطان لخوادي ، که چيري کوم کس ښه خوب وليدی نو هيچاته دي يې نه وايي خوعلماءکرامو رحمة الله عليهم اوخاصوقريبانو ته دي يې ووايي،که چابدخيالات وليدل په الله ﷻسره دي دشيطان له شرڅخه پناه وغواړي اودرې ځله دي پرچپه بغل (توف) کړي اوهيچاته دي يې نه وايي ، که څه هم داسي خيالات اوخوبونه چاته تاوان نه سي رسولای ځکه خير اوشر دالله ﷻله خواڅخه دی .(۳)

دحضرت جابر ﷛څخه ورايت دی چي وايي يوسړی رسول الله ﷺته راغلی اوورته يې وويل : ماپه خوب کي وليدل چي سرمي پرې کېږي . جابر ﷛وايي رسول الله ﷺوخندل اوويې ويل : کله چي

---

۱-صحيح البخاري شريف باب من رای رسول الله ﷺفي المنام صـ۱۰۳۵دوهم توک مکتبه غفاريه
۲-مشکواة صـ۳۹۳دوهم توک مکتبه دارالاشاعة العربية .
۳-مرقات المفاتيح شرح المشکواة صـ۳۸۴اتم توک مکتبه رشيديه .

شيطان په تاسي بازۍ کوي نو تاسي په دغه باندي هيڅوک مه خبروئ.([1])

## داودس مات پروخت دبيت الخلا اداب

۱۴۴ـ **مسئله**: کله چي څوک وبيت الخلا(تشناب) ته دتللواراده وکړي نو لاندي څو ټکي دي په نظر کي ونيسي:

۱-په ولاړه سره دي پرتوګ نه کاږي.
۲-دخپلو پښوپه منځ کي دي پراخوالی راولي.
۳-په خپله چپه پښه دي زور وکړي.
۴-خبري دي نه کوي.
۵-وپرنجي کوونکي ته دي په يرحمک الله سره ځواب نه ورکوي.
۶-اذان کوونکي ته دي په کلموسره ځواب نه وايئ.
۷-که چيري يې پرنجی وکړ نو په زړه کي دي الحمدلله ووايي.
۸-د ضرورت پرته دي خپل عورت ته نه ګوري.
۹-خپل فاضله موادوته دي نه ګوري.
۱۰-دشاوخواد کتلوڅخه دي ځان وژغوري.
۱۱-په بدن باندي به بازۍ نه کوي.
۱۲-پربولو اوچکرباندي دي ډيرنه کښېني يعني په تشناب کي دي

---

۱-مشکواة شريف صـ ۲۸۵ دوهم ټوک مکتبه دارالاشاعة العربية.-مرقات المفاتيح شرح المشکواة صـ ۳۹۰ اتم ټوک مکتبه رشيديه.

د یروخت نه تېروي .
۱۳-داسمان وخواته دي نه ګوري (۱)

## په حیواناتو کي حلال اوحرام

۱۴۵_ **مسئله** . ددنیاپه مختلفومذاهبوکی دحیواناتوپه باره کي يو خاص ډول افراط اوتفریط ستـه ، يـوه طرف تـه هغـه خلـک دي چي دغذايي استعمال لپاره حیواناتو استعمالول بې رحمي ګڼي اوددې څخه مطلق منـع کـوي ، بـل طرف تـه هغـه خلـک دي چـي حیـوان انساني خوراک ګڼي اوپه دې باب هـيڅ فرق نـه کـوي بلکـي هـر رقم حیوان خوري ، دا دواړه ډلي خلـک دمنځلاريتـوب څخـه لیـري او د فطري قـانون مـاتوونکي اوباغیـان دي ، الله تعـالى ﷻ چـي پـه دې دنيـا کـي کـوم نظـام قـايم کـړی دی هغـه پـه دې بانـدي ولاړدی چي کمزوری مخلوق دي دزورور مخلوق دبقاء (پاته کیدو)موجب سي ، كـه فکروسي زورورحیـوان پـه کمزوري حیـوان ځان مـړوي اوځینـي حیوانـان بیادنباتـاتو څخـه دځـان لپـاره دخوړڅـه برابـروي ځکـه نباتـات هـم ژونـدي موجـودات دي ، غـټ ماهيـان کـوچني ماهیـان خپله غذاجوړوي اوکوچني ماهیان په اوبو کي کوچني خصمانان خـوري ، غـټ مرغـان کـوچني مرغـان خـوري اوکـوچني مرغـان بیاخصمانان اوچنجیان خوري .دالله ﷻپه دې دنیاکي که غوروسي

۱- جامع الترمذي ابواب الطهارات باب النهی عن البول قائما صـ۱۸-۱۰۰ لومړی ټوک مکتبه رحمانیه .

نومعلومېږي چې ددې دنيا دنظام بنيادهمدغه دی ، کوم خلک چې ددې اصولوپرته په دنياکي اوسېدل غواړي دهغولپاره لږترلږه دالله ﷻ په دې دنياکي اوسېدل هيڅ جائز نه دی ځکه چې داوبو يو ځاځکی اوهواترهغه پورې دانسان ترستوني نه تېرېږي ترڅوپه سلهاؤ نالېدل سوي مکروبونه داجل سره مخامخ نه سي ، په دې بل طرف کي هم منځلاري نسته چې هرحيوان دې دغذا لپاره صحيح وګڼل سي ، داخبره دثابت سويو حقايقوڅخه ده چې پرانسان باندي دغذا اثرلوېږي . دغه اثر اکثره وختونه بدني اواخلاقي هم وي .

په حيواناتو کي زمری اوپړانګ ځېروونکي حيوانان دي ، ماراولړم په کينه ساتلو اونېښن وهلو کي مشهور دي اودخره بې عقلي خو بيخي متل لري ، خنزيرجنسي بې اعتدالتي لري چې اثريې په هغو قومونو کي دلمرپه شان ښکاره دي چې دخنزيرغوښه خوري ، سپی دقناعت او استغناء څخه محروم دی اوحرص لري ، کربوړی اود مځکي نور خصمانان دناروغيو سرچينه ده ، دبيزو بې شرمي دچغال چالبازي اود ګيدړي بې غيرتي هرچاته معلومه ده ، نوکه انسان ته دخوراک لپاره ددغوحيواناتو دخوړلو اجازه ورکړل سي نو اياددغو حيواناتو صفتونه به په انسان کي پيدانه سي ؟

په دې وجه اسلام ددې دواړو طريقو په منځ کي منځلاري غوره کړه له يوې خوايې ډېرحيوانان حلال وګرځول اوله بلې خوايې هغه حيوانان چې غوښه يې دانسان اخلاقي کيفيت اوطبيعت اوبدني

صحت لپاره مضر دي هغه يې حرام وګرځول.
داچې کوم حيوانان حلال دي اوکوم حرام دي په دې لړکې قرانکريم عمومي قاعده ټاکلې ده چې(طيبات)يعني پاک حيوانان حلال دي ، (خبائث)يعني ناپاک اوبدخوی لرونکي حيوانان حرام دي،لکه څنګه چې الله ﷻ فرمايي:(وَيُحِلُّ لَهُمُ ٱلطَّيِّبَٰتِ وَيُحَرِّمُ عَلَيۡهِمُ ٱلۡخَبَٰٓئِثَ )(١)
ژباړه:اوهم دوی(خلکو) ته پاکيزه شيان حلالوي اوپليت شيان ورباندې حراموي

## دوچې حيوانات

١۴٦ـ **مسئله** : دوچې حيوانان هم په خپل ځان کې پردرې ډوله دي:
اول : هغه حيوانان دي چې هيڅ وينه نه لري لکه ملخ ، غالبوزه اومچ په دې حيوانانو کې دملخ څخه پرته نورټول حيوانان په اتفاق سره حرام دي.(٢)
دوهم : هغه حيوانان دي چې وينه لري خوبهېدونکې وينه نه لري لکه مار ، کربوړی اودمځکې ټول خصمانان ، ددې په حراموالي باندې هم دټولو علماؤ اتفاق دی.(٣)
دريم : هغه حيوانان دي چې په هغه کې بهېدونکې وينه سته ، داهم

١ ـ سورة الاعراف ايت ١٥٧.
٢ ـ بدائع والصنائع كتاب الذبايح والصيود صـ١۴٦خلورم ټوک مكتبه رشيديه .
٣ ـ بدائع والصنائع كتاب الذبايح والصيود صـ١۴٦خلورم ټوک مكتبه رشيديه .

پردوه ډوله دي چې يوېې ساتل سوي حيوانان دي .[1]

اوبل يې ځنګلي اووحشي حيوانان دي ، په ساتل سويو حيوانانو کي اوښ ، غوا ، غويی ، بزه اوپسه شامل دي اوپه وحشي حيوانانو کي هوسۍ ، ځنګلي غوا ، ځنګلي اوښ اوځنګلي خر ، ددې ډول حيوانانو غوښه خوړل په په اتفاق سره رواده .[2]

اوپه ساتل سويوحيوانانوکي دسپي اوپيشو غوښه خوړل حرامه ده په اتفاق دټولوعلماؤکرامو رحمة الله عليهم اوهمدارنګه په وحشي حيواناتوکي دزمري ، پړانګ ،لېوه،ځنګلي پيشي اوبيزو غوښه په اتفاق سره حرامه ده .[3]

أس دامام ابوحنيفه رحمه الله اوامام مالک رحمه الله په مذهب کي مکروه دی خو امام شافعي رحمه الله اوياران يې ( امام ابويوسف رحمه الله اوامام محمد رحمه الله ) يې حلال ګڼي .[4]

دخره اوغاتري دغوښوخوړل دعلماؤکرامو رحمة الله عليهم په اتفاق سره حرام دي ، په حقيقت کي رسول الله ﷺ دځيروونکو حيوانانو د غوښو دخوړلو څخه منع کړېده اونخښنه يې داښوولي ده چي دمخ په غاښو سره خوراک اوښکارکوي .[5]

---

۱-بدائع والصنائع کتاب الذبايح والصيودص۱۴۷خلورم ټوک مکتبه رشيديه .

۲-بدائع والصنائع کتاب الذبايح والصيودص۱۵۱خلورم ټوک مکتبه رشيديه .

۳-بدائع والصنائع فذوالناب من سباع الوحش مثل الاسدوالذنب والضبع والنمر کتاب الذبايح والصيودص۱۵۲خلورم ټوک مکتبه رشيديه .

۴-بدائع والصنائع کتاب الذبايح والصيودص۱۵۰خلورم ټوک مکتبه رشيديه .

۵-(کل ذي ناب من السباع .....) بدائع والصنائع کتاب الذبايح والصيودص۱۵۰خلورم ټوک مکتبه رشيديه .

دمرغانو په اړه په حديث شريف کې بنيادي اصول داسې بنوول سوي دي چي په مرغانو کي هم درنده (څيروونکي) مرغان حرام دي او دڅيروونکو څخه مراد هغه مرغان دي چي په خپلو منګولو ښکار کوي .نو په دې اساس دفقهي علماء کرامو رحمة الله عليهم، په منګولو سره ښکارکوونکي اوپرنورومرغانو حمله کوونکي مرغان حرام ګرځولي دي ، شافعي مذهب علماءکرامو رحمة الله عليهم په دې لړکې يوځه اصول تاکلي دي اوهغه داچي ددريو ډوله مرغانو غوښې خوړل حرام دي :

اول : هغه چي په خپله څيروونکی مرغه وي لکه باز اوشاهين

دوهم : هغه چي شريعت دهغه دوژلو څخه منع کړي وي لکه هدهد (ملاچرګک) .

دريم : هغه چي شريعت يې دوژلو حکم کړی دی لکه تپوس .

په مرغانو کي دکارغه دخينو ډولونو په باره کي اختلاف سته ، همدارنګه نجاست خوړونکی کارغه حرام دی خوهغه کارغه چي خوراک له کروندو (کښتو)څخه خوري دزياتو فقهاؤ رحمة الله عليهم په نزد يې غوښه خوړل روا ده .(١)

عام مرغان لکه چرګه اوهيلۍ دټولو علماؤکرامو رحمة الله عليهم په اتفاق سره يې غوښه خوړل روا دي . (٢)

١ - (نهى النبى ﷺ عن كل ذي ناب من السباع وعن كل ذي ناب مخلب من الطير) بدائع والصنائع كتاب الذبايح مكتبه رشيديه .

٢ - بدائع والصنائع كتاب الذبايح والصيودباب اكل ذي ناب من السباع صـ١٥٢ ځلورم توک مكتبه رشيديه .

ابن عمرﷺ روايت کوي چي : رسول اللهﷺ د داسي حيوان د غوښي خوړل اوشيدي څښل چي نجاست خوروونکی وي منع کړي ده .(١)

## دسرو زرو پزه

١۴٩ _ **مسئله** : عرفجه بن اسعدﷺ روايت کوي چي زماپزه خرابه سول (په يوقسم اوبو سره چي په عربي کي يوم الکلاب ورته وايي) نو مادسپينو زرو څخه پزه جوړه کړل يوڅه وخت وروسته زماپزه بدبويه سول نو رسول اللهﷺ وماته امر وکړی (اجازه يي راکړل) چي دسرو زرو پزه جوړه کړه .(٢)

## سنتي کول سنت کاردی

١۴٨ _ **مسئله** : نارينه سنتول سنت کاردی ، اوپه کتاب السراجي کي راغلي دي چي دامستحب کاردی چي دنارينه سنتي داوو کالو څخه بياتر دوولسو کالو پوري سنت ده چي وسي ليکن په جواهر الفتاوای کي راغلي دي چي دولادت (پيداکيدو) څخه وروسته په اوومه ورځ کوچني بايد سنت سي . که چيري يوچايو کوچنی سنت کړی او وروسته يي پوست اوږدسو په داسي قسم سره چي د ذکر (تناسلي الې) سريي پټوی نوبيادي هغه پوست وربري کړي اوکه

١-رواه ترمذي ص ٣٢ .

٢-جامع الترمذي ابواب الباس ص ٣٢٩ لومړی ټوک مکتبه رحمانيه .

چيري دومره نه ؤ (لې) ؤ نو بيادي يې نه ورېږي کوي . (۱)

## دږيري څخه سپين وېښته کښل

۱۴۹_ **مسئله** : رسول الله ﷺ دږيري څخه دسپين وېښته کښل منع کړي دي اودايې ويلي دي چې سپين وېښته دمؤمن لپاره نوردی (۲) رسول الله ﷺ په مبارک ارشاد کې داسي فرمايلي دي : هرهغه څوک چې په اسلام کې سپين ږېرى سي نودغه سپين ږېريتوب وده ته د قيامت په ورځ نوردی . (۳)

## ايا په رکوع کي لاسونه پورته کېږي

۱۵۰_ **مسئله** : دامام ابوحنيفه رحمه الله په مذهب په رکوع کي لاسونه نه پورته کېږي ،څکه سفيان دعاصم بن کليب څخه هغه دعبدالرحمن بن الاسود څخه هغه دعلقمه څخه اوهغه دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت کوي دی وايي : چې رسول الله ﷺ په اول تکبير کي وغوړوته لاسونه پورته کول بيا يې دلمانځه تراخيره پوري لاسونه نه پورته کول . همدارنګه حماددابراهيم څخه هغه دعلقمه څخه اوهغه

---

۱- (ظلام ختن فلم ....) فتاوای هنديه ص۳۵۷ پنځم ټوک مکتبه رشيديه .
۲- (نهی رسول الله ﷺ.....هو نورالمومن) المصنف لابن ابي شيبه کتاب الاداب ص۲۶۱ ديارلسم ټوک مکتبه المجلس العلمي بيروت لبنان .
۳- (من شاب شيبة في الاسلام کانت له ...يوم القيامت) المصنف لابن ابي شيبه کتاب الاداب ص۲۶۱ ديارلسم ټوک مکتبه المجلس العلمي بيروت لبنان .

دعبدالله ﷺ څخه روايت كوي چي مادرسول الله ﷺ ترشا او ما د ابوبکر صديق ﷺ اوعمرفاروق ﷺ ترشاهم لمونځ وكړ ، دوی (رسول الله ﷺ ، ابوبکرصديق ﷺ اوعمرفاروق ﷺ) دلمانځه په اول كي وغوږوته لاسونه پورته كول ، بيايي تراخيره پوري په لمانځه كي لاسونه نه دي پورته كړي .

ابن مسعود ﷺ روايت كوي چي ماو دوی (صحابه كرامو رضی الله عنهم) ته ووېل تاسوته درسول الله ﷺ په طريقه سره لمونځ درنه كړم دوی (صحابه رضی الله عنهم) راته ووېل چي هو رايې كړه نو هغه ووچي دلمانځه په اول كي يې لاسونه پورته كړل اوترهغه وروسته يې بيالاسونه نه دي پورته كړي .(١)

ديزيدبن ابي زياد څخه هغه دعبدالرحمن بن ابي ليلى څخه اوهغه دبراء ﷺ څخه روايت كوي دی وايي چي : رسول الله ﷺ دلمانځه په اول كي وغوږوته لاسونه پورته كول ترداسي اندازې پوري چي دغوږو سره به يې دلاسو ګوتي برابرولي اوبيايي وروسته لاسونه نه دي پورته كړي.

اوابوداود دوكيع څخه هغه دابن ابي ليلى څخه هغه دخپل ورور عيسى څخه هغه دحاكم څخه اوهغه دبراء ﷺ څخه روايت كوي چي مارسول الله ﷺ وليدی چي په لمانځه باندي يې شروع كول (نو) غوږوته يې لاسونه پورته كړل (او) وروسته يې بيا لاسونه نه دي

١- المصنف لابن ابي شيبة صـ ٢١٣ دوهم توک مكتبه المجلس العلمي بيروت لبنان.

پورته کړي.

یادونه: نو اوس دامعلومه سوه چي ماسپوا دشروع دالله اکبرڅخه وروسته بیاداالله اکبرسره لاسونه وغوړوته پورته کول نسته ځکه دغه لوړ حدیثونه تولة پردې خبره باندي دلالت کوي چي یوازي اویوازي به دشروع په الله اکبرکي غوړوته لاسونه پورته کوي.[1]

## دسخت باران په وخت کي دعا

۱۵۱_ **مسئله**: څه وخت چي به باران سخت سو نوصحابه کرام رضي الله عنهم به رسول الله ﷺته راغلل چي زموږ کورونه (خوني) نړیږي نو رسول الله ﷺبه لاس پورته کړ اوداسي به یې وویل: «اَللّٰهُمَّ حَوَالَيْنَا وَلَاعَلَيْنَا» نو وروسته به وریځ راسته اوچپه طرف ته سره ولاړه.[2]

## داچي تعویذپه حدیث شریف سره ثابت دی

۱۵۲_ **مسئله**: یوصحابي ﷺوایي چي زه رسول الله ﷺته راغلم نوماورته وویل چي ماته تعویذ راوښیه چي زه تعویذکوم نو رسول الله ﷺراته وویل چي ووایه «اللهم اني اعوذبک من شرسمعي وبصري ولساني

---

۱- الموسوعة الفقهیه المقارنة التجرید ص۱۸ اولوم ټوک مکتبه محمودیه. - المصنف لابن ابي شیبة ص ۲۱۲ دوهم ټوک مکتبه المجلس العلمي بیروت لبنان.
۲- المصنف لابن ابي شیبة کتاب الدعاص ۱۱۸ پنځلسم ټوک مکتبه المجلس العلمي بیروت لبنان.

ومني) ژباړه: ياالله ﷻ زه په تاسره پناه غواړم (دبدالي څخه) دخپلو غوړو، سترګو، ژبي څخه. (١)

## په هديره کي بولي کول

١٥٣_ **مسئله**: هديرې ته دورتلو موخه اوهدف دادی چي: انسان د ژوند وروستی هستوګنځی همدغه دخاروکوته ده، دغه خلک زموږ څخه وړاندي تللي دي اوموږ وريسې روان يو، په دنياکي هيڅ يوانسان له مرګ څخه نجات نسي پيداکولای، په دې ځای کي انسان خپل رب ﷻ ته عاجزي اوزاری کوي چي په دغه ځای کي مرسته راسره وکړي، نوپه داسي مقدس ځای کي بولي کول يانوره مرداري کول ناروا کاردی انسان ته ښايي چي دقبرونوپه ليدلو سره عبرت واخلي اودخپلي راتلونکي په اړه فکر وکړي، رسول الله ﷺ په يوحديث شريف کي فرمايي: (قال النبي ﷺ لان يجلس احدکم على جمرة فتحرق ثيابه فتخلص الي جلده خيرله من ان يجلس على قبر). (٢) رسول الله فرمايي ژباړه: داچي يوڅوک ستاسو څخه داور پر سکروټه باندي کښيني (اوهغه اوريې) کالي ورسوځي تردې اندازې پوري چي (اوريې) بدن يعني پوست ته ورسېږي نودا (داورسوځېدل) دده لپاره خيراوښه دي ترهغه چي دی پر قبرباندي کښيني.

دحديث شريف څخه معلومېږي چي پرقبرونو باندي کښيناستل ښه

---

١-المصنف لابن ابي شيبة کتاب الدعاصـ ٧٨پنځلسم توک مکتبه المجلس العلمي بيروت لبنان.

٢-صحيح المسلم کتاب الجنائز صـ٣١٢ لومړی توک مکتبه قديمي کتب خانه.

کارنه دی نو په هديره کي مرداري کول خوتر دې بده خبره ده ، پرقبرونو باندي کښېناستل که دساعت تېرې لپاره وي اويا دبل مقصد لپاره وي فرق نه کوي .(١)

## دشکرلپاره سجده کول

١٥٤ ـ **مسئله** : انسان په دنياکي له ډول ډول حالاتو سره مخ کېږي ، مثلاًیووخت داسي څيزونه په لاس ورسي چي انسان ډيرورباندي خوشحاله کېږي يايوداسي ناروغي يې له بدن يادکوردبل غړي له بدن څخه ايسته کېږي چي ددوی لپاره ددغه ناروغۍ دايسته کولو هيڅ توان يااميد نه وي نو په داسي حالاتو کي دشکرسجده کول مستحب کاردی ځکه دغه سجده کول هم يوډول عاجزي ده چي انسان دالله ﷻ لپاره سرکښېنته کوي ، په حديث شريف کي راغي کله به چي رسول الله ﷺ ته يوکارپېښ سو نو دشکر سجده به يې کول ، دعبدالرحمن بن عوف ؓ څخه روايت دی : کله چي زه او رسول الله ﷺ جنت البقيعي ته ولاړو نو رسول الله ﷺ په جنت البقيعي کي يوه اوږده سجده وکړه اووېې فرمايل چي جبرائيل ؑ راغی اوماته يې زيری راکړچي هرڅوک چي پررسول الله ﷺ باندي يوځلي درود ووايي نو الله ﷻ پردغه انسان باندي لس رحمتونه وکړي نوماد شکرسجده وکړه په بل حديث شريف کي راغي چي

١ - فقه على المذهب الاربعه كتاب الطهارة مبحث اداب قضاء الحاجة صـ٨٥ لومړی ټوک مکتبه وحيدي کتب خانه .
جامع الترمذي ابواب الجنائز صـ٢٢٨ لومړی ټوک مکتبه رحمانيه .

رسول الله ﷺ وویل چې ما دخپل رب څخه دخپل امت دشفاعت غوښتنه وکړه الله ﷻ ماته دخپل امت ددریمي برخي دشفاعت اجازه راکړه ، نوما الله ﷻ ته دشکرسجده وکړه ، کله چې مي سر راپورته کړی نو بیا مي دخپل امت دشفاعت کولو غوښتنه وکړه داخل بیا ماته الله ﷻ دخپل امت ددوهمي برخي دشفاعت کولو اجازه راکړه ، نوزه بیا پرسجده سوم او الله ﷻ ته مي دشکرسجده وکړه ، وروسته مي بیا سر راپورته کړ اودخپل امت دشفاعت کولو غوښتنه مي ورڅخه وکړه ، نو الله ﷻ دهغه پاته برخي دشفاعت کولواجازه هم راکړه،نو زه بیا کښنته سوم اودشکرسجده مي وکړه (١).

## هغه طلاقه سوې ښځه چې خاوند کوروالی نه وي ورسره کړی

١٥٥_ **مسئله** : هغه ښځه چې يوچاپه نکاح کړې وي ، خودغه خاوند يې تراوسه پوري کوروالی نه وي ورسره کړی اوطلاق ورکړي ، نو ددې ښځي لپاره عده نسته ځکه الله ﷻ په قرانکريم کي فرمايي ژباړه : ای مسلمانانو اکله چې تاسي مسلماني ښځي په نکاح کوئ اوبيا مخکي تردې چې له دوی سره مو ملاسته (نږدیکت) کړی وي طلاق ورکوئ نوتاسي ته پردوی کوم عده چې وبې شميرئ نسته ،

١ ختاواي النابلسي ص٢٢٧ دوهم ټوک مکتبه حقانيه . - مشکواة المصابيح باب في سجود الشکر ص١٣١ لومړی ټوک مکتبه دارالاشاعة العربيه . - الموسوعة الفقهيه المقارنة التجريد مسئله ١٥٨ ص٦٢٧ دوهم ټوک مکتبه محموديه .

نودوی ته څه متاع (یوه جوړه کالي) ورکړئ او په ښه توګه یې خوشي کړئ.[1]

## که چیرې یوه مراهقه نجلۍ مړه سي

۱۵۶ـ **مسئله**: که چیرې یوه داسي نجلۍ مړه سي چي بلوغ ته نه وي رسېدلې خومراهقه وه (که یوچاورته کتلي وای نو دبالغي نجلۍ حکم به یې پرکړی وای) نودغه نجلۍ دلوی ښځي په کتارکي راځي اوبېله ښځوڅخه بل څوک غسل نه سي ورکولای حتی خپل خاوند هم غسل نه سي ورکولای، خوددغي نجلۍ یومحرم کولای سي چي تیمم ور ووهي اوکه چیري محرم نه وي نوبل څوک هم کولای سي چي یوټوکر په لاس واغوندي اوتیمم ورووهي اوکفن ورکړي.[2]

## که چیري یوه داسي نجلۍ مړه سي چي نه مراهقه وي اونه بالغه

۱۵۷ـ **مسئله**: که چیري یوه داسي نجلۍ مړه سي چي نه مراهقه (بلوغ ته نژدې وي) وي اونه بالغه وي نوهم ښځي غسل ورکولای سي اوهم نارینه غسل وکولای سي.[3]

۱- سورة الاحزاب ایت ۴۹. فقه الحنیفی في ثوبه الجدید في تعریف العدة صـ ۲۰۲ دوهم ټوک مکتبه حقانیه

۲- ماتت بین رجال اوهوبین النساء تیممه المحرم فان لم یکن فالاجنبي بخرقه، ردالمحتار باب صلواة الجنائز قبیل مطلب فی الکفن صـ ۶۳۶ لومړی ټوک مکتبه رشیدیه.

۳- قال في الصغیرة والصغیراذا لم یبلغاحد شهوة یغسلها الرجل والنساء رد المحتار باب صلواة الجنائز قبیل مطلب فی الکفن صـ ۶۳۶ لومړی ټوک مکتبه رشیدیه.

## که چيري امام په رکوع کي وو ، او يو څوک راغی

۱۵۸_ مسئله :که چيري يو امام پر جماعت ولاړ وو او تر الحمد لله او سورة لوستلو وروسته رکوع ته ولاړی، په دې وخت کي امام په دې پوه سو چي يو څوک مسجد ته راغی ، نو امام په دغه وخت کي رکوع ورته وځنډول ددې لپاره چي دغه سړی په رکعت کي راسره شريک سي ، نو دغه کار په شريعت کي سخت حرام دی ، که چيري امام دغه سړی پېژانده او د شناخت په خاطر يې رکوع ورته وځنډول نو په دې وخت کي د شرک ډېره ورسره ستر څکه د الله ﷻ سره يې په عبادت کي بل څوک شريک کړ او که چيري امام دغه سړی نه پېژانده نو بيا د شرک خبره نسته ، څکه امام د دغه سړي په عبادت کي کومک ورسره وکړ.(١)

## د وترلمانځه په اخير رکعت کي دعا قنوت ويل واجب دي

۱۵۹_ مسئله : د ماخستن د وترلمانځه په دريم رکعت کي دعا قنوت (اللّٰهُمَّ إنَّا) ويل واجب دي ، که چيري ديوچا (که امام وي او که مقتدی وي، (اللّٰهُمَّ إنَّا) نه وه زده نو پر ځای دي يې (اللّٰهُمَّ اغفِرلِي ) درې واره ووايي او يا دي يَارَبِّ ، يَارَبِّ ، يَارَبِّ وايي او يا دي هم (اللّٰهُمَّ رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنيَا حَسَنَةً وَّفِي الْآخِرَةِ حَسَنَةً وَّقِنَا عَذَابَ النَّارِ) ووايي ، که چيري ديوچا څخه دعا قنوت هېرسو نو په اخيري رکعت کي دي سجده سهوه وکړي ، که

١- فتاوای النابلسي ص ۸۶ دوهم ټوک مکتبه حقانيه .

چيري ديوامام څخه دعاقنوت هېرسو نو مقتدي دې کوښښ وکړي که چيري دامام سره په رکوع کي يوځای کېدلای سوای نو دعاقنوت دي ووايي اوکه يې له امام سره په رکوع کي شرکت نه سوکولای نو بيادي يې پرېږدي ځکه چي دامام متابعت واجب دی.(١)

## دقبروځنګ ته مسجدجوړول

١٦٠_ مسئله: په صحيح البخاري کي دحضرت ام حبيبې رضي الله عنها او حضرت ام سلمی رضي الله عنها څخه روايت دی چي: يووخت مورېږه حبشې هيوادکي دمسيحانو (نصاراو)يوه کليساوليده چي بتان پکښي پراته وه، کله چي موداخبره درسول الله ﷺ په مخکي بيان کړه، هغه ﷺ راته وويل: داهغه خلک دي چي په دوی کي به يونيک اوصالح سړی مړسونو دوی به يې پرقبرباندي مسجد ياتکيه ګاه جوړه کړه اوپه هغه کي به يې ددوی بتان ودرول، نودغه کسان دالله جل جلاله په نزدترټولو بدترين مخلوق دی، نوکه چيري يوڅوک ديونيک ياصالح اوبزرګ سړي دقبر څنګ ته په دې نيت چي تبرک اونيک پالي يې مقصدوي يعني کفري اوشرکي څه پکښي موجود نه وي مسجدجوړ کړي نوبيادرسول الله ﷺ دهغه وعيد(عذاب)او

١- فقه الحنيفي في ثوبه الجديد كتاب الصلاة ص٢٩٢لومړی ټوک مكتبه حقانيه.

لعنت لاڼدي نه راځي چي دمسيحانو (نصاراو)په اړه يې کړی دی ، چي دښوخلکوپرقبرونو باندي يې مسجدونه جوړول .(١)

## پوره په زکات کي نه صحيح کېږي

١۶١_ مسئله : که چيري يوڅوک يوچاته يوڅه پيسي په پوروروکړي اوهغه بياد پور پيسي وځنډولي په دې وخت کي که دپيسو خاوندهر څومره کوښښ وکړي چي پيسې دهغه نفرڅخه چي پرياندي يې دي واخلي ، خوهغه انکارکوي چي زه يې نه لرم ، نواوس دده سره دا فکر پيداسي چي کاشکي مي دغه پيسې په زکات کي ورکړي وای ، نودانه صحيح کېږي اوداځکه چي قرض اوپوره په زکات کي نه صحيح کېږي اوداپه دې خاطر چي په زکات کي نيت شرط دی يادمال دجلاوالي په وخت کي يادپيسو دورکړې په وخت کي ، ځکه چي په هدايه شريفه کي داسي راغلي دي : دزکات ورکړه نه ده جائز، مګر په داسي نيت سره چي ياله اداء سره يوځای وي يادهغه واجب مقدار د جلاکولو په وخت کي ، ځکه چي زکات هم يوعبادت دی نو د (عبادت)له شرطونو څخه يوشرط نيت هم دی .(٢)

---

١-صحيح البخاري صـ١۶١لومړی ټوک مکتبه غفاريه . - عمدة القاري شرح البخاري کتاب الصلاة صـ٢۵٨ اخلورم ټوک مکتبه رشيديه .

٢-ولايجوزاداءالزکاة الابنية مقارنة للاداءاومقارنة لعزل مقدارالواجب الان الزکاة عبادة فکان من شرطهاالنية ، الهداية کتاب الزکاة صـ١۶٩ لومړي ټوک مکتبه رشيديه .

## دښځي مخ عورت دی

۱۶۲ـ **مسئله** : داچي علماء کرام رحمة الله عليهم وايي چي دښځي ټول بدن عورت دی ليکن يوازي اويوازي يې مخ ، لاسونه اوپښې عورت نه دي نو هغوی داتخصيص (اوخاصوالی )يوازي دلمانځه لپاره کړی دی ، او نه دخلکو په مخ کي ، ځکه عورت په دوه قسمه دی چي يويې عورت په لمانځه کي دی اوبل يې عورت په کتلوکي دی ، نويوه حره (ازاده ) ښځه په لمانځه کي خپل مخ ، لاسونه او پښې لڅولای سي ليکن په بازاراودخلکوپه منځ کي يې نسي لڅولای .(۱)

## په لمانځه کي دوه توران وژني

۱۶۳ـ **مسئله** : دابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل ژباړه : په لمانځه کي (داخل)ماراولړم وژنئ .(۲)
يادونه : ابن مالک ﷺروايت کوي چي دا روا دي چي په لمانځه

۱- ردالمحتارفصل في النظروالمس صـ۲۶۱پنځم ټوک مکتبه رشيديه . - فتح الملهم شرح المسلم کتاب الحيض صـ۱۴۰دريم ټوک مکتبه داراحياء التراث العربي .
۲- (عن ابوهريرة ﷺان النبي ﷺامربقتل الاسودين ... في الصلواة الحية والعقرب ، المصنف لابن ابي شيبة کتاب الدعاء صـ۷۳پنځلسم ټوک مکتبه المجلس العلمي بيروت لبنان . ـ مشکراة المصابيح کتاب الصلواة صـ۶۰لومړی ټوک مکتبه البشرای . - هدايه کتاب الصلاة صـ۱۲۶لومړی ټوک مکتبه رشيديه .

کي په يوه يادوه واري سره ماريالرم ووهل ياووژل سي اوترديي زيات نه ده روا چي ووهل سي ، په ډيرعمل اوکارسره لمونځ فاسديږي (۱)

## داوداسه وروسته دعا

۱۶۴_ مسئله : دانس بن مالک ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : که چاداوداسه وروسته دغه لاندي دعاوويل ، نو د جنت اته دروازي خلاصي دي دهري دروازي څخه چي ورداخليږي (دهري دروازي څخه چي وغواړی ورتلای سی). (۲)

## دکفارومخکي ته قرانکريم ووړل نه دي په کار

۱۶۵_ مسئله : حضرت عبدالله بن عمر ﷺ روايت کوي چي سرور کائنات ﷺ ددي څخه منع کړيده چي يومسافردخپل ځان سره د کفارومخکي ته قرانکريم يوسي ، نوامام ابوحنيفه رحمه الله همداسي وايي چي که چيري دابيره وه چي کفاربه دقرانکريم بې احترامي اوبې عزتي وکړي نوبياخو دقرانکريم وړ وړل نه دي روا.
يادونه : داچي په اوسني وخت کي ځيني خلک دکفاروپه غوښتنه و دوی ته قران عظيم الشان ووړي ، اودوی دخپل ځان لپاره داسي بهاني جوړوي چي که چيري دوی يې ورنه وړي نوبيابل کس پيدا

۱- مرقات شرح المشکواة کتاب الصلاة ص۸۲ دريم توک مکتبه رشيديه .
۲- (اشهدان لااله الاالله وحده لاشريک له واشهدان محمدعبده ورسوله ، المصنف لابن ابي شيبه کتاب الدعاء ص۲۲۲ پنځلسم توک مکتبه المجلس العلمي بيروت لبنان .

کېږي چې ودوی ته قرانکريم وروړي ، نودهغوی لپاره داسي ويل کېږي چې دابهانه يې عذرنه بلل کېږي .
خودرسول اللهﷺدخبري څخه داسي يوه روښانه خبره منځ ته راغله چې وهيڅ مؤمن ته نده روا چې کفاروته قرانکريم وروړي ، څکه چې دغه کاريې منع کړی دی .(١)

## دسهاردلمانځه وروسته دعا

۱۶۶ـ **مسئله** : دحضرت علي ﷺ څخه روايت دی چې هرچاکه دسهاردلمانځه وروسته لس ځله سورة الاخلاص (قُلْ هُوَاللّٰهُ اَحَدٌ ... تر اخيره) پوري وويل ، نوپه دغه ورځ به وده ته هيڅ ګناه ونه رسيږي که څه هم شيطان هرڅومره کوښښ وکړي .(٢).

## دهغه چالپاره جنت واجب دئ

۱۶۷ـ **مسئله** : دابي علي جنبيؒ څخه روايت دی چې مادابي سعيد الخدري ﷺ څخه واورېدل چې رسول اللهﷺوويل : چاکه لاندي کلمات وويل ، نودهغه لپاره جنت واجب دی .(رَضَيْتُ بِااللّٰهِ

١ - فتح الملهم شرح المسلم كتاب الامارة صـ٣٢٠ نهم توک مکتبه دارالاحياء التراث العربي . - تفسير المظهري سورة الواقعه صـ١٨١ نهم توک مکتبه علوم الاسلامية .
٢ - المصنف لابن ابي شيبه كتاب الدعاء صـ٣٨١ پنځلسم توک مکتبه المجلس العلمي بيروت لبنان .

رَبًّاوَ بِاالْإِسْلَامِ دِيْنًاوَبِمُحَمَّدٍ رَسُوْلًا) .[۱]

## دیوې ښځې اودهغې دخاوند دلور سره نکاح روا ده

۱۶۸_ **مسئله** : که چیرې یوسړی واده وکړي اویوه لورېې پیدا شوه وروسته یې هغه ښځه مړه شوه بیاده بل واده وکړی دواده وروسته دې مړسو نوبیا یوبل سړی راولاړ شو دهغه سړي دلوراوښځې دواړو سره یې نکاح وکړه نودارواده خکه ددې ښځې او دهغې دخاوند دلورترمنځ یې هیڅ قرابت نشته پدې شرط چې دغه لورېې دهغې ښځې تی نه وي رودلی .[۲]

## دمجبورۍ پراساس (ناروا، روا) کېږي

۱۶۹_ **مسئله** : دیني فقهي عالمانوچي دحلال اوحرام په اړه کوم اصول اوقوانین ایښي دي دهغوی له جملې څخه یوداهم دی چې دعذراومجبورۍ له مخې (حرام عمل حلال) کېږي ، ددې قاعدې اصل په قرانکریم او احادیثوکې هم بیان شوی دی خکه چې په ناچارۍ کې دمردارحیوان خنزیرد غوښې خوړل په دې شرط رواګڼل شویدي چې په هغه اندازه وخوړل شي چې انسان ژوندی وریاندی

۱- المصنف لابن ابي شيبه كتاب الدعا، ص۱۲۷ پنخلسم توک مکتبه المجلس العلمي بيروت لبنان .
۲- الهدايه کتاب النکاح ص۵ دوهم توک مکتبه رشيديه .

پاته سي اوياهم يې ضرورت رفع سي .(١)

يوځو مثالونه يې دادي :

- که د ډوډۍ خوړلو په وخت کي د چاپه ستوني کي ګوله بنده سي او د شرابو پرته بل کوم بهېدونکی شی نه وي نو شراب استعمالولای سي .(٢)
- که په سفرکي څوک داسي وږی سي چي د مرګ خطريې وي او ملګرو سره يې خوراکي مواد وي نو هغوی بې اجازې يې خوړلای سي .(٣)
- که د لمانځه پروخت د بدن د پټولولپاره هيڅ شی نه وي او يوازي وربښمين کالي وي نو اغوستل يې ورته روادي .(٤)
- که څوک ناروغ وي او د همدې ناروغۍ له امله ورته سخت تکليف اوياد مرګ وېره وي نو ديوه او مسلمان چي فسق يې ښکاره نه وي داسي ډاکټرپه هدايت د ناپاکو شيانو خوړل ورته روادي .

هغه عمل چي ناروا ، روا کوي دوه سببونه لري :

لومړی : د يوشي د نه استعمال په صورت کي د هلاکت انديښنه وي چي دې ته په شرعي اصطلاح کي (ضرورت) وايي .

دوهم : د يوشي د نه مراعت په صورت کي د سخت تکليف او مشقت

---

١ - الضرورات تبيح المحذورات . - الاشباه والنظائر لابن نجيم ص ٥٨ .
٢ - الاشباه للسيوطي ص ١٧٢ .
٣ - عالمگيري ص ٣٣٨ پنځم ټوک .
٤ - فتاوای تاتارخانيه ص ٦١٨ لومړی ټوک .

اندېښنه وي چې دي ته په شريعت کې (حاجت) وايي. ([1])
دفقهي عالمان رحمة الله عليهم وايي: دحاجت حکم هم دضرورت حکم دی.([2])
مثلاً دناروغی په صورت کې ښځه يوازې هغه اندام داکتر ته ښوولای سي کوم ته چې اړتيا ليدل کېږي. ([3])

## دنوکانو رنګ

۱۷۰_ **مسئله**: اودس څلور فرضونه لري چې عبارت دي له:
دمخ پريولل، دلاسونو پريولل، دسر مسح اودپښو پريولل.([4])
که په دغه څلورو وارو اندامونو کي يواندام ديوو ښته په اندازه وچ پاته سي نواودس نه صحيح کېږي، دبلې خواڅخه دلمانځه لپاره اودس شرط دی نوکله چې اودس پرځای نه سي نولمونځ هم نه صحيح کېږي. په اوس وخت کي ځيني ښځي په ځانګړي ډول خواني نجوني پرخپلو نوکانو باندي دښکلا دلاريا توالي لپاره يو ډول رنګ وهي، دغه رنګ يو پلاستيکي ماده ده کله چې پرنوک ولوېږي نوداودس په وخت کي له نوک څخه داوبو مخنيوی کوي او اودس لکه څنګه چې ښايي په هغه ډول نه کېږي څکه نولمونځ يې

۱- الاشباه للسيوطي صـ ۱۷۴.
۲- الحاجة تنزل منزلة الضرورت – الاشباه ابن نجيم صـ ۹۱
۳- الاشباه والنظائر صـ۱۷۵.
۴- عالمگيري کتاب الطهارة صـ ۳ الومړی ټوک مکتبه رشيديه.

هم نه صحيح کېږي .د غسل په وخت کې هم موضوع په همدې ډول ده ، هيله ده دغه موضوع ته پوره پاملرنه وسي .(١)

## دښځودوښتانو حکم

١٧١ـ **مسئله:** فطرت داسې راغلی دی چې نارينه ږيره اوبريتونه لري اوښځې يې نه لري خوکه چيرې داسې ښځې وې چې ږيره يا بريتونه يې راغلي وي نوددغــوويښتانو ليرې کول مستحب کاردی .(٢) په اوس وخت کې ډېرې ښځې دوروځووېښتان کارې تر څو وروځې يې نرۍ معلومې سي يـاهم دوروځو په منځ کې وېښتان کـارې اوددو وروځـو پـه منځ کې فاصله پيدا کوي ، اوداکار دمخ دښکلا په خاطر کوي .(٣) دامکروه بلل سويدی ، څکه په حديث شريف کې داسې ښځوته (متنمصات) ويل سويدي اوپردوی باندي لعنت ويل سويدی .(٤) هغه ښځې چې ځانونه له نارينه سره مشابه کوي اودخپل ځان ظاهري شکل داسې جوړوي لکه دنارينه ؤ په ډول ، ياداچې د اوسني خارجي ښځو په څېرفېشن کوي اويـاهم دخپل سروېښتان کوچني کوي ياپه اصطلاح (څنې پرې کـوي) نو دا ښځې ګنهګاري اودلعنت مستحقي دي ، څکه چې رسول الله ﷺ

١- فقه الاسلامي وادلته النوع الثاني شروط الصحة صـ٣٩١ لومړی توک مکتبه فريديه.
٢- (اذاانبت للمراة لحية اوشوارب فلاتحرم ازالة بل تستحب) ردالمحتار فصل في اللبس صـ ٢٢٢ پنځم ټوک مکتبه رشيديه.
٣- (اوياد تول مخ وېښتان کاږي په تارسره)
٤- فتح الباري شرح البخاري کتاب الباس باب المتنمصات صـ ٢٦١ لسم توک مکتبه رشيد يه

هغه ښځې چې خان دنارینه ؤ په څېرجوړوي له دې کار څخه منع کړيدي اوپرهغوی یې لعنت ویلی دی.[1]

## دقرانکریم دتلاوت وفیتوته بې له اودسه لاس وروړل

۱۷۲_ **مسئله** : قران عظیم الشان یواسماني ، حقیقي اوپاک کتاب دی چې دانسانانو دلارښووني لپاره نازل سوی دی ، په دې کې هیڅ شک نسته چې ددغه پاک کتاب ټول مضامین دانسانانو لپاره ددنیا اواخرت دښه ، ارام اوپرمختللي ژوند قوانین دي . داخبره معلومه اواتفاقي ده چې لیکل سویو قراني ایتونوته بې اوداسه لاس وروړل صحیح نه دي خو فیته لیکلی شی نه دی مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله دقراني ثبت سویو فیتودلاس وروړلو اجازه ورکړې ده اودلیل یې دا راوړی دی چې : که څوک دقران اواز له بدن څخه مبنلوي نو دبدن پاکوالي ته ضرورت نسته څکه که داسي نه وي نو دجنب لپاره به هم دقران اوریدل صحیح نه وای .[2] ددې مسئلې دوهم اړخ دادی چې : په بې اودسي سره دقرانکریم دنه مسئ کولو اصلي سبب دده مکتبوالی (لیک) نه دی بلکي دقران عظیم الشان احترام دی یعني دغه لیک دقراني تورونقش دی چې

---

۱- عمدة القاري شرح البخاري كتاب الباس باب اخراج المشتهيين بالنساء حديث نمبر ۵۸۸۵ ص۶۴ دوهشتم ټوک مکتبه رشیدیه.
۲- امدادالفتاوای ص۱۲۵ لومړی ټوک.

پرقرانکريم باندې دلالت کوي . (۱)
نوکه چېرې دکاغذاحترام واجب وي چې قراني ايتونه پکښې خوندي کړل سوي وي نودا امکان نه لري چې دفيتواحترام دې واجب نه وي چې په هغه کې هم قراني ايتونه خوندي کړل سوي وي ، نومعلومه سوه چې دقراني ايتونوفيته هم بې اودسه مسح کول صحيح نه دي .(۲)
داچې دجنب لپاره دقرانکريم داورېدلوجواز سته ،په دې کې بايد فکروسي ځکه چې دقران عظيم الشانٰ په اورېدلو کې داورېدونکي خپل اختيارنه وي ، دغه اواز بې اختياره دده غوږونو ته رسېږي خوفيتې ته په لاس وروړلو کې لاس وروړونکی په خپل اختيار فيتې ته لاس وروړي . که چېرې فيته په خپل پوښ (پلاستيکي کوړ) کې وي نوبيالاس وروړل پروانه کوي .(۳)

## دزنابدوالی

۱۷۳_ **مسئله** : اسلام يوې خواته دنکاح په کولو دنارينه اوښځې حلال نزديکت ته دصدقې اوعبادت درجه ورکړېده اوزنايې بيا سخته ګناه بللې ده ،ځکه رسول الله ﷺ فرمايي : زناکول دمخ

۱- هدايه باب الحيض والاستحاض ولاخذ درهم فيه سورة من القران الابصرته صـ ۱۱۲ الومړی توک مکتبه البشرای
۲- هدايه باب الحيض والاستحاض لايمسه القران الاطاهر صـ ۱۱۵ الومړی توک مکتبه البشرای
۳- هدايه باب الحيض مايکونه متجافيا صـ ۱۱۵ الومړی توک مکتبه البشرای .

نورختموي اوررزق کموي .(۱)
که چيري يوداسي څوک چي عمريې د يروي اوبياهم زناکوي نو د الله ﷻ له رحمت څخه به ليري وي اوجنت ته به هم داخل نه سي .(۲)
په يوبل حديث شريف کي چي ابوهريرة ﷜ يې روايت کوي رسول الله ﷺ فرمايي: يوبنده چي څه وخت زناوکړي نوايمان دده څخه ووزي لوړ دده پرسر داسي ولاړوي لکه سايوان نوڅه وخت چي دی (زناکوونکی) ددغه عمل څخه ووزي (فارغه سي) نوايمان بيرته راسي .(۳)
دنبي کريم ﷺ په يوبل مبارک ارشادکي راغلي چي: په کوم قوم کي چي زناوي ډيري سي نوپرهغه قوم باندي وچکالي راسي اودايې هم ويلي دي چي دزناوو د ډيروالي په سبب مرګونه ډيرسي .(۴)
اوهمدارنګه په بل حديث شريف کي دابوهريرة ﷜ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: چي څوک زنا نه کوي، په داسي حال کي چي دی زناکوي اودی دي مؤمن وي (پوره مؤمن نه دی).(۵)
نوبياهم په يوه بل حديث شريف کي روايت سويدی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: همېشه به زماامت پرخيرباندي وي ترڅوچي په دوی کي ولد زنا(حرام مني) ونه پاشل سي، اوڅه وخت چي بياپه

۱- مجموع الزوائد باب ذم الزناص ۲۵۵ شپږم ټوک.
۲- مجموع الزوائد باب ذم للزناص ۲۵۵ شپږم ټوک.
۳- مشکواة کتاب الايمان باب الکبائر علامات النفاق دحديث نمبر ۶۰ ص ۱۰۰ لمړی ټوک مکتبه البشرای.
۴- (ولاتشي الزناني قوم الاکثرفيه الموت)، مشکواة عن مالک ص ۳۵۹.
۵- مشکواة المصابيح کتاب الايمان دحديث نمبر ۵۳ ص ۱۲ لومړی ټوک مکتبه البشرای.

تاسو کي ولدزناوپاشل سي نوتاسي (بياپه دغه وخت کي) په شک کي ياست ؟ چي دالله ﷻ عذاب دي عام سي .[1]
نو که چيري داسي څوک زناوکړي چي خپل واده ولري نودهغه لپاره شـريعت پـه ډبروسنګسارتاکلی دی .اوکـه چيـري بيادداسـي څـا زناوکړه چي هغه واده نه وي کړی نودهغه لپاره بياشريعت سل دُرې تاکلی دی يعني سل دُرې به وهل کېږي .[2]

## په اوداسه کي لاندي اتلس شيان سنت دي

۱۷۴ـ **مسئله** : ۱- داوداسه پـه شـروع کـي تريـنـدونو پـوري لاسـونه پريولل.
۲- داوداسه په شروع کي بسم الله الرحمن الرحيم ويل .
۳- داوداسه په پيل کي مسواک وهل که مسواک نه وي ګوته هم کفايت کوي .
۴- دري واره خوله پريولل که څه هم په يوه لپه سره وي .
۵- دري خله پزه پريمنځل دي البته په جلاجلا لپوسره به وي .
۶- دخولي اوپزي په پريمنځلوکي ښه کوښښ کول دي خوپه دي شرط چي روژه نيوونکی به نه وي .
۷- دهغي ږيري خلالول چي ګڼه وي ، په داسي ډول چي په ورغوي کي به اوبه اچوي اودلاندي طرف څخه به يې وراچوي .

۱- فقه على المذاهب الاربعه كتاب الحدودصـ۲۳ پنځم ټوک مکتبه وحيدي کتب خانه .
۲- التنف في الفتاوای کتاب النکاح صـ۱۷۲ مکتبه يوسفيه .

۸- دتولو ګوتو خلالول دي .
۹- لاس ، مخ اوپښي دري واره پریمنځل دي .
۱۰- یوواري تول سریه مسح سره کښي ایستل دي .
۱۱- دغوږونو مسح کول دي که څه هم دسریه اوبوسره وي .
۱۲- دهراندام موښل دي .
۱۳- دیوه اندام څخه وروسته بل اندام پریمنځل دي .
۱۴- داوداسه نیت کول دي .
۱۵- اودس په ترتیب سره تازه کول دي .
۱۶- په راسته اندامونو باندي شروع کول دي .
۱۷- دمخ دخواڅخه دسرمسح کول دي .
۱۸- دغاړي مسح کول دي نه دحلقوم (دغاړي دمخ برخه) .
یادونه : ځینـي علمـاءکرام رحمة الله علیهم وروستني څلورسنتونه مستحب بولي .(۱)

## هغه شیان چي اودس ماتوي دوولس دي

۱۷۵) **مسئله** : ۱- هغه شي چي ددواړو لاروڅخه (مخ یاشا) څخه راووزي ، خوهغه بادچي دنارینه یاښځي دمخ دطرف څخه راووزي هغه اودس نه ماتوي .

۱- نورالایضاح صـ۳۲ مکتبه رشیدیه .- النتف في الفتاوای کتاب الطهارة فصل السنة صـ۱۸ مکتبه یوسفیه .- هدایه کتاب الطهارات وسنن الطهارات صـ۲۴ الومری توک مکتبه البشرای .- محیط البرهاني کتاب الطهارات الفصل الاول في الوضوء في بیان سنن وضوئه وادابه صـ۳۷ الومری توک مکتبه حقانیه

۲- د ښځې چې کوچنی پیداسي اووینه ورسره نه وي .

۳- د دواړو (مخ او شا) لارو څخه ماسیوا د بدن د هر ځای څخه چې داسي نجاست راووزي چې بهېږي لکه وینه یاژړي اوبه .

۴- قی وهل په ډکه خوله سره ، هغه که ډوډۍ وي ، اوبه وي ، توېته وینه وي یاژړ او صفراء وي (ډکه خوله ودې ته وایي چې خپله خوله نسي راټولولای مګر په تکلیف سره ، اوبل داچې د اجلاجلا قی هم سره جمع کېږي په دې شرط چې سبب یې یووي )

۵- وینې ، چې تر لاړو ډېري وي یا برابري وي .

۶- داسي خوب چې مقعد (د ډکوبولو دتلولار) یې پر مخکه نه وي پروت.

۷- لوړوالی د مقعد (د ډکویولو دتلولار) دي مخکې تر رابیداره کېدو څخه .

۸- بې هوښي ، یعني بې هوښه کېدل دي .

۹- جنون ، یعني لیونتوب دی .

۱۰- سکر یعني مستي ده .

۱۱- د دووفرجونو (د نارینه او ښځینه تناسلي الې) یوځای کېدل دي[۱]

۱- نورالایضاح ص ۳۶ مکتبه رشیدیه .- النتف في الفتاوای کتاب الطهارة باب نقض الوضوء ص ۲۱ مکتبه یوسفیه .- هدایه کتاب الطهارات فصل في نواقض الوضوء ص ۳۲ لومړی ټوک مکتبه البشرای

## داوداسه مکروهات

۱۷۶_ **مسئله** : په اوداسه کي لاندي شپږ شيان مکروه دي .

۱-په اوبو کي اسراف کول .

۲- په اوبو کي لږوالی کول .

۳- په مخ باندي په سختي سره اوبه اچول .

۴- په اوداسه کي دخلکوپه قسم خبري کول .

۵- دبل چاڅخه په اوداسه کي کومک غوښتل ،بيله عذره څخه .

۶- په نوو اوبو سره سر دريږ خله مسح کول .[1]

## داوداسه ادبونه

۱۷۷_ **مسئله** : لاندي خوارلس شيان داوداسه ادبونه دي :

۱- داوداسه لپاره پرلوړځای کښېناستل .

۲- داوداسه پروخت مخ پرقبله کښېناستل .

۳- په اوداسه کي دبل چا څخه کومک نه غوښتل .

۴- په اوداسه کي دخلکوپه رقم خبري نه کول .

۵- دخولي اوزړه نيت جمع کول .

۶- رانقل سوي دعاګاني ويل .

۷- پرهراندام باندي بسم الله ويل .

۸- کوچنۍ ګوته دغوږونو په سوريو کي وهل .

[1] نورالايضاح صـ۳۲مکتبه حنيفيه - النتف في الفتاوای کتاب الطهارة صـ۲۰مکتبه يوسفيه

۹- په ګوته کي پراخه ګوتمۍ بنوړول .
۱۰- په راسته لاس سره خوله پريولل .
۱۱- په چپه لاس سره پزه سوڼ کول .
۱۲- دوخت ترمخه اودس تازه کول .
۱۳- داودس وروسته کلمه شهادت ويل په ولاړه سره .
۱۴- داوداسه څخه پاته سوي اوبه په ولاړه سره څښنل اوپه اخيره کي دغه لاندي کلمات ويل .(اللّٰهُمَّ اجْعَلْنِيْ مِنَ التَّوَّابِيْنَ وَاجْعَلْنِيْ مِنَ الْمُتَطَهِّرِيْنَ ).([1])

## په قران عظيم الشان سره علاج

۱۷۸_ **مسئله** : دايوښکاره اوواضح دليل دی چي قرانکريم دټولو ناروغيودواده ، څکه الله ﷻ په خپل سپيڅلي کتاب (قران عظيم الشان ) کي فرمايي : قرانکريم شفاء (جوړوالی ) دی څکه رسول الله ﷺ په يوه مبارکه وينا کي داسي فرمايي : (من لم يستشف باالقران فلاشفاه الله ) يعني ، هرچاکه په قرانکريم سره شفاء پيدانه کړه ، نو الله ﷻ بيا هغه ته شفاء نه ورکوي همدارنګه په بل مبارک ارشاد کي راغلي دي چي سردار کونين محمدمصطفی ﷺ ارشاد کوي :(عليکم بالشائين العسل والقران ) پرتاسي دالازمه ده چي شفاء په دووشيانو سره پيداکړی چي هغه يو عسل اوبل قران دی .([2])

---

۱- محيط البرهاني کتاب الطهارات الفصل الاول في الوضوء اداب الوضوء ص ۴۶ لومړی توک مکتبه حقانيه - النتف في الفتاوای کتاب الطهارة ص ۱۹ مکتبه يوسفيه .
۲- تفسير روح البيان ص ۲۳۱ پنځم توک مکتبه القدوس . - تفسير المنير ص ۱۶۱ اتم توک مکتبه امير حمزه . - تفسير الکبير ص ۹۰ اووم توک مکتبه قاسميه .

اوس داخبره بايد په يادولرو چي ناروغي پردوه قسمه ده ، اول دول هغه ناروغي ده چي پټه ناروغي ورته وايي . اودوهم دول هغه ناروغي ده چي ښکاره ناروغي ورته وايي .

اول : پټه ناروغي يامريضي لکه په زړه کي شرک ( دالله ﷻ سره شريک نيول ) ، حسدکول ، عنادکول ، په زړه کي شک پيداکول ، پرزړه باندي پردي پيداکېدل ، منافقت کول ، کفرکول ، بده عقيده درلودل ، بداخلاقي درلودل ، بدفکرونه وهل اوداسي نور .[1]

دوهم : هغه قسم ناروغي ده چي ښکاره وي ، لکه په بدن پوري اړوند ناروغی چي وانسان ته په ځيني وختونو کي پېښيږي . داچي قرانکريم دپټوناروغيودوا ده اوکه دښکاره ؤ خوډيرعلماءکرام په دې اند دي چي قرانکريم ددواړو ناروغيو علاج دی او علامه الوسي البغدادي رحمه الله په تفسيرروح المعاني کي داسي ويلي دي : قرانکريم ددوی په استقامت او دنفسونو په اصلاح اوسمون کي دناروغيولپاره ددوا په شان دی ، نولکه څرنګه چي دوا دانساني ناروغيوليري کوونکي ده همداسي قرانکريم ددين په چارو کي داستقامت لامل دی ، اودبدني ناروغيودوا ده .[2]

---

۱- تفسيرالمنيرص۱۶۲ ۱اتم ټوک مکتبه رشيديه . - روح البيان ص۲۳۲ پنځم ټوک مکتبه القدوس . - تفسيرالکبيرص۳۹۰ اووم ټوک مکتبه قاسميه . - تفسيرالقرطبي ص۲۷۵ لسم ټوک مکتبه رشيديه . - تفسيرالمظهري ص۲۸۲ پنځم ټوک مکتبه علوم السلاميه .

۲- ( هوفي تقويم دينهم واستصلاح نفوسهم کالدواء الشافي للمرضي ) تفسيرروح المعاني ص۱۸۵ پنځلسم ټوک مکتبه رشيديه .

## داهل کتابو سره نکاح کول

۱۷۹ـ **مسئله**: په شريعت کې دټولو کافرانو په مقابل کي داهل کتابو سره دمسلمانانو اړيکو اوروابطو ته په يوه لحاظ يوډول ترجيح ورکړل سوې ده ځکه ددوی ذبيحه دمسلمانانو لپاره حلاله ګرځول سوې ده او ددوی له ښځو سره دمسلمانانو نارينه ؤ ته دنکاح کولو اجازه ورکړل سوې ده .[۱]

ځکه حضرت عثمان ﷛ ديوې عسايي (نائلې ښځي) سره نکاح کړېده چي وروسته بيامسلمانه سوه اوحضرت طلحه ﷛ هم دشام ديوې يهودی ښځي سره نکاح کړېده .[۲]

۱- ديوې مسلماني ښځي سره هيڅ عيسوي يا يهودي مذهبه نارينه نکاح نه سي کولای .

۲- بايدداسي اهل کتابوښځوسره نکاح وتړل سي چي پاک لمني اوعزتمني وي .

۳- داښځه به واقعاً عيسوي يايهودي وي يعني دالله ﷻ په وحي ،

۱ - محيط البرهاني في الفقه ونکاح الکتابيه يجوزللمسلم صـ۲۰۱ دريم ټوک مکتبه حقانيه - (واما الکتابيات اذاکن عفائف يستحقن هذالاسم لان الاحصان في کلام العرب عبارة عن المنع بدائع والصنائع کتاب النکاح صـ۵۲۳ دوهم ټوک مکتبه رشيديه .- (من الذين اتواالکتاب من قبلکم سورة المائده ايت ۵

۲ - وروي ان عثمان بن عفان ﷛ تزوج نائله بنت الفرافصه الکبيه وهي نصرانية وتزوجها على نسائه وروي عن طلحه بن عبيدالله ﷛ انه تزوج يهودية من اهل شام) احکام القران باب تزوج الکتابيات سورة المائده صـ۳۶۰ دوهم ټوک مکتبه دارالکتب .

درسولانو ﷺ په رسالت اوداخرت په ورځ به يقين لري اوکه چيري (دهري) وي يعني دتولوشيانونسبت (دهر)يعني زماني ته کوي اوخدای ﷻ نه مني يوازي په نامه عيسوي يايهودي وي نودهغې لپاره داحکم نه دی .

۴- په غيراسلامي هيوادونوکي ديهودی، ياهم عيسوی ښځي سره نکاح کول دځينوفقهاء رحمة الله عليهم په نزدحرامه ده اوداحنافوامام اعظم ابوحنيفه رحمه الله ، امام ابويوسف رحمه الله اوامام محمد رحمه الله په مذهب مکروه تحريمي ده .(۱)

خوپه اوسنی زمانه کي چي کومي عيسوی يايهودی ښځي دي په دوی کي اوس زنا ، فحاشي اوناروا اړيکي دومره ډيري دي چي په اورېدو يې مسلمانان شرمېږي اوپه بې حيايي کي خپل اوج ته رسېدلي دي يعني ترحيواناتو هم په بې حيايي کي مخ ته تللي دي اوبل داچي زيات اهل کتاب دخپلومذاهبوڅخه بېزاره دي اوداخرت څخه هم منکردي .

اوس ښکاره خبره ده چي دداسي خلکوسره به نکاح قطعاً حلاله نه وي اودقران عظيم الشان په اصطلاح کي دوی په اهل کتابوکي نه شميرل کېږي ، ددې پرته دغيراسلامي هيوادونوچي څه اهل کتابي ښځي دي دهغوی په هکله مخکي ذکروسو چي نکاح ورسره کول مکروه ده اوبله داخبره هم بايدوکړو که چيري په دوی کي داټولي

۱ - واصحابنا يکرهون مناکحات اهل الحرب من اهل الکتاب، احکام القران باب تزوج الکتابيات صـ۴۶۲ دوهم ټوک مکتبه دارالکتب .

خبري هم نه وي بياهم داهل کتابو ښځوسره نکاح کول دمکروه والي څخه خالي نه دي ځکه چي دمسلمانانو ، حکمرانانو اومشرانوچي اهل کتابي ښځي په نکاح کړي وي نوخپلو دندوته يې تاوان پيښ سوی دی او ددې نکاح په وجه دهغه ځای دمسلمانانو اخلاقي حالاتوته ډيرسخت تاوانونه رسېدلی دی .

دحضرت عمرفاروقؓ دخلافت په دوره کي دغسي تاوانونه پېښ سول ځکه دحضرت شقيق بن سلمةؓ څخه روايت سوی دی ، دی وايي چي : کله حضرت حذيفه بن يمانؓ مدائن نومي ځای ته ورسېدی نو هلته يې ديوې يهودۍ ښځي سره نکاح وکړه نوپه دې وخت کي چي عمرفاروقؓ خبرسو خط يې ورته وليکی چي دې ښځي ته طلاق ورکړه ، حضرت حذيفه بن يمانؓ په ځواب کي ورته وليکل ايا دا زما لپاره حرامه ده ؟

اميرالمؤمنين حضرت عمرفاروقؓ په ځواب کي ورته وليکل حرامه نه ورته وايم خوددې خلکويه ښځوکي عموماًپاکي اوپاک لمني نسته ځکه زه ډيرېږم چي ستاسي په کورنۍ کي ددې لاري څخه فحاشي داخله نسي .(١)

١ - (عن شقيق بن سلمة قال - تزوج حذيفه بيهودية فكتب اليه عمر ..... فكتب اليه حذيفه احرام هي ؟ فكتبه اليه عمرلاولكني اخاف ان تواقعوا المومسات منهن باحكام القران للامام ابي بكرالرزي الجصاص سورة المائده باب بزوج الكتابيات صـ٢٥٩ دوهم توک مکتبه دارالکتب .

## په لڅ سرلمونځ کول

۱۸۰_ **مسئله**: په اوس وخت کي په لڅ سره لمونځ کول رواج ګرځېدلی دی اومخ پرډېرېدو دی ، په اسلام کي خولۍ ، رخچينه ، پټکی اولنګوټه يوډول دتقوا داری علامه ده ، رسول الله ﷺ يوازي په يوه توکرکي هم لمونځ ادا کړی دی، خوکه يې چيري بيامونږ دبل وخت لمونځوته وګورو نو ويلای سو چي دغه کار به يې ديوعذرپه وجه کړی وي ، لکه چي ابواسحاق شاطبي ليکلي دي چي : ددغه کارکول درسم ، رواج اوعادت سره تړلی دی ، په هرهغه ځای کي چي سرپټول په يوه برخه ګڼل کېږي نوهلته بې له عذره څخه لڅ سر لمونځ کول مکروه دي ، فقهاء وايي : دسستۍ په وجه لڅ سرلمونځ کول مکروه دی ، که چيري عاجزي يې قصدوي بياڅه پروا نسته اوکه چيري دلمانځه رشخند يې قصد وي بياخوکفردی اوکه چيري رخچينه ولوېږي بياکه دعمل کثير(هغه عمل ته وايي چي نورخلک داسي فکروکړي چي داسړی لمونځ نه کوي ) پرته رخچينه پرسر کول ممکن وي نو په لمانځه کي دي يې بيرته پرسر کړي .(۱)

۱ - وصلاة حاسرا ای كاشفا راسه للتكاسل ولابأس للتذلل .... بها فكفر ولو سقطه قلنسوته فاعادتها افضل، ردالمحتار مايفسد صلوا ا صـ۳۷۲ لومړی توک مکتبه رشيديه .

## په طياره کي لمونځ کول

۱۸۱ـ **مسئله** : دمخکي په ډول په طياره کي هم لمونځ اداء کېږي غالباً ددغه لپاره شريعت يوازي کعبه شريفه خونه بلکي ددې دمخ تولي فضاء ته دقبلې درجه ورکړې ده چي دلوړو ځايوڅخه هم لمونځ اداء کولای سي،شيخ عبدالرحمن الجزيري مصري هم په طياره باندي د کښتۍ قياس کړی دی اوپه دې کي يې لمونځ صحيح ګرځولی دی . اوس پاته سوه داخبره چي سجده پرمځکه دتندي لګولونوم دی اوپه طياره کي داخبره نه وي نو داډول تکاليفات دشريعت سره سمون نه خوري دايوه باکل اتفاقي خبره ده : لکه څنګه چي عموماً پرمځکه دتندي لګولونوبت راځي نوځکه فقهاء رحمة الله عليهم دمځکي لفظ استعمال کړيدی دابلکل دغسي ده لکه څنګه چي يوسړی وايي ، دمځکي پرسرداسلام څخه بل هيڅ غوره دين نسته نو دِدې خبري څخه دا مطلب رايستل چي په سپوږمۍ يافضاء کي تردې بل غوره دين سته دابه څومره غلطه وي ، دشريعت اصلي منشاء داده چي داسي يو شی وي چي پرهغه باندي دانسان تندی تکيه سي لکه څنګه چي په کښتۍ کي دلمانځه داداء کولواجازه ورکړل سوې ده سره ددې چي دمځکي اوکښتۍ په منځ کي داوبو ډېره زياته فاصله وي څکه په طياره کي

داډول لمونځ اداءکول صحيح دي لکه څرنګه چي پرمخکه باندي صحيح دي.(۱)

### دلمانځه دشرطونو تشريح

۱۸۲ـ **مسئله** : لومړی شرط نيت کول : په دنيايي ژوندکي خلک دهر کارلپاره لومړی نيت کوي اوبياپه کارپيل کوي نوهمدارنګه دلمانځه لپاره نيت کول ضروري دی نيت په زړه پوري اړه لري ، ټينګه اراده دعبادت نيت بلل کېږي په خوله ويل شرط نه دی خوکه وويل سي ښه کاردی ، په نيت کي دفرض ، واجب ، وقتي او قضايي لمونځ ټاکل ضروري دی ، که چيري څوک په جماعت سره لمونځ کوي نوبياپه امام پسي دمتابعت نيت کول هم په کاردی ، په پام کي بايدولروچي دنيت اوتکبيرتحريمي په منځ کي به ديوکارپه کولو سره جلاوالی نه کوي ، دمثال په ډول يوڅوک دلمانځه لپاره نيت وکړي بياشاوخوا ګوري يايوچاته ورږغ کړي يايوبل داسي کار وکړي چي سړی فکرکوي چي داسړی به لمونځ نه کوي.(۲)
دوهم شرط دعورت پټول : دانسان په بدن کي ځيني داسي برخي دي چي بايد له بل انسان څخه پټي وساتل سي اودهغوبرخوپټول

---

۱ - محيط البرهاني في الفقه النعماني کتاب الصلاة الفصل الرابع والعشرون في الصلاة في السفينة صـ۱۲۲دوهم توک مکتبه حقانيه .

۲ - کنزالدقائق صـ۱۲لومړی توک مکتبه رشيديه . - خزانة الفقه صـ۵۵لومړی توک . - الايضاح في شرح الاصلاح صـ۹۱لومړی توک . - هدايه کتاب الطهارات باب شروط الصلاة التي تتقدمهاصـ۱۷۷لومړی توک مکتبه البشرای .

فرض دي ، د نارينه دعورت اوښځي دعورت برخي فرق سره لري.
د نارينه عورت له زنګنونو څخه نېولې بياترنامه پوري عورت دی ، زنګنونه هم په عورت کي دي، ليکن نو(ناف) عورت نه دی .
دښځي عورت : دښځي ټول بدن عورت دی حتی دسرټوله وېښتان يې هم عورت بلل کېږي خولاسونه (خپري) مخ اوپښې يې تر بجلکو پوري عورت نه دي البته په لمانځه کي ، که چيري داسي نازکي جامې واغوندي چي دبدن رنګ يې معلومېږي اوداسي نازک پوړنی پر سر کړي چي دوېښتانورنګ يې معلومېږي نولمونځ يې فاسددی ، همدارنګه هغه اندامونه چي عورت، بلل کېږي که نروي اوکه ښځه څلورمه برخه يې ښکاره سي نولمونځ يې فاسد دی .[1]
دريم شرط اودس کول : په پاکواوبوسره اودس تازه کول ياپه پاکه خاوره سره تيمم وهل دلمانځه لپاره شرط بلل کېږي ، پاکي اوبه هغو اوبو ته وايي چي په خوند ، رنګ اوبوی کي يې تغيرنه وي راغلی، که چيري اوبه نه وي نوبيادي په پاکه خاوره سره تيمم ووهي
څلورم شرط قبلې ته مخامخ درېدل : په دې اړه بايد لاندي ټکي په پام کي ونيول سي :
الف - په هرلمانځه کي (وقتي ، قضايي ، نفلي ، فرضي ، دجنازې ، داخترونو ، دکسوف اوخسوف (لمر اوسپوږمۍ نيولو) اوسجده تلاوت ) قبلې ته مخامخ کېدل دلمانځه له شرايطو څخه يوشرط دی

١ - هدايه کتاب الطهارات باب شروط الصلاة صـ١٧٢ الومړی توک مکتبه البشرای .

خـکه الله ﷻ په قرانکريم کي قبلي ته دمخاخ کېدلوامرکړی دی [1]

ب - که له يوچاسره ددښمن يايووحشي حيـوان بيره وي نـو هرلورتـه چي دده زړه ارام کوي نو هغه لور دده قبله ده .

ج - ناروغ چي داتـوان ونه لري چي مخ قبلي تـه کړي اولمـونځ اداء کړي ياداسي څوک پيدانه سي چي دده مخ قبلي تـه ورواړوي نـو هـر لورته چي مخ واړوي دده لپاره قبله ده .

د - کـه ديوچاڅخـه قبلـه ورکـه سـي اودومـره څـوک هـم نـه وي چـي پوښتنه ورڅخه وکړي نوفکردي وکړي چي هرلوري ته دده رايه ډيره وي هغـه لـوري تـه دي ودرېـږي اولمـونځ دي وکـړي ، کـه چيـري دلمانځه په منځ کي يوچادقبلي لوری ورته وښوده نو په هغه لمانځه کـي دي خپـل مـخ هغـه لـوري تـه وګرځـوي يـاداچي دلمانځـه څخـه وروسته يوچاقبلـه ورتـه وښـوده اودی پـوه سـوچي لمـونځ يې دقبلي لـوري تـه نـه دی کړی نولمـونځ راګرځول نـه غواړي هغه لمونځ يـې صـحيح دی ، کـه چيـري يوداسـي څـوک ورسـره وُ چـي بلـدتيايې درلوده نوبيـاده تـه فکرکول جواز نـه لري بلکي کي دهغـه څخـه بـه پوښتنه کوي .[2]

---

۱ - سورة البقرة ايت ۱۴۴ .

۲ - فقه الاسلامي وادلته صـ۷۲۸-۷۲۹-۷۳۸-۷۵۷-۷۵۹-۷۷۲ لومړی ټوک مکتبه فريديه . - مبسوط للسرخسي صـ۲۸۸-۲۸۹ لومړی ټوک مکتبه الغفاريه . - ردالمحتار صـ۲۹۶ لومړی ټوک مکتبه رشيديه . - فتح القدير صـ۲۱۸ لومړی ټوک مکتبه رشيديه . - عالمګيري صـ۵۱-۶۴ لومړی ټوک مکتبه رشيديه . - کنزالدقائق صـ۲۰ لومړی ټوک مکتبه رشيديه . هدايه صـ۸۷-۸۸ لومړی ټوک مکتبه رشيديه . - فقه على المذاهب الاربعه صـ۱۵۷ لومړی ټوک مکتبه وحيدي کتب خانه . - خزانة الفقه صـ۵۵ لومړی ټوک .

## دقيامت نښانې

۱۸۳ـ **مسئله**: دحضرت حذيفه ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: قيامت ته نژدې به ځيني خبري مخ ته راځي چې په لاندې ډول دي:

۱- خلک به لمونځ خراب کوي يعني لمونځ به يې نه وي زده او يا م به نه ورته کوي.

۲- په امانت کي به خيانت کوي.

۳- سود به خوړل کېږي (سود هغه ګناه ده چي هغه کمه درجه يې له مورسره دزناسزاده).

۴- درواغ به داسي ډيروي لکه روا چي وي.

۵- په کوچنيو کوچنيو خبرو به خلک يو له بل سره وژني.

۶- جګي جګي اوغټي غټي بنګلې به جوړيږي.

۷- خلک به خپل دين خرڅوي او دنيا به راټولوي.

۸- صله رحمي به له منځه ولاړه سي يعني له خپلوانو سره به ناروا سلوک کېږي.

۹- په هيڅ شي کي به انصاف نه وي.

۱۰- درواغ به رښتيا ګڼل کېږي، لکه اوس چي خلک وايي ((ته وا درواغ په بيه دي.

۱۱- خلک به وريښمني جامې اغوندي.

۱۲- ظلم به په عام ډول وي.

۱۳- ښخوته به ډیر طلاقونه ورکول کېږي.
۱۴- ناڅاپي مرګونه به ډیر وي.
۱۵- خیانت کوونکی به امین ښکاره کېږي.
۱۶- دامانت ساتونکي به خاینان ښکاره کېږي.
۱۷- درواغجن به رښتیني ښکاره کېږي او رښتیني به دراغجن.
۱۸- یو په بل باندي به تهمت لګول کېږي.
۱۹- باران به اوري خو بیا به هم ګرمي وي.
۲۰- خلک به تر اولاد په نه اولاد کولو خوشحاله وي.
۲۱- بدخلک به په ښه شوق سره ژوند کوي.
۲۲- شریف خلک به خپل شرافت له ځان سره واخلي ، کښېي به ني اوله دنیا څخه به ګوښه سي.
۲۳- امیران او وزیران به درواغ وایي.
۲۴- عالمان او قاریان به هم بدبد کارونه کوي.
۲۵- خلک به دحیواناتو دځرمنو جامې اغوندي یعني ښې ښې جامې به اغوندي خو زړونه به یې خراب وي.
۲۶- ترخوږو به ترخه زیات وي.
۲۷- سره زر به عام سي.
۲۸- سپین زر به خلک ډیر رانیسي.
۲۹- خلک به ډیري ګناوي کوي.
۳۰- امن به لږ وي.

۳۱- د قرانکریم نسخې اوچاپ به بښایسته کېږي اوپه نقش اونګار سره به جوړېږي .
۳۲- مسجدونوته به لوړي لوړي مناري جوړېږي .
۳۳- مسجدونه به په نقشونوباندي جوړېږي .
۳۴- :خلکوزړونه به مړه وي .
۳۵- خلک به په عامه توګه شراب څښي .
۳۶- شرعي سزاوي به مستحقینوته نه ورکول کېږي .
۳۷- خپله موربه خلک دمینځي په شان استعمالوي .
۳۸- کمزوري اوپه نسب کښته خلک به پاچاهان وي .
۳۹- په تجارت کي به نارینه اوښځي سره ګډي وي اوپه ګډه به تجارت کوي
۴۰- نارینه به دښځوپه شان ځانونه جوړوي .
۴۱- ښځي به دنارینه په شان ځانونه جوړوي .
۴۲- په درواغو به شاهدي ورکوي .
۴۳- یوازي به شناخته خلکوته سلام اچول کېږي .
۴۴- ددین ځخه ماسیوابه نورعلوم زده کېږي .
۴۵- خلک به په غیرالله ﷻ دنامه سره قسم کوي «دخداي ﷻ نوم به نه یادوي په نورونومونواوشیانوسره به قسم کوي» .
۴۶- داخرت په کارسره به دنیاګټل کېږي .
۴۷- زکات به جرمانه بلل کېږي .

۴۸- ښځه چې هر څه وايي هغه به منل کېږي.
۴۹- دسندرغاړو ښځو به ډېر عزت کېږي.
۵۰- ظلم به فخر ګڼل کېږي.[۱]

## دالرحمن کلمې معنی او ځانګړتياوې

۱۸۴_ مسئله : د(الرحمن) صفت يوازې دالله ﷻ ځانګړی صفت دی اوديل چالپاره يې کارول روانه دي ، معنی يې ده (ډېر مهربان او ډېر ښه رحم کوونکی) ددغه صفت شپږ ځانګړتياوي دي :
۱- که څوک دغه نوم دهرلمانځه وروسته سل (۱۰۰) ځله ووايي نودده دزړه څخه بې خبري ، هيره به يې ليرې سي اوپه دنيايي معاملاتو کې به کټه ورته ورسوي .
۲- ددغه نوم ويونکی به له هره غم اوناوړه کار څخه په امان وي .
۳- که دغه نوم پر کاغذ باندې وليکل سي اوپه اوبو باندې يې دم اوهغه اوبه دتودې تبې ناروغی په وخت کې وڅښي انشاءالله هغه ناروغي به جوړه سي .
۴- هرڅوک چې سهار دلمانځه وروسته دغه نوم (۹۸) واره ووايي خدای ﷻ به پرهغه رحم وکړي .
۵- هرڅوک چې تر (۴۱) ورځو پورې (۴۱) واره (يارحمن الدنيا والاخرة ويارحيم الدنياوالاخرة) ووايي انشاءالله دهغه رواحاجت به يې پوره سي .

۱- درمنثور ص۲ ۵- ۶۰ په حواله اصلاحي خطبات ص۲۱۲-۲۲۰ اووم ټوک.

۶- هرڅوک چي يوظالم پاچا ته ورځي اويارحمن يارحيم ووايي ، خدای ﷻ به هغه ددغه ظالم پاچا له ظلم څخه وساتي اوخدای ﷻ به خيرورته پيښنوي .(۱)

## دفجر(سهار) دلمانځه اهميت

۱۸۵_ **مسئله** : حضرت جندب ﷺ بيان کوي چي حضرت محمد ﷺ ويلي دي : هغه څوک چي دفجرلمونځ اداءکوي هغه دالله ﷻ په امان کي دی .(۲)

لمونځ داسلام دمبين دين ستون فقرات اواساسي رکن ګڼل کيږي دپنځه وختـه دلمونځواداکول مهم دي خودفجر لمونځ ډيـر اهميت لري ، سهاروختي هغه وخت چي سړی دشيرين خوب په غيږکي ارام پروت وي ، په دغه وخت کي له بسترڅخه پاڅيدل په سړي باندي ډيرسخت تماميږي ، خويومؤمن مسلمان چي کله دفجرله اذان سره دالصلاة خيرمن النوم (لمونځ بنه اوبهتره دی له خوب څخه) الفاظ په غوږونـوواوري او بياسمدسـتي دالله اکـبراو لااله الاالله پـه ويلوسـره دخوندورخوب لـه خوندڅخه تيريږي اولـه بسترڅخه راپاڅيږي ، بياخي اودس کوي اوپه اودأسه دجماعت په لوري روانيږي او بيا هلته په جماعت کي په جماعت سره لمونځ اداکوي ، په دغـه وخت

۱ - درة المتفرکه کتاب صـ ۵۳۲ .
۲ - مرقات المفاتيح شرح المشکراة کتاب الصلاة باب فضيلة الصلات صـ ۳۲۱ دوهم ټوک مکتبه رشيديه .

کې دامؤمن مسلمان دخدای ﷻ په پناه کې راځي اوالله ﷻ له رحمت څخه برخورداره کېږي اوبيايې تولـه ورځ دخداى ﷻ په نګهباني کې تېرېږي .

دېومسلمان لپاره داځومره ستره خوشبختي اونیکمرغي ده چې ورځ دخپل پالونکي په پناه اوامان کې راپيل اوبياپاى ته رسوي . له دې برعکس هغه کس چې دشپې ترناوخته ناست وي ، دتلويزون دبې معنی پرګرامونوپه ليدوکې تقريباًورباندې سهار سي بيا تلويزون ته په کتو ورباندې خوب غلبه وکړي اوبيده سي ، له بيديدو څخه دمخه نه دالله ﷻ نوم په خوله اخلي اونه دعاکوي ، ددې کارنتيجه داده چې شيطان په ده باندې غلبه پيداکوي اونه يې پرېږدي چې له ارام خوب څخه دلمانځه لپاره راپاځيږي ، شيطان ورته په زړه اودماغ کې وسوسې پيداکوي او ورته وايي چې شيرين خوب دې مه خرابوه ، خوب دې پوره کړه ، لمرراخيژي خودى همغسې په بستر کې بې پرواپروت وي بياکله چې راپاڅيږي نو دوجودسستيااحساسوي ، خپل وجدان اوضميرته هم ملامت وي خداي ﷻ دداسي بې پروابنده پروانه کوي اوهيڅکله يې په خپل امان احفاظت کې نه ساتي .

هغه مسلمان چې دسهارلمونځ اداکوي هغه تل دالله ﷻ په امن کې وي ، دهغه طبيعت تل تراوتازه وي هغه دخپل ضميراووجدان په وړاندې دملامتی احساس نه کوي ، هغه ته خداي ﷻ جنت په

نصيب کوي اوله جهنم څخه ورته نجات ورکوي ، دسهاردلمانځه اداءکوونکی دالله ﷻ په ديدارمشرف کېږي . اوس که څوک دسهارلمونځ نه اداءکوي نو دی به له پورتنيوخوشبختيوڅخه بې برخې پاته وي اوداڅومره دافسوس خبره ده چې څوک پخپله اوله خپله لاسه دالله ﷻ له حفظ اوپناه څخه محروم پاته سي .

دلمانځه داداءکولولپاره پيسوته کوم ضرورت نسته ، دلمونځ داداء کولو لپاره واسطې ته ضرورت نسته ، په غريب اوبډای په زوړ ، ځوان ،ناجوړه په ټولو مسلمانانولمونځ فرض دی ، دلمانځه قضاء کول په هيڅ صورت اووخت کې روانه دي .

ډيرداسي مسلمانان سته چې په ساعتوساعتوتلويزون ته ناست وي ، فلمونه ګوري دفټبال ، کرکټ يانورو لوبو تماشه کوي ، خوکله چې دلمانځه وخت راورسېږي دلمانځه لپاره اذانونه هم وسي خو دوی له ځايه نه پاځېږي ، لمونځ ورڅخه قضاءسي اودوی لاهم هغسې ناست وي ، داسي مسلمانانو ته ښايي چې دغفلت له خوبه رابيدارسي او دااحساس وکړي چې دوی دلمانځه په اداءکولوکې له کوتاهي څخه کاراخلي ، دوی بايدپه دې حقيقت ځانونه خبرکړي چې لمونځ په هر مسلمان فرض دی . دوی ته ښايي چې پنځه وخته لمونځونه اوپه خاص ډول دسهارلمانځه داداء کولولپاره پوخ عزم

اوپخه اراده وکړي ، دوی باید دشپې وختي بیده سي اوسهار وختي دلمانځه داداءکولولپاره له خوبه راوپاڅیږي .(۱)

## داوداسه فضائل

۱۸۶ـ **مسئله** : حضرت عثمان ﷺروایت کوي چي رسول الله ﷺ وفرمایل : چاچي په ښه ډول اودس تازه کړ دبدن څخه یې کوچني ګناهـونه اوخـطاوي وزي ، حتی دنوکانودلاندي څخه یې هـم خطاوي وزي .(۲)

حضرت ابوهریرة ﷺ روایت کوي چي سرورکائنات ﷺوفرمایل : کوم ؤخت چي مؤمن اودس کوي دمخ دپریوللوسره به یې هغه ګناهونه چي په سترګویې کړي وي ، دلاسونودپریوللوسره به یې هغه ګناهونه چي په لاسونویې کړي وي اودپښودپریوللوسره به یې هغه ګناهونه چي په ورتګ سره یې کړي وي ورته وبخښل سي حتی دکوچنیوګناهونوڅخه به پاک سي .(۳)
همدارنګه په یوه بل مبارک ارشاد کي روایت کوونکی یې حضرت ابوهریرة ﷺدی ، رسول الله ﷺداسي فرمایلي دي : زماامت بـه دقیامت پـه ورځ نامداره وي پـه سپین مخ ،سپینولاسونو اوسپینو

۱. مشکواة المصابیح کتاب الصلاة باب فضائل الصلاة صـ۲۱۱ لومړی ټوک مکتبه البشرای
۲. مشکواة المصابیح کتاب الطهارة الفصل الاول صـ۲۵۹ لومړی ټوک مکتبه البشرای.
۳. مشکواة المصابیح کتاب الطهارة الفصل الاول صـ۲۵۹ لومړی ټوک مکتبه البشرای.

پښويانديي چي داداوداسه دښښوڅخه دي ، په کارده چي دمخ په پريوللو، لاسونواوښپوپريوللو کي ډيرزيات کوښښ وکړو .(١)

## ددعادقبول شرطونه

١٨٧ـ **مسئله** : ددعادقبول لپاره درې شرطونه دي :

لومړی - دحراموڅخه ځان ساتل .

دوهم - دزړه له اخلاصه دعاکول .

دريم - په دعاکي ډيرکوښښ کول .

څکه په حديث شريف کي رسول الله ﷺ فرمايلي دي : داچي څوک ډيراوږد سفروکړي اووبرخيرن سر(يې وي)، لاسونه داسمان خواته پورته کړي اوپه يارب يارب سره دعاکوي اودده خوراک ، لباس اوڅښاک حرام وي نوکله دده دعاقبلېږي .(٢)

رسول الله ﷺ فرمايي : تاسي هغه وخت دعاکوی چي دقبول يقين مو وي څکه الله ﷻ دهغه چادعانه قبلوي چي ددعاپه وخت کي يې زړه غافله (ناخبره )وي .(٣)

همدارنګه درسول الله ﷺ په يوه بله وينا کي راځي چي وايي : په

١ - مشکواة المصابيح کتاب الطهارة الفصل الاول ص٢٣٦لومړی ټوک مکتبه البشرای .- فيض القديرشرح الجامع الصغيرمن احاديث البشروالنذيردحديث شريف نمبر١٦١٩ص ٢٣٢دوهم ټوک مکتبه دارالکتب العلميه بيروت لبنان

٢ - تفسيرالمظهري سورة المومن ايت ٦٠ص ٢٧٢اتم ټوک مکتبه علوم اسلامية .

٣ - مرقات کتاب البيوع دحديث نمبر٢٧٦٠ص ٨شپږم ټوک مکتبه رشيديه .- تفسيرالمظهري سورة المومن ايت ٦٠ص ٢٧٢اتم ټوک مکتبه علوم اسلاميه .

دعاګي دزړه عزم (قصد) اورغبت (مينه) دزړه سره ملګري کوي: داسي به نه واياست چي الله ﷻ ماوبخښه که ستاخوښه وي خکه پرالله ﷻ هيڅ يوکارنه درنيږي. (١)

## دبداخلاقه خاوندخخه دپناه غوښتلودعا

١٨٨_ **مسئله**: اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعُوْذُبِكَ مِنْ خَلِيْلٍ مَاكِرٍعَيْنَاهُ تَرَيَانِيْ وَقَلْبَهُ يَرْعَانِيْ اِنْ رَاٰي حَسَنَةً دَفَنَهَاوَاِنْ رَاٰي سَيِّئَةً اَذَاعَهَا. (٢)

## دخوب خخه دراويښيدودعا

١٨٩_ **مسئله**: ١ - اَلْحَمْدُلِلّٰهِ الَّذِيْ اَحْيَانَا بَعْدَمَااَمَاتَنَاوَاِلَيْهِ النُّشُوْرُ. (٣)

٢-اَلْحَمْدُلِلّٰهِ الَّذِيْ عَافَانِيْ فِيْ جَسَدِيْ وَرَدَّعَلَيَّ رُوْحِيْ وَاَذِنَ لِيْ بِذِكْرِهٖ. (٤)

## دکالواغوستلودعا

١٩٠_ **مسئله**: اَلْحَمْدُلِلّٰهِ الَّذِيْ كَسَانِيْ هٰذَاالثَّوْبَ وَرَزَقَنِيْهِ مِنْ غَيْرِحَوْلٍ مِنِّيْ وَلَاقُوَّةٍ (٥)

١-تفسير المظهري سورة المؤمن ايت ٦٠ صـ ٢٧٢ مکتبه علوم اسلاميه.
٢-جامع الصغير للسيوطي ﷫ صـ ٥٦ لومړی توک.
٣-عمدة القاري شرح البخاري کتاب الدعوات صـ ٢٣١ دوويشتم توک مکتبه رشيديه - المصنف لابن ابي شيبه کتاب الاداب صـ ٥٠٠ دريالسم توک مکتبه المجلس العلمي بيروت لبنان - فتح الملهم شرح المسلم کتاب الذکروالدعاءوالتوبة والاستغفار صـ ٣٣٥ يوولسم توک مکتبه دارالاحياء التراث العربي
٤-جامع الترمذي ابواب الدعوات صـ ٦٥١ دوهم توک مکتبه رحمانيه.
٥-سنن ابوداود کتاب اللباس صـ ٨٥٨ دوهم توک مکتبه رشيديه.

## دډاکټرکتل وښځي ته روادي

۱۹۱ـ **مسئله** . داچي وډاکټرته دمریضۍ په وخت کي دښځي دکوم کوم ځايونو ښکاره کېدل روادي ، نوحنيفي فقهاء رحمهم الله وايي چي بيله دې چي مرګ اويا ډيرسخت مرض پېښ نه وي ، ډاکټرته اجازه نسته چي دمریضي ښځي وخاص (تناسلي) اندام ته وګوري اوعلاج يې وروکړي ، اوکه چيري داسي مشکل وي چي بيله نارينه ډاکټر څخه بله لاره نه وي نوبيانارينه ډاکټرته اجازه ده چي دمریضي ښځي علاج ورورکړي ، ليکن ترڅپله وسه پوري بايدکوښښ وکړي چي دعلاج اوزخم دځای څخه ماسېوابل ځای ته فکر وانه روي ، ځکه دفقهي دمعتمدكتاب درالمختارملاصاحب وايي چي ، دډاکټرصاحب لپاره يوازي وهغه ځای ته کتل روادي چي دعلاج په وخت کي کتل ورته ضروري وي ، ځکه په دغه کتلوسره ضرورت پای ته رسېږي .

ښه خبره خوداده چي ديوې ښځي تشخيص بله ښځه وکړي ځکه څوک چي دخپل جنس وعورت (تناسلي اندام) ته ګوري ترهغه چي دبل جنس وعورت ته ګوري په ګناه کي سپکوالی لري ، ابن عابدين رحمه الله دجوهرة النيرة كتاب څخه نقل كوي چي ، كه چيري مرض دبدن په مختلفوځايونو کي وي ، په دې وخت کي وډاکټرته اجازه ده چي ودغه مریضي ښځي ته وګوري اوتشخيص اوتداوي يې وکړي ، ځکه داده ضرورت ځای دی اوکه چيري مرض دښځي

په خاص اندام (تناسل) کي وي نوبيا بنه خبره داده چي د دغي مريضي ښځي علاج يوازي ښځه وکړي ، او که چيري ښځينه ډاکتره نه پيدا کېدله او يا پردې ببره وه چي مريضه به هلاکه او مره سي نو بيا د نارينه ډاکټر لپاره اجازه سته چي دهغې تداوي وکړي او هغه به يې داوي چي يوازي د مريضي ښځي د زخم ځای ته وګوري او د نوربدن څخه يې سترګي وساتي .([1])

او که فرضاً غير له قصد څخه ديوه سړي نظر پر نابلده ښځي ومښلي ، نو پردې شخص باندي لازمه ده چي ډير ژر خپلي سترګي بيرته واړوي څکه د رسول الله ﷺ څخه دا خبره ثابته سوې ده چي جرير بن عبدالله البجلي رضي الله عنه يې روايت کوي چي د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وسوه چي که چيري ناڅاپه ديوچا نظر پر يوې ښځي باندي ومښلي نو څه به کوي ؟ نو حضور ﷺ ورته وفرمايل : سمدستي دي بيرته خپلي سترګي ور څخه واړوي ، او په بل حديث شريف کي راځي چي دبريدة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وامير المؤمنين حضرت علي رضي الله عنه ته وفرمايل :چي ای حضرت علي رضي الله عنه! په اول نظر پسي دوهم وارنظر مه جمع کوه ، څکه اول نظر ستالپاره روادی ، ليکن دوهم نظراو کتل ستالپاره نسته يعني (که دي يووار و يوې ښځي ته وکتل دوهم وارمه ورته ګوره ) ([2])

او که چيري بيا دغه شخص خپل ځان په امن کي نه ليدی نو بيا دده

١ - فقه الحنيفي في ثوبه الجديد في مداوة الطبيب للمرأة صـ٢٢ دوهم ټوک مکتبه حقانيه .
٢ - فقه الاسلامي وادلته صـ٢٦٥١ څلورم ټوک مکتبه فريديه .

لپاره په کار ده چي بيله ضرورت څخه ورته ونه ګوري ، اوکه چاخپل خان نه سوای ساتلای نوبيادده لپاره ونابلده ښځي ته کتل حرام دي ، نواوس زمونږ په زمانه کي دالازمي خبره ده چي ونابلده ښځي ته چي ځوانه وي کتـل حرام دي اوداځکه چي پـه حديث شريف کي راغي چي سترګي زناکوونکي دي او ددوی زناونابلده ښځوته کتـل دي اولاسـونه زنـاکوونکي دي اوددوی زنـاټينګول دي . اود شـخص لپاره دشهوت اندازه دتناسلي الې حرکت اولوړوالی دی .([1])

## دلړم چيچلولپاره دعا

۱۹۲_ **مسئله** : دابي صالح ﷺ څخه روايت دی چي لـړم دانصارو څخه يوسړی وچيچی نوځه وخت چي سهار سو ورسول الله ﷺ ته راغی او انصاري ورته وويل چي برايي شپه دلړم دچيچلو څخه ټوله شپه وېښ وم ، نورسـول الله ﷺ ورتـه وفرمايـل : کـه چيـري تادغـه لاندي کلمات دشپې ويلي وای نوبيا تـه تاتـه دلړم دچيچلـو پـه وجه ترسهار پوري تکليف نه وای رسېدلی : (اعوذبكلمات الله التامة من شرماخلق ) نوابوصالح ﷺ وايي مادغه کلمات وخپـل زوی اولورته وروښـودل (نوبيـادوی چي څـه وخت لـړم وچيچـل نـوپي تکليـف او ضررنه ور ورسوی) .([2])

---

۱ - فقه الاسلامي وادلته صـ۲۶۵۲خلورم ټوک مکتبه فريديه .

۲ - (ابي صالح قال فدغ رجل من الانصار....فلم يضرهماشي ) المصنف لابن ابي شيبه کتاب الدعاء صـ۲۷۵پنځلسم ټوک مکتبه المجلس العلمي بيروت لبنان .

## ددوږخ څخه ځان ساتل او جنت ته داخلېدل

۱۹۳_ **مسئله** : دانس بن مالک ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : نسته یوبنده چي د الله ﷻ څخه دي دري واره دجنت غوښتنه وکړي ، مګرنه چي جنت وروايي یاالله ﷻ دغه بنده وجنت ته داخل کړه ، اونسته یوبنده چي په الله ﷻ سره دي دري ځله پناه وغواړي ددوږخ داوره څخه مګر نه چي ددوږخ اوروروايي یاالله ﷻ دغه بنده زما څخه وساته .(۱)

## څه وخت چي دچرګ اواز واورئ

۱۹۴_ **مسئله** : درسول الله ﷺ څخه روایت دی : څه وخت چي دچرګ اواز واورئ نوالله ﷻ څخه دفضل سوال کوئ ، ځکه چرګ ملائکه ﷩ ویني ، اوڅه وخت چي بیا دخره اواز واوری نو په الله ﷻ سره پناه وغواړی دشیطان څخه ، (اعوذبالله من الشیطان الرجیم) وواياست خربیاشیطان ویني .

دجابربن عبدالله څخه روایت دی چي مادرسول الله ﷺ څخه واوریدل چي ووېي ویل : که چیري تاسي دسپي یاخره اواز واوری نو په الله ﷻ سره پناه وغواړئ (اعوذبالله) وواياست ځکه دوی هغه شیان ویني چي تاسي یې نه ویني .

---

۱- المصنف لابن ابي شيبه كتاب الدعاء صـ۲۸۰ پنځلسم ټوک مكتبه المجلس العلمي بيروت لبنان . - تحفة الاحوذي شرح الجامع الترمذي كتاب صفة الجنة دحديث نمبر ۲۵۷۲ صـ ۳۲۱ اووم ټوک مكتبه قديمي كتب خانه .

حضرت عطاء رحمه الله وايي څه وخت چي ابن عباس رضي الله عنه دخره اواز واورېدی نولاندي کلمات به يې ويل :بسم الله الرحمن الرحيم اعوذبالله السمیع العليم من الشيطان الرجيم .(۱)

اوهمدارنګه دعطاء رحمه الله په بل روايت کي راځي چي وايي : کله چي دکوم مشکل په اساس نارينه اوښځه په يوه قبر کي ښخوی نو اول نارينه اوبيا ښځه کېښېږدی .( عن عطاءقال اذادفن الرجل وامرة ....قدم الرجل امام المراة ) .(۲)

## شتمني دنفس ده

۱۹۵ـ **مسئله**: دابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : شتمني ددېر مال په وجه نه ده بلکي شتمني دزړه ده . (ليس الغنى عن کثرة العرض .... غنى النفس ) .(۳)

## دحضرت رابعه بصريه رحمة الله عنها تقوای اوپرهيزګاري

۱۹۶ـ **مسئله** : دحضرت رابعه بصريه رحمة الله عنها څخه چي داولياء الله څخه وه يوچاپوښتنه وکړه : دخدای ﷻ دطلب لارتاته څنګه په لاس درغله ؟ ددې پوښتني په ځواب کي هغې وويل چي زه د اوو کلونو ومه چي په بصره کي وچکالي راغله زماپلاراومورد واړه مړه سوه او

۱ - المصنف لابن ابي شيبه کتاب الدعاء ص۳۷۸ مکتبه المجلس العلمي بيروت لبنان .
۲ - المصنف لابن ابي شيبه کتاب الدعاء ص۳۰۰ پنځلسم ټوک مکتبه المجلس العلمي بيروت لبنان .
۳ - عمدة القاري شرح البخاري کتاب الدعوات ص۸۳ درويشتم ټوک مکتبه رشيديه .

ماته رابعه په دې خاطر وايي چې زمادرې خوندې نورې هم وې
غلورمه يې زه ومه او هغه سره جلاسوې اوپه عربي ژبه کې وڅلورمې
ته رابعة وايي. بيازه ديوظالم لاس ته ورغلم هغه زه په شپږدرهمه
خرڅه کرم هغه چې زه يې رانيولې وم هغه زما څخه ډېر ګران
کاراخيستی ، يوه ورځ زه ديو لوړبام څخه راولوېدم اوزمالاس مات
سو ، نوپه دې وخت کې ماخپل مخ پرمځکه باندې کېښېښوی او
داسي عرض مي وکړی چې ياخدايه ﷻ زه يوه يتيمه نجلۍ يمه
ديوظالم سړي سره بندي يم پرماباندې رحم وکړه ، زه ستا رضا
غوارم ، که چيري ته زما څخه راضي يې نوبيازه هېڅ فکرنه کوم ،
ددې خبرې په خواب کې مايوږغ واورېدی چې ای ضعيفي غم خوره
څکه چې سبا به ته داسي مرتبې ته ورسېږې چې داسمان نزدې
مخلوق به هم تاپېژني ، نوله دې وروسته زه دخپل باداركورته
ولاړمه نوماپه روژوباندې پيل وکړی اودشپې به يوكونج ته ولاړمه په
خپل عبادت به اخته سوم ، يووارمي په نيمه شپه کې دخدای ﷻ
څخه ددعا غوښتنه وکړه اودامي وويل : خدايه پاکه ﷻ ته خو خبر
يې چې زما دزړه غوښتنه خوستادامرسره په منلوکي ده او زما د
سترګو رڼاستاپه خدمت کولو کي ده اوته خوزماپه نيت باندې خبر
يې ، که چيري زماپه ذمه دمخلوق خدمت نه وای نويوګړی به هم
ستا دعبادت څخه بې غمه سوې نه وای ، خوتازه ديوه مخلوق په
لاس بندي کړې يم ، مادادعاکوله چې زماباداد زماپرسرباندې يو د

نور څراغ بېله څنځيره راځړېدلی وليدی چې دغه په سبب سره ټوله کور په رڼا سوی ؤ دوهمه ورځ زمابادار زه وروغوښتلم اوزمايې دېرخدمت وکړی اوزه يې ازاده کړم ، بس نوماهم دغه څخه اجازه راواخيسته اودباندي راغلم اوديوې ويراني لار مي ونيوله چې هلته هيڅوک هم نه وه اودخپل خدای ﷻ په عبادت باندي اخته سوم نو هره شپه به مي زر رکعته لمونځ کاوه .(۱)

## داوداسه فرضونه اودهغوی حکمتونه

۱۹۷_ **مسئله** : داوداسه فرضونه څلوردي :

۱- دمخ پريولل :دمخ پريولل په دې فرض دي چې مخ ترنوروغړو ښه دی ، رسول الله ﷺ ويلي دي : تاسوپرمخ څوک مه وهی .

۲- دلاسونوپريولل : دانسان پرته هېڅ حيوان داسي غزيدلي لاسونه نه لري اوهرڅه چې خورو دلاسونوپه واسطه يې خورو .

۳- دپښوپريولل : الله ﷻ انسان په ډېرښه قالب کي جوړکړی دی يعني مستقيم يې جوړکړی دی نورحيوانات يې داسي منظم نه دي جوړکړي نوددې لوی نعمت شکراداکول په کاردي .

۴- دسرمسح : دسرڅخه دتوري اوجزيې احساس پورته سوی دی اود هوادتودوالي سره هم تراولري نوځکه ډېرپريولل ورته تاوان رسوي. دمخ پريولل دتندي دوبښتانو دشنه کېدو له خای څخه بيا تر زني

---

۱ - (مسنلې خواتين محمداسحاق ملتاني)

لاندي پوري ، كه څوک کل یا پک وي نو دهغه اندازې څخه دي يې شروع کړي ، همدارنګه دغوړونوله يوې نرمۍ څخه بيا دغوړو زيلي نرمۍ پوري پريولل کيږي .

يادونه: هرانداميايدپه داسي ډول سره پريولل سي چي اوبه تري وبهيږي که باالفرض څوک داسي اودس تازه کړي چي يوڅوک يو اندام غوړوي يابي څوک په واوره اودس تازه کړي نوصحيح نه دی [1] .

## شهيدڅانته وايي؟

۱۹۸_ **مسئله** : ۱-دخدای ﷻ په لاره کي چي ووژل سي .

۲-دنس په ناروغۍ سره چي مړ سي .

۳-چي په اوبو کي بيا که ډوب اومړ سي .

۴-تربام يا ديوال چي راولويږي اومړسي .

۵-هغه ښځه چي دحمل په وجه مړه سي .

۶-دطاعون په ناروغي سره چي مړه سي .

۷-هغه څوک چي دکلمونږ ناروغۍ سره مړ سي .

۸-هغه څوک چي وسوځي اومړ سي .

۹-هغه نجلۍ چي په پيغلتوب کي مړه سي .

۱۰-هغه ښځه چي ترکوچني ترپيدا کيدو وروسته مړه سي .

۱۱-هغه څوک چي ددق (سل) په ناروغي سره مړه سي .

---

[1] فقه الاسلامي وادلته ص ۳۶۶ لومړی ټوک مکتبه فريديه - فقه على المذاهب الاربعه ص ۵۲ لومړی ټوک مکتبه وحيدي کتب خانه

۱۲- هغه څوک چي دسفرپه حالت کي مړ سي .
۱۳- هغه څوک چي دجهادپه سفرکي له سپرلي څخه ولوېږي مړ سي
۱۴- داسلامي حکومت په وخت کي چي څوک مړ سي .
۱۵- هغه څوک چي حيوانات يې وخوري او مړ سي .
۱۶- هغه څوک چي دخپل مال ، خپل عيال ، خپل دين ، خپلي وينې اوخپل حق په خاطرووژل سي .
۱۷- هغه څوک چي په جهاد کي په خدايي مرګ مړسي .
۱۸- دچاچي دزړه له اخلاصه ددشهادت شوق وي اودی په خدايي مرګ سره مړسي .
۱۹- هغه څوک چي دخپل وخت ظالم حاکم يې په بندي خانه کي واچوي اوهلته مړ سي .
۲۰- هغه څوک چي په داسي حال کي مړ سي چي دوحدانيت (دالله ﷻ يووالی) شاهدي ورکوي .
۲۱- هغه څوک چي تبې نيولی وي اومړسي .
۲۲- هغه څوک چي دېوظالم حاکم په مخ کي ودرېږي اوهغه ته دښه نېک سلوک اوکارکولوامروکړي اودناوړه کارونوڅخه يې منع کړي اوبياهغه ظالم حاکم هغه شخص مړ کړي .
۲۳- هغه څوک چي داس يااوښ يابل سپرلي دشي څخه راولوېږي اومړسي .
۲۴- که څوک دېوزهرجن حيوان دخوړلو سره مړسي .

۲۵- هغه څوک چې داشراق اودڅاښت دلمانځه خيال ساتي اوهروخت بې كوي اوپه مياشت كي دري ورځي روژه نيسي اوپه سفراوكوركي وترلمونځ نه پرېږدي بلكي كوي يې .
۲۶- كله چي په امت كي درسول ﷺ اعتقادي(دعقيدې)اوعمل گمراهي خوره سي نوپه دې وخت كي پرسنتوټينګ اوسېدونكى شخص
۲۷- دعلم په طلب كي لكه دتصنيف ، تدريس ، زده كړه ياعلمي مجلس كي مړسي .
۲۸- هغه څوک چې خپل ژوند دخلكوپه مېلمستيااودخلكوپه خدمت كي تېركړي .
۲۹- هغه څوک چي دجګړې په ميدان كي زخمي سي اوهغه وخت مړنه سي بلكي دومره وخت ژوندى وي چي ددنيا ديوشي څخهِ گټه واخلي اوبيامړسي .
۳۰- هغه څوک چي په غاړه كي اوبه ودرېږي سايه بنده اومړسي.
۳۱- هغه څوک چي دمسلمانانولپاره غنم يااوړه وركوي اومړسي .
۳۲- هغه څوک چي پخپله ناروغى كي دحضرت يونس ﷺ دالاندي دعاخلوبښت واره ووايي اوپه دغه ناروغى كي مړسي (لااله الاانت سبحانك اني كنت من الظالمين )
۳۳- هغه مؤذن (اذان كوونكى ) چي بلاعوض يعني دالله ﷻ د رضاپه خاطر اذان كوي (په حديث شريف كي راځي دهغه شهيدپه ډول دى چي په خپلووينوكي لت پت كېږي .

۳۴- هغه څوک چې دجمعې په شپه مړسي .

۳۵- هرڅوک چې دسهارپه وخت کې دري واره (اعوذبالله السمع العلیم من الشیطان الرجیم اودسورة الحشروروستي دري اياتونه ووايي .الله ﷻ دهغه سره اويازره ملائکې ﷺ مقرروي ، داملائکې ﷺ ددې سړي لپاره ترماښامه پوري دبخښني دعاغوارې اوداسړی که په دغه ورځ کې مړسي نودده مرګ دشهيدپه شان دی .

۳۶- هغه سړی چې دمېرګي (پيرانانو) په ناروغۍ سره مړسي .

۳۷- هغه څوک چې دروژې په مياشت کې په بيت المقدس يامکه مکرمه يامدينه منوره کې مړسي .

۳۸- هغه څوک چې له ډنګروالي څخه مړسي .

۳۹- هغه څوک چې په يوافت باندي اخته وي اوپرهغه باندي صبر کوي اوالله ﷻ ته يې درضاء لمن نيولې وي .

۴۰- هغه څوک چې غمزده وي اومړسي .

۴۱- هغه انصاف کوونکی پاچايا قاضي چې تولـه عمردحق طرف داره وي اودحق فيصلې کوي اوبيامړسي .

۴۲- هرهغه مسلمان چې دبل کمزوري مسلمان سره ښېګڼه وکړي داهم شهيددی .(۱)

۱ - مظاهرالحق جديدص ۳۴۷ دوهم توک .- تفسيرالمظهري ص ۱۵۲ لومړی توک مکتبه علوم الاسلاميه .- فتح الملهم شرح المسلم کتاب الامارة ص ۲۸۲ نهم توک مکتبه دارالاحياء التراث العربي .- عون المعبودشرح سنن ابوداود باب فضل من مات باالطاعون ص ۲۱۲ اتم توک مکتبه لدهيي کتب خانه .

## دبدنظرۍ دعا

۱۹۱_ **مسئله** : بـد نظري خوبوپخـوانی اثـردی چـې دهغـه اثرپـر کوچنيـانو بانـدې ډېر راځي ځکـه رسـول الله ﷺ به دحضرت حسن رضي الله عنه اوحضرت حسين رضي الله عنه دبد نظرۍ څخه دساتلو لپـاره لاندې دعـا کول (اعوذبکلمات الله التامة من کل شيطان وهامة ومن کل عين لامة ) (۱)

ژباړه : زه پناه غواړم دالله ﷻ دتامو کلمو په ذريعه دشيطان څخه او دهرزهر لرونکي وژونکي حيوان څخه اودسترګودبدنظر لګولو څخه. دابوسعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسـول الله ﷺ به همېشه دپيرانانو اوانسانانوله بدنظرڅخه پناه غوښتل خوکله چې دفلق سـورة اوالنـاس سـورة نـازل سـول نورسـول الله ﷺ بيـانوري دعاګـانې پرېښـوولې اوددې سـورتونو پـه ذريعـه سره بـه يـې پنـاه غوښتل ، نو اوس که چيري يو کوچنی نظرسي نودا سورتونه پرووېل سي او ورباندې چوف سي انشاءالله ډېره فايده به ورته وکړي خوچې الحمدلله شريفه هم ورسره يوځای سي انشاءالله فايده به يې ډېره سي.(۲)

۱ - المصنف لابن ابي شيبه کتاب الطب دحديث نمبر ۲۴۲۳ص ـ۹۱ دوولسم ټوک مکتبه المجلس العلمي بيروت لبنان -جامع الترمذي ابواب الطب ص ـ ۲۷۰ لومړی ټوک مکتبه رحمانيه .
۲ - المصنف لابن ابي شيبه کتاب الطب ص ـ۹۱ دوولسم ټوک مکتبه المجلس العلمي بيروت لبنان . جامع الترمذي ابواب الطب ص ـ۲۷۰ لومړی ټوک مکتبه رحمانيه .

## بازارته دتللودعا

۲۰۰ـ **مسئله** : رسول الله ﷺ فرمايي : په دنياكي ترټولو ښه ځای مسجد دی اوترټولو بدترين ځای بازار دی نودبازارله بدی ځخه هغه وخت ځوک خپل ځان ساتلای سي چي خرڅول اورانيول يې پر شريعت برابروي ، دافکرباید وکړي چي بازار يوازي دضرورت د پوره کولوځای دی دخوشحالۍ اوګرځېدلوځای نه دی نوپه دې سبب سره درسول الله ﷺ داعادت ؤ چي کله به بازار ته داخليدی نو دادعابه يې ويل :«اللهم اني اسئلک خيرهذه السوق وخيرمافيهاواعوذبک من شرها وشرما فيها اللهم اني اعوذبک ان اصيب فيهايمينا فاجرة اوصفقة خاسرة» .(۱)

ژباړه : خدايه ﷻ استاځخه غواړم ددې بازار ښې خبري اودهغو شيانو نيکي چي په دې بازارکي دي اوپناه غواړم دبازار دبدو شيانو ځخه اودهغه ځخه چي په دې بازارکي بد وي اوالله ﷻ زه دهغه ځخه پناه غواړم چي په ناحقه قسم خوري اوزه پناه غواړم دداسي معاملې ځخه چي په هغې کي تاوان وي .

خوسرې که هرڅومره په ښه حال کي وي هغه بيا هم دخپل ځان خيال نه سي ساتلای نوله دې سببه رسول الله ﷺ فرمايلي دي : ددنياپه کارونوکي بايد دخپل ځان ځخه دکښته سړي وکاروبارته وګوري اوددين په کارکي بايد ترخپل ځان پورته خلکوته وګوري نوپه بازار کي دهرانسان لپاره په کاردي چي وړی ، ترږی ، ناجوړه ، شل ، ګوډ

۱ - المستدرک للحاکم والدعاء والتکبيرد حديث نمبر ۲۰۲۹ ص ۷۲۲ لومړی ټوک .

، رانده اومسکين ته وګوري اوشکروباسي چي الله ﷻماته سترګي ، غوږونه ، پزه ، خوله اوټول مکمل اندامونه راکړي دي اوشکر وباسي چي خدای ﷻماته کور اولادونه راکړي دي اوهم يې يوڅه شی راکړی دی چي ويې خورم .

## پرښځي باندي دخاوندحق

۲۰۱_ **مسئله** : - دانس ﷺڅخه روايت دی چي رسول الله ﷺ فرمايلي دي : هره ښځه چي پنځه وخته لمونځونه وکړي اويوه مياشت روژه ونيسي اودخپل فرج (شرمګاه) ساتنه وکړي اود خپل خاوندخبره دشريعت په چوکاټ کي ومني نوجنت ته دي داخله سي پرهره دروازه چي داخليږي .([1])

-په بل حديث شريف کي دام سلمةﷺڅخه روايت دی چي رسول الله ﷺوفرمايل : هره ښځه چي وفات سي اوخاوند ورڅخه راضي وي نوجنت ته دي داخله سي .([2])

-همدارنګه دمعاذ ﷺڅخه روايت دی چي سرورکائنات ﷺ وويل : هره ښځه چي وخپل خاوندته ضرر ورسوي غټي سترګي والاحوري ورته وايي الله ﷻدي تامره کړي ، دی خوستاسره مېلمه دی ضرر او تکليف مه ورته رسوه ژر دی چي ستاڅخه به

١ - (المراة اذا صلت خمسها..... مرقات شرح المشکواة دحديث نمبر ۳۲۵۴ ص ۲۰۱ شپږم ټوک مکتبه رشيديه

۲ - ايما المراة مات ..... مرقات المفاتيح شرح المشکواة کتاب النکاح باب عشر النسا ء حديث نمبر ۳۲۵۶ ص ۲۰۱ شپږم ټوک مکتبه رشيديه .

راجلاسي زموږ طرف ته به راسي .(۱)

- حضرت عائشه ﷺوايي چي رسول الله ﷺوفرمايل : كه چيري ماپه سجده باندي څوک امر كولای نوښځه ماامر كول چي وخپل خاوند ته سجده وكړي اوكه چيري خاوند وخپلي ښځي ته امر وكړي چي دژړغره څخه دبري يوسه وهغه تورغره ته نوښځي ته دامناسبه ده چي داكاروكړي ، سره ددې چي داكار خوعبث هم دی يعني فايده نه لري نوچيري چي بياديوه شرعي كارورته ووايي .(۲)

- په بل مبارک ارشادكښي راځي چي رسول الله ﷺوايي : كه چيري يوسړی خپله ښځه ديوحاجت (نژديكت) لپاره راوغواړي (دابايد راسي) كه څه هم پرتنور (په اشپيزي باندي اخته وي) باندي وي .(۳)

- په بل ځای كي رسول الله ﷺويلي دي : هره هغه ښځه چي په داسي حالت كي شپه تيره كړي چي خاوند دي له دې څخه راضي وي (نودغه ښځه دي) جنت ته داخله سي .(۴)

۱ - ( لاتؤذي امراة زوجهاني الدنيا ، الاقالت زوجته من الحورالعين ...) تحفة الاحوذي شرح الجامع الترمذي كتاب الرضاع ص۳۷۶ څلورم توک مكتبه قديمي كتب خانه . - مرقات المفاتيح شرح المشكواة المصابيح كتاب النكاح باب عشرنساء دحديث نمبر۳۲۵۸ ص ۴۰۲ شپږم توک مكتبه رشيديه

۲ - ( ولوان رجلاامراة ان تنقل من جبل الحمرالي جبل الاسود....) تحفة الاحوذي شرح الجامع الترمذي كتاب الرضاع باب ماجاء في حق الزوج علي المراة ص۳۵۹ څلورم توک مكتبه قديمي كتب خانه . - مرقات المفاتيح شرح المشكواة المصابيح كتاب النكاح باب عشرنساء دحديث نمبر ۳۲۷۰ ص شپږم توک مكتبه رشيديه

۳ - تحفة الاحوذي شرح الجامع الترمذي كتاب الرضاع باب ماجاء في حق المراة علي الزوجها ص۳۶۰ څلورم توک مكتبه قديمي كتب خانه . - مرقات المفاتيح شرح المشكواة المصابيح كتاب النكاح دحديث نمبر۳۲۵۷ ص۴۰۲ شپږم توک مكتبه رشيديه

۴ - ( ايما المراة باتت وزوجهاعنهاراض دخلت الجنة ) تحفة الاحوذي شرح الجامع الترمذي كتاب الرضاع باب ماجاء في حق المراة علي الزوجها ص۳۶۱ څلورم توک مكتبه قديمي كتب خانه .

## دښځي او خاوند ترمنځ محبت

۲۰۲_ **مسئله** : كه چيري دخاوند او ښځي ترمنځ محبت نه وي ښځه او خاوند په اختلاف کي وي نو دغه لاندي ايت شريف دي نهه نوي (۹۹) خله ووايي اوپريوه خواږه شي دي پې چوف كړي ، انشاءالله خداى ﷻ به يې سره خوشحاله كړي خوداكاربه دري واره كوي يا په يوه ورځ كي دري واره ياخو په جلاجلاورځو كي خودري خله به پوره كـــــوي . «وَمِنْ ءَايَٰتِهِۦٓ أَنْ خَلَقَ لَكُم مِّنْ أَنفُسِكُمْ أَزْوَٰجًا لِّتَسْكُنُوٓا۟ إِلَيْهَا وَجَعَلَ بَيْنَكُم مَّوَدَّةً وَرَحْمَةً ۚ إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَءَايَٰتٍ لِّقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ» . ([1])

## دنجلۍ دکوزدې لپاره

۲۰۳_ **مسئله** : كه چيري ديوې نجلۍ (ديوچاخوريالور) لپاره مركه نه راځي ياراځي خودوستي يې نه خوښيږي نوكه يوځوك يوسل او دولس (۱۱۲) واره لاندي ايت مبارك اودري خله سورة الضحى ولولي ، دري مياشتي هره مياشت كي تريوولسوورځوپوري انشاء الله ددغي نجلۍ (خوريالور) كوزده به وسي . «رب اني لماانزلت الي من خيرفقير» . ([2])

۱ - سورة الروم ايت ۲۱.
۲ - سورة القصص ايت ۲۴.

## اودس پرڅودوله دی ؟

۲۰۳_ **مسئله** : دامام ابوحنیفه ﷫ په مذهب اودس پرپنځه قسمه دی.[۱]

۱ -فرض : فرض اودس هغه اوداسه ته وايي چي سړی بې اودسه وي اودلمانځه لپاره قصدوکړي ، لمونځ که فرض وي اوکه نفل ځکه چي په قرانکریم کي الله ﷻ فرمايي : کله چي دلمانځه اراده وکړی نوخپل مخونه پريمنځی .[۲]

رسول الله ﷺ فرمايلي دي : الله ﷻ ستاسي لمونځ نه قبلوي چي تاسي اودس نه لری ترڅوپوري چي تاسي اودس تازه نه کړی .[۳]

۲ - واجب : دبیت الله شريفي دطواف لپاره چي شاوخواپرراګرځي نوکه چيري يوڅوک بېله اوداسه پربیت الله شريفي باندي طواف وکړي نوپرهغه باندي پسه واجب دی چي حلالوي به يې ، نور علماء کرام رحمة الله علیهم خودطواف لپاره اودس فرض بولي ځکه دوی درسول الله ﷺ هغه حديث شريف رانقلوي چي وايي : طواف پربیت الله شريفي لمونځ دی ، ليکن خوالله ﷻ په طواف کي خبري روا کړي دي ، نوکه چاپه طواف کي خبري کولې نوپه خيرسره دي يې وکړي .[۴]

---

۱ - فقه الاسلامي وادلته الفصل الرابع ص۲۶۰ ۳لومړی توک مکتبه فريديه .

۲ - سورة المائده ايت ۶ .- فقه الاسلامي وادلته الفصل الرابع ص۲۶۰ ۳لومړی توک مکتبه فريديه .

۳ - فقه الاسلامي وادلته الفصل الرابع المبحث الاول الوضوص۲۶۱ ۳لومړی توک مکتبه فريديه .

۴ - فقه الاسلامي وادلته للطواف حول الکعبة وقال الجمهور غيرالحنيفيه انه فرض لقوله عليه السلام الطواف بالبيت صلاة ص۲۶۱ ۳لومړی توک مکتبه فريديه .

۳- مستحب : د هر لمانځه لپاره اودس تازه کول دي ځکه رسول الله ﷺ وفرمايلي دي : که چيري زما پر امت باندي دا کار سخت نه وای نو ما به امر کړي وای په اوداسه باندي د هر لمانځه لپاره او مسواک باندي د هر اوداسه سره .(۱)

د هر لمانځه لپاره اودس مستحب دی که چيري په اول اوداسه سره نفلي يا فرضي لمونځ سوی وٍ ځکه دا يو نور پر يل نور باندي دی ، رسول الله ﷺ فرمايي : که چا اودس تازه کړی پر يل اوداسه باندي نو دده لپاره به لس نيکۍ وليکل سي .(۲)

۴- مکروه : او که چيري په دغه اوداسه باندي داسي يو ضروري اوشرعي عمل نه وٍ کړی نو بيا دغه اودس په اسراف کي راځي ، ځکه الله ﷻ اسراف نه خوښوي .(۳)

داچي سړی اودس لري او بيا اودس تازه کړي دا نو داسي دی لکه تر له عمر چي په اوداسه وي ځکه د ثوبان ﷺ په روايت کي راځي چي رسول الله ﷺ وايي : بهترين په عملونو کي لمونځ دی ليکن ساتنه نه کوي پر اوداسه باندي مگر مؤمن .(۴)

---

۱- (التوضوء لکل صلاة لقوله رسول الله ﷺ لولان اشق .....) فقه الاسلامي وادلته ص۳۶۲ لومړی توک مکتبه فريديه .
۲- فقه الاسلامي وادلته الفصل الرابع ص۳۶۲ دريم توک مکتبه فريديه .
۳- فقه الاسلامي وادلته ص۳۶۲-۳۶۳ لومړی توک مکتبه فريديه .
۴- فقه الاسلامي وادلته ص۳۶۲ لومړی توک مکتبه فريديه .

۵- حرام: دغصب (ديوچاڅخه په زوره اخيستل) په اوبوسره اودس تازه کول اوديتيم کوچني په اوبوسره اودس تازه کول حرام دي.(١)

## حيض څه ته وايي؟

۲۰۵_ **مسئله**: شيخ الامام الجليل ابوبکر محمدبن الفضل رحمه الله وايي چي حيض وهغه وينوته وايي چي دښځي رحم يې پاشي په داسي حال کي چي نه ښځه مرضمنه وي اونه کوچنۍ وي.(٢)
نوښځوته چي په هره مياشت کي کومه وينه راځي هغه ته حيض وايي چي دحيض موده تردرې ورځي کمه نه وي اوترلس ورځي زياته نه ده که چيري تردغه اندازه وروسته هم وينه راځي هغه استحاضه (مرض) دی که چيري دغه وينه پرکالوباندي ولوېږي نو بايدپريولل سي ځکه دا نجاست دی خودبخارا اوخوارزم نومي ځايودمشايخ رحمة الله عليهم له نظره دحيض وينه ښځي ته ترپنځه پنځوس کلونووروسته نه راځي، ليکن اکثره مشايخ رحمة الله عليهم بيا په شپېته کالوباندي خبره کوي چي ترشپېتوکالووروسته دحيض وينه نه راځي اوپه المجتبی نومي کتاب کي راغلي دي چي

١ - فقه الاسلامي وادلته ص۲۶۲-۲۶۴ لومړی ټوک مکتبه فريديه.
٢ - محيط البرهاني في الفقه النعماني کتاب الطهارات الفصل الثامن في الحيض ص۲۳۵ لومړی ټوک مکتبه حقانيه.- بحرائق شرح کنزالدقائق کتاب الطهارة باب الحيض ص۳۲۹ لومړی ټوک مکتبه رشيديه.

زموږ په زمانه کي فتوای پر دغه ده چي تر پنخوس کالو وروسته دحیض وینه نه راځي .(۱)

## دغسل دصحت شرطونه

۲۰۶ـ **مسئله** : - دټول بدن پر ممنځل په دې شرط چي عذرونه لري او که چیري بیله عذره ځخه په ټول بدن کي دیوه ویښته په اندازه ځای وچ پاته سي نو غسل يې نه صحیح کېږي .(۲)

پر خپل بدن باندي به داسي شی نه پرېږدي چي دهغه په وجه يې بدن ته اوبه نه رسېږي دمثال په ډول ډیره تنګه ګوتمې يې په ګوته کړې وي چي تر هغې لاندي اوبه نه تېرېږي او یا پر نوکانو باندي يې رنګ ناخون او یاداسي نور شیان وي چي داوبو په مخ کي خنډ جوړوي او اوبه بدن ته نه پرېږدي .(۳)

هغه شیان چي دهغوی په وجه پر انسان باندي غسل واجبېږي خو هغه به دغسل په وخت کي نه وي مثلاً يو څوک غسل کوي خومني يې راوزي او یا ښځه دحیض یا نفاس په وخت کي وي اوداغسل کوي نو په دې وخت کي غسل نه صحیح کېږي .

په غسل او اودا سه کي دامام اعظم صاحب رحمه الله په نزد نیت فرض نه

۱- بحرائق شرح کنز الدقائق کتال الطهارة باب الحیض صـ ۲۳۲ لومړی ټوک مکتبه رشیدیه .

۲- محیط البرهاني في الفقه النعماني کتاب الطهارات الفصل الثالث في تعلیم الاغتسال نوع منه في بیان فرائضه وسنته صـ ۸۴ لومړی ټوک مکتبه حقانیه .

۳- محیط البرهاني في الفقه النعماني کتاب الطهارات الفصل الثالث في تعلیم الاغتسال نوع منه في بیان فرائضه وسنته صـ ۸۵ لومړی ټوک مکتبه حقانیه

دی یعني بېله نیت څخه هم غسل صحیح کېږي ، د نیت ویل په خوله اوزړه سره سنت دي .([1])

## مړي ته کفن ورکول

۲۰۷ـ **مسئله** : د مړي لپاره کفن فرض کفایي دی .([2])
د نارینه لپاره سنت کفن ازار، کمیس اولفافه ده .([3])
د ضرورت کفن هغه دی چې پیداسي ، ازاربه له سرڅخه بیا تر پښوپورې اولفافه به هم له سرڅخه ترپښوپورې وي اوکمیس به له غاړې څخه ترپښوپورې وي ، خوکفن به جیب ، ترخیزې اولښتونې نه لري .([4])

د ښځې لپاره سنت کفن کمیس ، ازار، لفافه اویوه ټوټه توکرچې د دې څیګر (تیان) په ورو تړي خود دې توکراندازه باید د ومره وي چې د تیانو څخه بیاترنامه (ناف) پورې ورسېږي ، خوښه طریقه لاداده چې د دې ټوټې اندازه باید د تیانو څخه بیاتروړنوپورې وي .([5])
ترټولوښه کفن سپین رنګ دی که نوی وي اوکه زوړوي ، هره جامه چې انسان په دنیاکي اغوندي نوکفن دي هم په هغه قسم جامه کي

١ - فقه الاسلامي وادلته المطلب الرابع سنن الغسل ص۵۲۹لومړی ټوک مکتبه فریدیه
۲ - فقه الاسلامي وادلته المطلب الثاني الفرض الثاني ص۱۴۲۸دوهم ټوک مکتبه فریدیه .
۳ - فقه الاسلامي وادلته المطلب الثاني الفرض الثاني ص۱۴۹۹دوهم ټوک مکتبه فریدیه .
۴ - فقه الاسلامي وادلته ص۱۵۰۰-۱۵۰۱دوهم ټوک مکتبه فریدیه .
۵ - فقه الاسلامي وادلته ص۱۵۰۰-۱۵۰۱دوهم ټوک مکتبه فریدیه .

ورکړل سي، نو دا معلومه سوه که په ژوندکي چاته هره جامه اغوستل مکروه وي نو په هغه جامه کي کفن ورکول هم مکروه دی[1]
نارینه ته په داسي جامه کي کفن ورکول روادي چي دی یې په دنیا کي دعیدګاه دلمانځه لپاره اغوندي او ښځي ته په داسي جامه کي کفن ورکول روادي چي دا په دنیا کي دخپل پلار کورته پکښي ځي[2].

## دلمانځه په صفونوکي خالي ځایونه پرېښول

۲۰۸_ **مسئله** : کله چي دجماعت لمونځ دربېږي باید لومړی صف ډک سي او بیا په دوهم صف کي دخلکو دربدل پیل سي ، خوځیني خلک چي ناوخته راسي نو درکعت دتېریدو په خاطر یا دلومړي صف دخالي ځای دلیري والي په سبب لومړی صف خالي پرېږدي او په دوهم صف کي درېږي ، ددغسي عمل دحکم په اړه یو څو احادیث شریفونه ستاسي مخي ته ږدو:
۱-حضرت انس ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : صفونه سیده کړئ ځکه دصفونو سیده کول دلمانځه داقامت (اداکېدو) څخه دي .[3]

۱ - فقه الاسلامي وادلته الفرض الثاني تکفین المیت صـ۱۵۰۵ دوهم ټوک مکتبه فریدیه .
۲ - فقه الاسلامي وادلته الفرض الثاین تکفین المیت صـ۱۵۰۷ دریم ټوک مکتبه فریدیه .
۳ - صحیح البخاري کتاب الاذان باب اقامت الصف من تمام الصلاة صـ۱۰۰ لومړی ټوک مکتبه الغفاریه . - صحیح المسلم کتاب الصلاة باب تسویه الصفوف واقامتها وفصل الاول صـ۲۹۷ دوهم ټوک مکتبه البشرای . - عون المعبود

۲- د حضرت نعمان بن بشیر ﷺ روایت دی چې رسول الله ﷺ به زموږ صفونه دومره په ښه توګه ترتیب اوسیده کول لکه څوک چې د د غوصفونوپه ذریعه غشي برابروي، کله چې به رسول الله ﷺ موږ ولیدو (چې صفونه موبنه برابرسول نوبه پرلمانځه درېدی) موږ د رسول الله ﷺ څخه صفونوسمېدل زده کړي دي، یوه ورځ رسول الله ﷺ له کوره څخه دباندي راووت اودلمانځه لپاره ودرېدی، نژدې وو چې دلمانځه لپاره تکبیرووایي په دې وخت کې یې ولیدل چې د یوسړي سینه (څیګر) ترصف دباندي راوتلې ده، نورسول الله ﷺ وفرمایل: ای دالله ﷻ بندګانو صفونه موسم کړی که نه نو الله ﷻ به موږ مخونه مختلف کړي.([1])

۳- حضرت ابومسعود ﷺ وایي کله چې به موږ صفونه ودرول نو رسول الله ﷺ به زموږ پراوږولاس راتېراوه اوفرمایل به یې چې سیده ودرېږی مه سره مختلف کېږی، که نه نوستاسي په زړونو کې به اختلاف پیداسي.([2])

۴- حضرت انس ﷺ روایت کوي چې سرورکائنات ﷺ وویل: صفونه سره یوځای کړی اونژدې سره ودرېږی اوغاړي یوله بله سره

شرح سنن ابوداود کتاب الصلاة باب تسویة الصفوف ص۲۱۹ دوهم ټوک مکتبه قدیمي کتب خانه. - مشکواة المصابیح باب تسویة الصف ص۱۵ دوهم ټوک مکتبه البشرای.

۱- صحیح المسلم کتاب الصلاة باب تسویه الصفوف واقامتهاوفصل الاول فاالاول ص۲۹۸ دوهم ټوک مکتبه البشرای. - عون المعبود شرح سنن ابوداود کتاب الصلاة باب تسویة الصفوف ص۲۱۷ دوهم ټوک مکتبه قدیمي کتب خانه. - مشکواة المصابیح باب تسویة الصف ص۱۲ دوهم ټوک مکتبه البشرای.

۲- صحیح المسلم کتاب الصلاة باب تسویة الصفوف واقامتهاوفصل الاول ص۲۹۶ دوهم ټوک مکتبه البشرای.

برابري کړی ، په هغه ذات ﷺ دې زما قسم وي چې زما نفس یې په لاس کې دی زه وینم چې شیطان د صفونو د خالي ځایونو څخه داخلیږي لکه دی چې د پسه زوی وي (یعني خان سره کوچنی کړي او د صف په خالي ځایونو کې ورننوځي) .(١)

٥- حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل : صفونه ودروی او اوږې یو له بل سره برابري کړی او د خپلو وروڼو په لاسونو کې نرم سی او د صفونو په منځ کې شیطاني خلاوي مه پرېږدی او چا چې صف پرې کړی الله ﷻ به هغه (د خپل رحمت څخه) پرې کړي .(٢)

ځیني خلک به داسي فکر کوي چې په صف کې د نږدې درېدلو حکم هغه وخت وي چې مسجد تنګ وي او خلک ډېروي خو دا خبره غلطه ده ، که خلک ډېروي او که لږ وي باید په صف کې خالي ځای پاته نه سي او هم نږدې نږدې سره ودرېږي .

یادونه : د مسجد ملا امام صاحب ته په کار ده چې تر څو صفونه برابر سوي نه وي نو په لمانځه دې شروع نه کوي .

١- عون المعبود شرح سنن ابوداود کتاب الصلاة باب تسوية الصفوف ص٢١٩ دوهم توک مکتبه قديمي کتب خانه .
٢- عون المعبود شرح سنن ابوداود کتاب الصلاة باب تسوية الصفوف ص٢١٨ دوهم توک مکتبه قديمي کتب خانه .

## اجازه يو واجب امر دی

۲۰۹ـ **مسئله** : د پردو ښځو په دپردو ښځو په د پروڅايونو کي داسي کېږي چي ځيني همسايه ګان دخپلو نورو همسايه ګانو کورونو ته ګوري چي دا کار دشريعت څخه دېر ليري کار دی که چيري يو څوک وغواړي چي دچا کورته ولاړسي نود کورلـه خاوند څخه دي اجازه وغواړي اوبيا دي کورته داخل سي ځکه په دې اړه الله ﷻ په قرانکريم کي فرمايلي دي : ﴿ياايهاالذين امنوالاتدخلوابيوتاغيربيوتكم حتى تستانسوا وتسلموا على اهلها ذالكم خيرلكم لعلكم تذكرون ﴾.([1])

مطلب : ای مؤمنانو ! لـه خپلو کورونوڅخه پرتـه نوروکورونوتـه ترهغه پوري مه ننوزئ ، ترڅوچي اجازه ترلاسه نه کړئ اوپرکورني باندي سلام وانه چوئ داکړنلاره ستاسي لپاره د بېره ښه ده ، ښايي چي تاسي به دې ته پاملرنه وکړی ، که څوک وغواړي چي د يوچا کورته ورسي نوبايد اجازه وغواړي داکارترهغه ښه دی چي څوک ناڅاپي دچا کورتـه ورداخل سي ، اجازه غوښتل ترهغه هم ښه ده چي دجاهليت په زمانه کي به دوی استعمالول لکه دامثال چي دوی به ويل (حييتم وحييتم مساء) اوبيابـه کورتـه ورداخل سو ، پـه ناڅاپي ډول د يوچاکورتـه داخلېدل د پروختونه داسي پېښېږي چي شايد کومـه ښځه پـه داسي حال کي وي چي پوړنی يې پرسرنه وي.([2])

---

۱ - سورة النورايت ۲۷ تفسيرالمنيرصـ ۵۳۲نهم توک مكتبه اميرحمزه کتب خانه.

۲ - احکام القران للجصاص سورة النورباب استئذان المماليک والصبيان صـ۲۸۲دريم توک مکتبه دارالکتب.

اوياپه يوداسي غيرعادي حالت کي وي چي څوک بايد ښځي ته په داسي وخت کي ونه ګوري .(۱)

په هغه حديث شريف کي چي حضرت ابوهريرة ﷺ يې روايت کوي راځي چي رسول الله ﷺ وفرمايل : که چيري يو څوک بې اجازې ستاسي کورته پټ وګوري اوتاسي په هغه چاپسي يوکوچنۍ ډبره وغورځوی ترديې پوري چي دهغه ستر ګه ړنده سي نوپرتاسي باندي هيڅ مواخذه (تاوان) نسته .(۲)

اوکه چيري ديوچا دکوردروازه خلاصه وي اوپرده هم ورباندي نه وي اوڅوک ورته وګوري نوبيا دکورخاوند ملامت دی اوکتونکی ګنهګار نه دی .(۳)

## ايا ښځه خپلي ورو ځي له وښتانو څخه پاکولای سي ؟

۲۱۰_ **مسئله** : ايا دا روا ده چي له وروځو څخه يو وېښته هم لیري سي ، که په دې نيت وي چي نرۍ ښکاره سي ، ياپه دې نيت چي سمي سي اويا ددې لپاره چي پاکي سي ، ددې دامعنی هم کېدای

۱- تفسيرروح المعاني للالوسي بغدادي سورة النورص۴۲۷يت ۲۷ اتلسم ټوک مکتبه رشيديه .- تفسيرالمدارک التنزيل وحقائق التاويل سورة النورايت ۲۷ص۱۵۸ دوهم ټوک مکتبه فريديه . - تفسيرالخازن سورة النورايت ۲۷ص۳۲۴ دريم ټوک مکتبه فاروقيه .

۲- احکام القران الجصاص في عدد الاستئذان وکيفية ص۲۵۲ دريم ټوک مکتبه دارالکتب . حديث ابي هريرة ﷺ ...لوان امرا اطلع عليک بغيراذن ، فخذفته بحصاة ، ففقات عينه ، لم يکن جناح، تحفة الاحوذي کتاب الاستئذان والاداب باب ماجاء في الاستئذان ص۵۱۹ اووم ټوک مکتبه قديمي کتب خانه .

۳- احکام القران الجصاص سورة النورايت ۲۷ ص ۲۵۲ دريم ټوک مکتبه دارالکتب .- تفسيرالخازن سورة النورايت ۲۷ص ۳۲۷ دريم ټوک مکتبه فاروقيه .

سي چي دوروخوداضافي ياخواره واره وېښتانوليري کول روانه دي داځکه چي بیادوېښتانودا يستلوترموضوع لاندي راځي او دا کار حرام دی اوپه هکله يې داسي روايت سوی دی چي څوک داکارکوي نو لعنت پرې ويل کېږي ، دبخاري په ۴۸۸۶ نمبر حديث شريف کي روايت سوی چي حضرت عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه فرمايلي دي: دالله ﷻ لعنت دي وي پر هغه ځاچي خالونه وهي ، هغه څوک چي خالونه ورته وهي ، هغه څوک چي دوروخو وېښتان باسي اوهغه څوک چي بل ځاته دوروخو وېښتان ورباسي ، اوهغه څوک چي د ښايست لپاره غاښونه سوهانوي ياتوږي ، دالله ﷻ په خلقت (پيدا ينبت) کي تغييرراولي دابن مسعود رضي الله عنه داخبره دبنواسد کورنۍ يوې ښځي ته چي ام يعقوب نومېده چي همېشه به يې قران عظيم الشان تلاوت کاوه ورسېده ، هغه راغله اوعبدالله ابن مسعود رضي الله عنه ته يې وويل چي ماداستا په باره کي څه واورېدل ، دالله ﷻ لعنت دي وي په هغه ځاچي خالونه وهي اوهغه څوک چي خالونه ورته وهي ، هغه څوک چي وروځي باسي اوهغه څوک چي وبل ځاته وروځي ورباسي اوهغه څوک چي دښايست لپاره غاښونه سوهانوي ياتوږي ؟ عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه ورته په ځواب کي وويل : ولي زه په هغه ځا لعنت ونه وايم په ځاچي رسول الله ﷺ لعنت ويلی وي ، اوياکله چي دادخدای ﷻ په کتاب کي دي ؟ هغې ښځي وويل ماخوقرانکريم ديو پوښ څخه تريله پوښه پوري (له شروع نه تر پایه)

ټول لوستلی مګرماپکي داسي څه نه دي پیدا کړي ، هغه ورته وویل که چیري تالوستلی وي نوتا به پکي پیدا کړي وي ، الله ﷻ په قران شریف کي فرمايي : هرهغه څه چي پیغمبرېي درکوي ، واېې خلئ ، اوله هغه څه چي مو منعه کوي له هغې څخه ډډه وکړی اوله الله ﷻ څخه وبیرېږئ بېشکه چي الله ﷻ سخت مجازات کوونکی دی .[1] هغې ښځي وویل : زماپه فکرچي زه به ستاپه ښځه باندي یو دهغې څخه همداوس ووینم . هغه وویل ولاړه سه اووګوره ، هغه ولاړه اود هغه ښځه یې وکتله خوهیڅ یې هم پرې ونه لیدل هغه ښځه بیرته راغله اوهغه ته یې وویل : ما څه ونه لیدل . هغه وویل : که چیري داسي وي نوموږ به یوځای نه وای سره اوسېدلي ، لیکن که دښځي وېره یابرېتونه راغلي وي نودهغه کښل بیامستحب دي .[2]

## ښځوته دحیاءحکم

۲۱۱_ **مسئله**: الله ﷻ په خپل سپځلي کلام کي فرمايي : ووایه ای محمد ﷺ ایمان لرونکوښځوته چي خپلي سترګي دي پټي کړي له نامحرموڅخه یعني له هغوکسانوڅخه چي دهمېشه لپاره یې نکاح ورسره روا وي لکه دماما ، خاله اواکااولادونه یودبله څخه ، اونور بلداونابلده نامحرموڅخه ، نظرونه خپل (سترګي خپلي) اوبنه

---

۱ - سورة الحشرايت ۷ .

۲ - عن عبدالله ابن مسعود ﷺ لعن الله الواشمات.....فبلغ ذلک امراة من بني اسد يقال لهاام يعقوب ومااتاكم، عمدة القاري شرح البخاري صـ ۲۲۲ نولسم ټوک مکتبه رشیدیه .

ټينګ دي وساتي فرجونه خپل يعني په ناروا طريقه سره دي خپل دشرم ځايونه نه استعمالوي اونه دي ښکاره کوي ښايست خپل هيچاته مګر هغه چي ښکاره کېږي له دغه زينت څخه په وخت کي دضرورت ، او وادي چوي ټکرى (پوړنى) په ګريوانو خپلو چي ښکاره نه سي اونه دي ښکاره کوي ښايست اوځاى دښايست هيچاته مګر لپاره دخاوندانو خپلوچي دغه ښايست دهغوى دى .([1])

خودرضاعي ورور او خورسره هم همېشه نکاح حرامه ده. نوهغوته دښځوزينت ښکاره کول منع دي دښځي زينت ياښايست ښکاره کول خپلي مرتبې لري : هغه ښايست چي ښځي يې دخپل خاوندمخ ته ښکاره کولای سي هغه دنورو محرمو په مخکي لاهم نه سي ښکاره کولای اونامحرموته هيڅکله بېله شرعي ضرورته اجازه نسته چي هغوى دي ښځوته وګوري اويادي ښځي ورته وګوري همدارنګه له نژدې نامحرمه قريبانو څخه پرده نه کول دډېرو ناوړه پېښوسبب کېږي ، نبي کريم ﷺ فرمايلي دي : داسي ښځي به وي زماترزماني په وروسته زمانو کي چي ښکاره اوظاهره به په لباس کي وي ليکن هغوى به لوڅي وي ، او مايله کوونکي به وي دزړونو دخلکو وځانته ، اودوى به خلکوته شوق کوونکي کېږي ، سرونه به يې داوښ د

---

[1] - (وقل للمؤمنات يغضضن من ابصارهن .... ليعلم مايخفين من زينتهن) سورة النور ايت ۳۱ .

بوک په شان وي ، دارنګه ښځې به هیڅکله جنت ته داخلې نه سي اونه به دجنت بوی پیدا کړي .[1]

### دلوږ والي دلفظ معناوي

۲۱۲ـ **مسئله** :- دښځونړی اوباریکه جامه به وي چي بدن به یې ور ځخه ښکاره کېږي - لنډي جامې به یې وي چي یوځه برخه دبدن به یې ورځخه ښکاره کېږي .
- دېري تنګي جامې به اغوندي چي دلاندي بدن داندامونوشکل یې معلومېږي .
الله ﷻ په قرانکریم کي فرمايي : نارینه حاکمان (مقررسوي دي) پرښځوباندي په سبب ددې چي فضیلت (غوره والی) ورکړی دی الله ﷻ ځیني ددوی ته پرځینونوروباندي (نارینه ؤته پرښځوباندي) اوپه سبب ددې چي نفقه (لګښت) کوي دوی (پردغوښځو) دمالونو خپلوځخه يعني دنارینه درجه دښځې ددرجې ځخه لوړه ده اوښځه په جسماني اوفطري ډول نسبت ونارینه ته کمزوري ده .[2]
په تفسیرکي ددې ایت داحدیث شریف راځي : یوې صحابي ښځې ﷺ دخپل خاوند ډېره نافرماني کول ، اخرخاوند داپه چپلاخه ووهله ، دي ښځې خپل پلارته وژړل ، پلاریې درسول الله ﷺ په خدمت کي

۱ - فقه علی المذهب الاربعه کتاب الحدود ص۲۹ پنځم ټوک مکتبه وحیدي کتب خانه .- فتح الملهم شرح المسلم کتاب الباس ص۱۷۲ السم ټوک مکتبه دارالاحیاء التراث العربي
۲ - (الرجال قوامون علي النساء ....) سورة النساء ایت ۳۴ .

حاضرسو اوددې حال يې ورته ښکاره کړی، رسول الله ﷺ وفرمايل: دادي هم له خپل خاوند څخه بدله واخلي په دې وخت کې همدا پورته ايت نازل سو نورسول الله ﷺ وفرمايل: چې زموږ خوښه بله وه اودالله ﷻ اراده بله سوه ، څه چې دالله ﷻ اراده ده په هغه کې خير دی دسورة الحجرات ددې ارلسم ايت څخه معلومېږي چې دالله ﷻ په وړاندې دقيامت په ورځ اوپه دنياکې هغه څوک عزتمند اوقدر ښتن دی چې زيات پرهېزګاره (دګناه څخه ځان ساتونکی) وي.([1])

الله ﷻ دسورة البقرة په ۲۲۸ مبارک ايت په يوه برخه کې فرمايي: اوسته ښځوته (حقوق پرخاوندانوباندې) په شان دهغو(حقوق) چې پردوی(ښځوي) (دخاوندانو) په معروف ښه طريقه سره اوسته نارينه ؤ لره پردې ښځوباندې ښه والی په درجه سره .([2])

يعني که نارينه پرښځوحقوق لري همداډول ښځې په اسلامي طريقې سره پرنارينه ؤ باندي حق لري اونارينه ته ښايي چې له خپلې ښځې سره په هيڅ ډول بده طريقه سره ګذاره اودښځې اسلامي حقوق تر پښنو لاندې نه کړي ، مګر خدای ﷻ چې دانسان جوړ وونکی دی نارينه ؤته يې يوه درجه لوړوالی ورکړی دی په درجه سره دواک اواختيارپرښځوباندې ، خوکه ځيني ضعيفه مسلمانان ښځو ته دښځواسلامي حق نه ورکوي اويا خپلې ښځې ازادي پرېږدي چې په بازاروکې وګرځېږي اويادنامحرمو سره يوځای کار

---

١ - (ان اکرمکم عندالله اتقاکم ...) سورة الحجرات ايت ۱۳ .

٢ - (ولهن مثل الذي عليهن ... وبعولتهن احق بردهن في ذالک ان ارادو اصلاحا) سورة البقرة ايت ۲۸۸.

وکړي داداسلام کمزوري نه ده بلکې دهمدغه انسان کمزوري ده اورسول اللهﷺ فرمايي : څوک چې دلونوتربيت اوساتنه په ښه ډول وکړي هغه به زماسره (په جنت کې)يوځای نوګه په اسلامي روزنه وي .

## دغسل مسنونه طريقه

۲۱۳_ **مسئله** :-دغسل کولو په وخت کې په کاردي چې په يوټوکر باندي خپل عورت پټ کړي اوولمبېږي که چيري يوه تونه توکرنه وي او دی لڅ لغړ غسل کوي نوبياپه کاردي چې په داسي ځای کې غسل وکړي چې څوک نه وي اوکه داسي ځای نه پيدا کيږي نوپه خپله ګوته دي پرهغه مخکه چې دی غسل په کښې کوي پرخپل ځان باندي دايره راوګرځوي اوپه بسم الله سره دي غسل پکښې وکړي[1] ۱- ښځه اوهغه څوک چې لڅ لغړغسل کوي په کاردي چې په ناسته سره غسل وکړي ، اوکه نارينه کالي اغوستي وي نو اختيار لري که په ولاړه غسل کوي اوکه په ناسته سره .
۲-که څوک په لڅ بدن باندي غسل کوي نودغسل په حالت کې به دقبلې پرلوري مخ نه ګرځوي .
۳-ترهرڅه دمخه به لاسونه ترمړوندونو پوري مينځي وروسته به استنجاء کوي اوبيابه دبدن هغه برخه پري مينځي پرکومه چې

۱-الفتاوای هنديه الفصل الثاني في سنن الغسل صـ۱۴ الومړی توک مکتبه فريديه

حقيقي مرداري لوېدلې وي .
۴- وروسته به اودس وکړي خوپښې به نه پريولي که چيرې مستعملې اوبه يې دپښوپه ځای کې درېدلې اوکه نه درېدلې بيادې پريولي .
۵- که چيرې غسل فرضي وي يعني سنت نه وي بيله بسم الله څخه دې نوري دعاګانې نه وايي .
۶- داوداسه وروسته به دسروېښتان دلاس په ګوتوسره دري واره خلال کړي اول راسته طرف اوبياچپه طرف .
۷- اول پرسرباندې اوبه توی کړي اوبيابه پرراسته اوږه اووروسته پرچپه اوږه اوبياپرټول بدن .
۸- پرځپل بدن باندي به دري ځله اوبه توی کړي اولاسونه به پرځپل بدن باندې ومروړي .
۹- هروخت چې دغسل څخه فارغ سو نو په تهوکر (ټول) باندې به ځپل ځان وچ کړي .
۱۰- دډېرضرورت پرته به دغسل په وخت کې دچاسره خبرې نه کوي (۱)

## دکوچني بولې اوشيدې

۲۱۴_ **مسئله** :که دکوچني بولې ياشيدې دانسان پربدن توی سي نوداباید پریولل سي ځکه چې مرداري دي ،ځپله خوشيدې مرداري نه دي خوچې کله معدې ته ولاړې سي نوبه دې وجه مرداري سوې

(۱)- عالمګيري فی سنن غسل ص۱۲ الومړی توک مکتبه رشيديه .

خکه چي موږ ته قی ورته وایو اود کوچني بولي هم مرداري دي کـه څـه هم دمورشيدي خوري .[1]

## ښځي ته طلاق ورکول ښه کارنه دی

۲۱۵ـ **مسئله** : نارینـه تـه خـود طلاق ورکولو اجـازه سـته چـي خپلـي ښـځي تـه طـلاق ورکـړي خوپـه حـدیث شـریف کـي رسـول الله ﷺ فرمايلي دي : دخدای ﷻ په نزد په حلالو شیانو کي ترټولو بدترین شی (دادی چي يو مؤمن خپلي) ښځي ته طلاق ورکړي .[2]
مطلب دادی چي که په ښځه کي څه ناځه بدعادتونه وي امکان سته چي په دا ښځه کي داسي نورخويونه هم وي چي هغه په بله ښـځه کي نه وي نوکه تاسي دښـځي يو بد عادت تـه ګوری اوطلاق ورکـوی نـو ولي يې هغه بل خوی ته نه ګورئ چي ښه دی خکه په اکثـرو وختـونـو کي خاوند خپلي ښځي ته طلاق ورکړي اوبيا يې شيطان ورخخه هېر کړي څه وخت چي يې شـيطان ورځخه هېرکړي نـواوس چـي دوی جماع (نزديکت) سره کـوي دابـه زناوي اوکوچنيان چي پيداکيږي هغه بـه خنګـه وي تاسـي پـه خپلـه فکروکړی نوښـه خبـره داده چـي دخبرو څخه كارواخيستل سي اوکه چيري په خبره سره كارنه کيږي نودخپلي ښـځي څخـه دي خپـل دخـوب پـه وخـت کـي ځـای جلاکـړي اوکه چيري په هغه هم کارنـه وسـو نوبيـادي لـه وهلوڅخه كارواخلي

---

۱ -الموسوعة الفقهيه المقارنة التجريد مسئله ۱۷۲ بولي الصبي ص ۷۳۲ دوهم توک مکتبه محموديه
۲ -سنن ابوداود كتاب طلاق دحديث نمبر ۲۱۷۸ ص ۳۲۰ مکتبه دارالسلام للنشر والتوزيع الرياض .

خوهغه به هم داسي وهل وي چي پرمخ به نه وي اوبدن به نه زخمي کوي اوکه چيري په دغه وهلو سره هم کارونه سو نوبيادي يوځونفره دښځي څخه اويوځونفره دنارينه لخوا سره راجمع سي اوپه خبره به خان پوه کړي اوبيابه په خپل منځ کي مشوره سره وکړي او وروسته به داخبره په ښځه باندي ورعرض کړي يعني ورته وبه وايي که چيري ښځي خبره ومنل خوډېره ښه اوکه يې چيري خبره ونه منل نو بيا به رجعي طلاق وخپلي ښځي ته ورکړي که چيري په هغه هم کار سم نه سونوبيابه بائن طلاق خپلي ښځي ته ورکړي که چيري ښځي خپل ځان سم کړی خوښه خبره ده چي بيابه خاوند اوښځه نوې نکاح سره وتړي اوکه چيري ښځه بياهم نه سمېدله نوبياخوکارخلاص سو خدای ﷻ به دغه سړي ته بله ښځه چي نيک اخلاقه اوښه لمونځ کوونکي وي ورپه نکاح کړي .(١)

## بل چاته ددعاخواست کول

۲۱۶ـ **مسئله** : خپلومشرانواوکشرانوته ددعاخواست کول سنت طريقه ده ځکه چي حضرت عمر ﷺ روايت کوي چي څه وخت ماد رسول الله ﷺ څخه دعمري کولواجازه وغوښتل رسول الله ﷺ دعمري اجازه راکړه اوداسي يې هم راته وفرمايل : «اشرکنايااخي في دعائک ولاتنسانا» ژباړه : ای ورروره ! موږ په دعاکي دخپل ځان سره

١ ـ سورة النساء ايت ۳۴-۳۵ .

شریک کړه اومونږ مه هېره وه .
حضرت عمرؓ وايي کله چي ما د رسول اللهﷺ د ژبي مبارکي څخه دا الفاظ واورېدل نو په دومره خوشحالۍ کي ډوب سوم او د ژبي څخه مي داسي الفاظ را ووتل که یو څوک ټوله دنیا د دې خبري په بدل کي را کړي نه به سم په خوشحاله نو د حضرت عمرؓ د دې خبري څخه دا راته معلومه سوه چي هر څوک کولای سي وبل چا ته د خپل ځان په اړه د دعا خواست وکړي ځکه چي رسول اللهﷺ د حضرت عمر فاروقؓ څخه د دعا طلب کړی دی ، یوازي دا نه چي ثواب لري بلکي سنت طریقه هم ده مونږ باید دا خبره هم د ځان سره وساتو که چیري یو څوک بیت الله شریفي ته ځي یعني حج یا عمره کوي او یا یو بل زیارت ته ځي او یا د یو بنه عالم او شیخ ملاقات ته ځي نو مونږ ورته د دعا خواست وکړو یعني ورته ووایو چي مونږ هم په دعاکي مه هېره وه ځکه د دې حدیث شریف څخه د دې خبري او طریقي جواز ثابت سو.

## اودس مات او استنجاء

۲۱۷_ **مسئله** : د دغه احکامو څخه یو د استنجاء او اودس مات حکم هم دی چي رسول اللهﷺ په دې سلسله کي هغه لارښوونه وکړه چي په هغه کي د صفایي او پاکي لحاظ هم ساتلی دی او د شرم ، حیاء او روغتیا خیال هم ساتل سوی دی ، د شرم او حیاء په باره کي عرب د جاهلیت په زمانه کي دومره بې پرواوه چي د اودس مات په وخت

کـي بـه يـې سـتر کولـو تـه دتمسـخريااستهزاپه نظرکتـل ، رسـول الله ﷺ داضروري وګرځول اوويـې ويـل چـي کـه دستر پټولولپاره بل څه شی نه وي نولړترلږه دي دړيګويـوه غونډۍ جوړه کړي اودهغې ترشـا دي کېنېني چې بې پردې نـه سي ، پـه خپلـه رسـول الله ﷺ دا عادت ؤ چې دحاجت لپاره به ډېرليرې ځای ته وتی .([1])

خو رسول الله ﷺ دخرماباغ دحاجت درفع کولولپـاره زيـات خوښاوه ، کله چي به رسول الله ﷺ کښېناستلوته نږدې کېدی نو خپله جامه به يې پورته کوله .([2])

داوسنۍ زماني داودس مات دځايونوپه ډول په کورنۍ بيت الخلا کي هم اودس مات پوره کول ثابت دي .

نو ددې خبرې څخه داهم معلومه سوه چې دوه نفره کـه نـروي اوکه ښځه داودس مات کولوپه وخت کي دي په خپل منځ کي خبري نه کـوي اورسـول الله ﷺ داهـم ويـل چـي پـه دې کاربانـدې الله ﷻ تـه غضب اوقهر ورځي .([3])

موږاوتاسـي تـه دې خدای ﷻ هـدايت وکـړي چـي ښـځي موټولـه پـه يوځل داودس مات ځای ته ځي اوهلته خبرې اومجلس سره کوي ، سره ددې چې هلتـه بـدبويې هـم وي اوبيـاهم دوی هلتـه مجلس او خبرې سره کوي ، اول خوهلته بايد سترسره وکړي څکـه يـوې ښځي

١ - سنن النسائي دحديث نمبر ١٦ص ٢ مکتبه دارالسلام للنشروالتوزيع الرياض .
٢ - مشکواة المصابيح الطهارة دحديث نمبر ٣٤٦ص ٢٨٨ لومړی ټوک مکتبه البشرای .
٣ - مشکواة المصابيح کتاب الطهارة دحديث نمبر ٣٥٦ص ٢٩٣ لومړی ټوک مکتبه البشرای .

ته دبلې ښځې عورت ليدل نه دي روا ، نوداخبره دکورومشرانوته راجع کېږي چې دخپل کورښځې په دې خبره باندې پوه کړي اوبله خبره داده چې وانسان ته په بيت الخلاکي د هرڅنډ کول اوپردوو ګوتو باندې کښېناستل داعصابو کمزوري راوالي اوشريعت داهم وايي چې کوموښځوته کله کله بهره پيدا کېږي هغه هم ددغه بې سترې په وجه سره ده، داچې وښځې ته دباندې راوتل روانه دي چې نورخلک ورته وګوري سره ددې چې هلته په بازار اوکوڅو کې خولادا ښځې داسې بې ستري هم نه وي اوکه چيرې داخبره رښتياوي چې دټولو ښځوپرده يوه ده نوبياولې ښځې په واده اونور دمجلسوپه ځايوکې بې ستره نه سره کښېني اوقسم قسم جامې ولې اغوندي.

مورډ الحمد لله مسلمانان يوبايد دکفاروکارونه ونه کړو ځکه دکفارو ښځې لڅې وي اونارينه يې په اکثره وختونو کې پټ وي او د مسلمانانو ښځې بايد پټې وي اونارينه که څه هم دنو(ناف) څخه لوړ اوترزنګنونوکښته لڅ هم وي فرق نه کوي ځکه چې رسول الله ﷺ فرمايي : (ومن تشبه بقوم فهومنهم) يعني څوک چې دهرچا سره مشابهت کوي (دامشابهت په اخلاقو کې ، په افعالوکې اوپه کالو کې) نوپه ورځ داخرت به په هغه قوم کې راپورته کېږي .(١)

١ - مشکواة المصابيح کتاب الباس دحديث نمبر ۴۳۴۷ ص ۵۲۷ دريم توک مکتبه البشرای.

## دطلاق عده

۲۱۸_ **مسئله** : دطلاق عده درې مياشتې اولس ورځې ده اودمرګ عده څلورمياشتې اولس ورځې ده خوځه وخت چې سړی خپله ښځه طلاقه کړي فرق نه کوي هرډول طلاق چې وي که رجعي باين اويا مغلظ وي خوچې عده ددغې ښځې نه وي تېره سوې نودغه سړي ته ددغې ښځې خور،عمه،وريره،خاله اوخورپه نکاح روا نه ده .(۱)

۲- که چيرې يوځوک يوه ښځه په نکاح کړي اوداښځه دخپلې ښځې لورهم لري نوکه داسړی ددغې ښځې دښځې لورهم په نکاح کړي ، دواړې په يووخت کې دده په نکاح کې جواز لري .(۲)

۳- بچندرته دپلندرمورپه نکاح کول رواده چې دی يې په نکاح کړي اوبچندرته دپلندرلور رواده خوپه دې شرط چې دبلې ښځې ځخه به وي ، يعني دبچندرله مورڅخه به نه وي .

۴- وسړي ته دمېرې مور رواده چې په نکاح يې کړي اوسړي ته دمېرې لورپه نکاح کول رواده خوپه دې شرط چې دبله خاوند څخه يې وي .

۵- وسړي ته دمړورلوراومورپه نکاح سره رواده خوپه دې شرط چې لوريې دبل خاوندڅخه وي ، دده دزوی څخه نه وي .(۳)

۱ - عالمګيري ص۲۹۷لومړی ټوک .
۲ - بحرائق ص ۹۸ دريم ټوک .
۳ - ردالمحتارص۲۷۹دوهم ټوک .- بحرائق ص۹۲دريم ټوک . - خيرجاري ص ۸۲ .

## دغسل دواجبيدو شرطونه

۲۱۹_ **مسئله** : دفقهاؤ رحمة الله عليهم په اصطلاح کي غسل دبدن (دسره څخه نيولي بياترپښوپوري) پريوللوته وايي .(۱)
دغسل لغوي معنی ده لمبېدل (په اوبوباندي دبدن څخه ناپاکي ليري کول) .
۱-غسل کوونکی به مسلمان وي پرکافرباندي غسل واجب نه دی
۲-بالغ (غټ) به وي څکه پرنابالغ باندي غسل نه دی واجب .
۳-عاقل به وي (پرمست ، لېوني ، اوبېهوښه) غسل واجب نه دی.
۴-دپاکواوبوپراستعمال به قدرت لري (ولي چي داوبوپراستعمال باندي قدرت ونه لري نوغسل پرواجب نه دی) .
۵-دغسل کولوسره ستره به دومره اندازه وخت ولري چي لمونځ پکښي اداسي (که چيري څوک دومره اندازه وخت ونه لري چي غسل اولمونځ دواړه پکښي اداسي نوبياپردغه چاباندي غسل کول نه دی واجب).
۶-جنابت (غټه پې اودسي) به ورته پېښه وي اوکه چيري جنابت نه وي ورته پېښ نوبيا غسل نه پرواجبېږي .
۷-دلمانځه دوخت تنګېدل : صرف دوخت په دخول سره پرسړي غسل نه واجبېږي .(۲)

---

۱-علم الفقه صـ۸۳ لومړی ټوک .
۲-علم الفقه صـ۸۳ لومړی ټوک . - کتاب الفقه صـ۱۷۷ لومړی ټوک .

نوددې شخه دامعلومه سوه چي دجنابت دپېښېدسره غسل کول لازمي نه دی مثلاً يوسړي ته دشپې له خوااحتلام (شيطان خطا ايستل) پېښ سوه نوسمدستي غسل نه وربانديواجبېږي بلکي دسهاردلمانځه ترقضاء کېدلودمخه غسل کول ورته ضروري دي ، نوکه دسستی په وجه لمونځ قضاء کړي ، نوګناهګاردی اوکه په دومره لنډوخت کي جنابت ياشيطان خطاايستل ورته پېښ سي چي دغسل کولوڅخه وروسته دلمانځه وخت نه پاته کېږي نوبيا دي د لمانځه قضاء راوړي ، که چيري حايضه ښځه په داسي وخت کي دحيض اوغسل څخه پاکه سوه چي دتکبيرتحريمي وخت هم نه ؤ نولمونځ ساقط دی اوبياقضائي هم وربانديي نسته ، که دغسل کولو وروسته دومره وخت لاس ته ورغی چي تکبيرتحريمه په کښي ووايي نوبيا دې وخت کي دلمانځه قضاء وربانديي لازمه ده .[1]

## استنجاء

۲۲۰_ **مسئله** : استنجاء پرينځه ډوله ده :

۱ - فرض : هرکله چي انسان ضرورت رفع کړي اوپراندام يې مرداري ديوه درهم څخه زياته وي نوبه دې وخت کي استنجاء فرض ده.

۲ - واجب : هرکله چي دانسان پربدن مرداري ديوه درهم په اندازه وي نو استنجاء کول ورته واجب ده .

۱ - فتاوای دارالعلوم صـ ۱۵۹ دوهم ټوک .

۳-سنت : هر کله چي د انسان پر بدن نجاست تر درهم څخه لږ وي نو استنجاء وهل ورته سنت ده .

۴-کله چي انسان تشي بولي وکړي نو بوازي د هم هغه اندام پريولل مستحب دي .

۵-بدعت : هر کله چي د انسان څخه باد ووزي او مرداري ورسره نه وي په دې وخت کي استنجاء وهل بدعت ده .

بدعت : يعني نوی رواج چي په شريعت کي اصل ونه لري .(۱)

پاملرنه : کوښښ بايد وسي چي بيت الخلا ته د تلو په وخت کي سر په رخچينه يا دسمال سره پټ وي

لاندي شيان استنجاء مکروه کوي : ۱-په راسته لاس بيله عذره . ۲-په هډوکي. ۳- په خوشايي. ۴- په پخه خښته. ۵-په کودرکي . ۶- په سکاره . ۷- په خوراکي شيانو. ۸- په بلګونو. ۹-په نل . ۱۰-په وېښتانو . ۱۱-په واښه . ۱۲- او د قيمت لرونکي توکر په ټوټه . (۲)

يادونه : په هغه ځايونکي چي او د س تازه کېږي او يا غسل کېږي بايد بولي ونه سي .(۳) په حديث شريف کي راځي چي په پنبه او قيمت لرونکي توکر استنجاء کول فکر زياتوي . کله چي څوک بولي وکړي وروسته بايد يو څو ګامه تګ وکړي يا غاړي تازه کړي او يا هم يوه پنبه

۱-النتف في الفتاوای کتاب الطهارات صـ۲۰ مکتبه يوسفيه - عالمګيري فصل الثالث صـ۵۰ لومړی ټوک مکتبه رشيديه

۲-النتف في الفتاوای کتاب الطهارة صـ۲۱ مکتبه يوسفيه

۳-هدايه صـ۷۴ لومړی ټوک مکتبه رشيديه . - عالمګيري صـ۵۰ لومړی ټوک مکتبه رشيديه . - فتح القدير کتاب الطهارات صـ۲۱۷ لومړی ټوک مکتبه رشيديه .

پرېله راواړه وي ترڅوهغه څاڅکي چې وروسته په تناسلي اله کې پاتېږي راووزي ، داچې ځيني خلک دجريان په ناروغۍ اخته دي دهغوی اودس ژرنه وچېږي ، ځيني خلک دبولوکولووروسته سمدستي استنجاء وهي اوياځيني خلک په غسل خانه کې بولي کوي اودستي استنجاء وهي ، نوداډول استنجاء هيڅ صحت نه لري ، کوښښ دي وکړي چې دبولوڅخه وروسته اودس وچ کړي اوښه اطمنان دي ځان ته حاصل کړي اوبيادي استنجاء ووهي .

په استنجاء کې داوبواندازه نه ده ټاکل سوې ، دومره کوښښ دي وسي چې بدبوی يې ورک سي . (١)

که چيري څوک په داسي وخت کې داستنجاء دوهلوضرورت پيدا کوي چې هلته خلک دهروي دعورت دپټېدو امکان نه وي مستحب استنجاء دي پرېږدي ځکه چې دعورت پټول فرض دي .

کله چې بيت الخلاته داخلېږي نودادعاويل مستحب دي «اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعُوْذُبِکَ مِنَ الْخُبُثِ وَالْخَبَائِثِ» .(٢)

اوچپه پښه دي وردننه کړي .(٣)

١ - هدايه ص٧٥ لومړی ټوک مکتبه رشيديه .
٢ - المصنف لابن ابي شيبه کتاب الطهارة دحديث نمبر ٢ ص ٢٢١ لومړی ټوک مکتبه المجلس العلمي بيروت لبنان .
٣ - عالمگيري ص٥٠ لومړی ټوک مکتبه رشيديه .- فقه الاسلامي وادلته ص٢٤٢ لومړی ټوک مکتبه فريديه - فتح القدير ص٢١٢ لومړی ټوک مکتبه رشيديه .

## دلمانځه دوختونوتشريح

۲۲۱ـ **مسئله** : دپنځه وخته لمونځونودوختونوپېژندل :

۱- دسهاردلمانځه وخت : دسپېدې(صبح صادق) څخه پيل بياترلمر ختلوپورې ، په دغه وخت کې دوه رکعته سنت اودوه رکعته فرض لمونځ کېږي ، په دغه وخت کې نه ترلمانځه وړاندې اونه ترلمانځه وروسته نفل کېږي ، خوقضائي لمونځ دسهاردلمانځه په وخت کې کولای شي کله چې لمرراوخېژي نوبيانفل (اشراق اوڅاښت) لمونځونه کولای سي چې له لمرختلوڅخه پيل اوترزوال پوري روا دي.

۲- دماپښين دلمانځه وخت : کله چې لمردمغرب خواته حرکت وکړي (زوال رامنځ ته سي) نودماپښين دلمانځه وخت پيل کېږي بياترهغه وخت پوري چې دهرشي سايه دهغه دوه برابره سي (پرته له هغې سايې چې دلمردرېدلوپروخت له هرشي سره يوځای وي) .

۳- دماخيگردلمانځه وخت : کله چې لمرتردوه چندي واوړي (يعنې دهرشي سايه چې دهغه دوه برابره سي) دماخيگردلمانځه وخت پيل کېږي بياترهغه وخته پوري چې لمرولوېږي ، لمونځ بايدترهغه وخته پوري ونه ځنډول سي چې لمرووېدلوته بيخي ډېرنږدې سي بايه بله وينا چې پرلمرباندې سترگې نه برېښي ځکه په داسي وخت کې لمونځ کول مکروه دی .

الله ﷻ په قرانکريم کې فرمايي : فرمانبرداره اوساتونکي واوسی دڅپلولمونځونوله ټولوشرايطو ، ارکانو ، واجباتواوادابوسره اوپه

اخلاص سره عاجز اوسئ .(١)

په دې پورته ايت شريف کې د (وسطی) لفظ راغلی دی چې د ډېرو علماؤ کرامو رحمة الله عليهم او مفسيرينو رحمة الله عليهم په نظر د ماخيګر لمونځ ورڅخه مقصد دی

۴- د ماښام د لمانځه وخت : د لمر لوېدو څخه وروسته د ماښام د لمانځه وخت پيل کېږي او بيا تر هغه وخته پورې چې شفق (سوروالی) نه وي ورک سوی د اچې سوروالی دی دا د امام ابو يوسف رحمه الله امام محمد رحمه الله او مام شافعي رحمه الله مذهب دی او د اچې شفق سپين والي ته وايي دا د امام ابو حنيفه رحمه الله مذهب دی

۵- د ماخستن د لمانځه وخت : د شفق (سوروالی) له ورکېدو څخه وروسته د ماخستن د لمانځه وخت شروع کېږي او بيا د سپېد (صبح صادق) تر راختلو پورې دوام کوي ، ځينې خلک د شپې دراپورته کېدو عادت لري نو که چيري د وتر لمونځ د شپې تر اخره پورې وځنډوي ډېر ثواب لري او که عادت ونه لري يا په ځان باور نه لري چې راوبه ښ دي سي نو ښه خبره داده چې وتر د ماخستن له لمانځه سره يوځای يې وکړي .(٢) حضرت عمش رضي الله عنه د حضرت سفيان رضي الله عنه څخه او هغه د جابر رضي الله عنه روايت کوي چې رسول الله ﷺ داسې فرمايلي دي : د ماخستن تر لمانځه وړاندې خوب کول مکروه دی ، د ماخستن تر لمانځه وروسته مجلس کول مکروه دی خو هغه مجلس

١ - سورة البقرة ايت ٢٣٨.
٢ - بدائع والصنائع ص ٢٠ لومړی ټوک مکتبه رشيديه.

نه دی مکروه چي ديني معلومات ، ديني مسائل اونوري ګټي په لاس ورځخه راځي ياد نورو بنېګڼوپه اړه وي .[1]

## دجمعې مبارکي دورځي دعا

۲۲۲ـ **مسئله** : هرمسلمان وروړچي دجمعي مبارکي په ورځ له لمانځه وروسته (۱۰۰) ځله (سبحان الله العظيم بحمده) ووايي ، نوددغه دعاويونکی ته يولک ګناوي وربخښل کېږي اوحتی دده دمور او پلار هم څلويښت زره ګناوي بخښل کېږي ، په يوبل حديث شريف کي چي له حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت سوی دی سرورکائنات ﷺ فرمايلي دي:چاچي دغه لوړ کلمات په ورځ کي سل واره وويل نودهغه ټوله ګناهونه به وبخښل سي که څه هم ددرياب دځګ په شان وي .[2]

## مبايل ته اذان يانوروالهي کلمات وراچول

۲۲۳ـ **مسئله** : دشريعت له نظره موبايل ته دزنګ په مقصد داذان يا نوروالهي کلماتو وراچول جوازنه لري ، ځکه چي دادقراني ايتونو او نورو مقدسو کلماتو سپکاوی دی ، زنګ ددې لپاره په

۱- صفوة التفاسير ص۳۵۲لومړی ټوک مکتبه فاروقيه .- مبسوط للسرخسي ص۲۸۸لومړی ټوک مکتبه الغفاريه . - ردالمحتار ص۲۹۶لومړی ټوک مکتبه رشيديه .- فتاوای تاتارخانيه ص۳۰۲ لومړی ټوک مکتبه محموديه . - فقه الاسلامي وادلته ص۷۲۸لومړی ټوک مکتبه فريديه .- شرح الوقايه ص۱۵۶مکتبه حنيفيه .- بدائع والصنائع ص۳۲۰لومړی ټوک مکتبه رشيديه .

۲- رواه ابن سنن في عمل اليوم والليلة ص۲۳۴. متفق عليه. مشکواة شريف ص۲۰۰لومړی ټوک .

کار اچول کېږي چي څوک خبرسي ، لکه يو څوک چي وغواړي له يوچاسره وويني نو کورته په رسېدوسره د هغه د کوردروازه ورټکوي نوهغه خبرېږي همدارنګه د ټليفون زنګ د همدې هدف لپاره دی ، څرنګه چي ټليفون خلک په جيب کي ګرځوي نو کله چي انسان ته شرعي حاجت پيداسي نوتشناب ته ځي ، که چيري په دغه وخت کي يو څوک زنګ ورته راووهي نوايت شريف يااذان شروع سي نوداډېر زيات سپکاوی دی ، دقران عظيم الشان د ايتونو او د الله ﷻ دين ته په سپک نظرکتل حرام دي اوڅوک چي دا کار کوي نوډېر زيات ور باندي ګنهګارکېږي .

دفقهي شريفي علماء کرامو رحمة الله عليهم وايي چي : د الله ﷻ ذکر اومقدسو کلماتو بې ځايه استعمالول جوازنه لري يعني د قرانکريم ويل په حمام ، شتناب اوداسي نوروځايونوکي جوازنه لري ، نو موږ ته په کارده چي ددې ډول سپکاوي څخه ځانونه وساتو اوخپل ټليفون ته داسي زنګ ورواچوچي الهي مسؤليت پکښي نه وي مثلاً تسبيح اوتهليل ويل وراچولای سی .(١)

١ - فتاوای هنديه الباب الرابع في الصلاة والتسبيح وقراءة القران ص٣١٢پنځم ټوک مکتبه رشيديه . - الملتقط في الفتاوای الحنيفيه ص٣٢مکتبه حقانيه .

## پررشوت وركوونكي اورشوت اخستونكي دواړولعنت دی

۲۲۴_ **مسئله** : حضرت عبد[illegible] فرمايي چي : رسول الله ﷺ پررشوت اخيستونكي اورشوت وركوونكي باندي لعنت ووايه ، همدغه الفاظ دبيهقي په روايت كي هم راغلی دی خوهلته يي (رايش)يعني هغه څوك چي درشوت وركوونكی اورشوت اخيستونكی ترمنځ رابطه ولري اوتلي راتلي كوي هغه يې هم ملعون بللی دی .

علامه قطب الدين دهلوي رحمه الله ليكلي دي چي رشوت هغه مال ته ويل كيږي چي يوحاكم يابل حكومتي مسؤل ته په دې مقصد ور كړل سي چي هغه باطل شی حق كړي ياحق شی باطل كړي .(۱)

ظفراحمد العثماني رحمه الله ليكلي دي چي : درشوت وركول كه دظلم لپاره وي يعني ددې لپاره وي چي دی درشوت په وركولوسره پريو چاظلم وكړي نودعلماؤ رحمهم الله په اتفاق سره داكارحرام دی اوكه له خان څخه دظلم ليري كولولپاره وي نوپه دې كي اختلاف دی،ځيني علماء وايي چي جائز دي اوځيني وايي ناجائزدی خودرشوت اخيستل په هر صورت كي مطلقاً حرام دی ، ځكه درشوت اخيستلو په صورت كي له چا څخه دظلم ددفعي تصورهم نه سي كېدای .(۲)

---

۱۔مظاهر حق ص۷۰۲دریم توک .
۲۔مشکواۃ شریف ص۳۲۶ . ۔اسلامي عدالت ص۱۱۷ .

## دالله ﷻ دكلمې معنى او ځانګړتياوې

۲۲۵_ **مسئله** : الله ﷻ : دادخدای ﷻ ذاتي نوم دی چې معنی يې (حق معبوداوحقيقي معبود) ده اولاندي لس ځانګړتياوي لري :

۱- که په ورځ کې زرځله وويل سي نودويونکې يقين په بشپړډول جوړيږي.

۲- که يې ځوک دجمعې په ورځ ووايي نوالله ﷻ به يې مقصد ورپوره کړي.

۳- که پرهرناروغ ووېل سي نوجوړيږي خوچې دمرګ وخت يې نه وي پوره

۴- دهرلمانځه وروسته په ويلوسره ، ويونکی دکشف (پټې معلومات) خاوندجوړيږي.

۵- که (۶۶)واره وليکل سي اوبياپريمنځل سي اواوبه يې ناروغ ته ورکړل سي نوانشاء الله ناروغ به جوړسي .

۶- که چيري ځوک پېری لري اودغه نوم پرپولوښي وليکل سي اوهغه لوښی داوبو ډک سي اوپرهغه مريض باندي دغه اوبه وپاشل سي نو انشاء الله جوړبه سي .

۷- هرځوک چې دالله ﷻ نوم ددې لپاره ووايي چې زما دخدای ﷻ سره مينه پيداسي اوپه دې کې هيڅ شک اوګمان نه کوي نودغه ويونکی به دخدای ﷻ دمحبوبوخلکوځخه وګرځي .

۸-کوم کس چې دهرلمانځه وروسته اووه ځله (هوالله الرحيم) ووايي د هغه ايمان به له منځه نه ځي اوهغه به دشيطان له شره په امان وي

۹- کوم کس چې زرځله (ياالله هو)ووايي نودهغه په زړه کې به دايمان نورتينګ سي .

۱۰- څوک چي د جمعې په ورځ د ماښيګر د لمانځه وروسته مخ پر قبله کښېني تر ماښام پوري (یاالله یارحمن) وايي نو بیا چي د خدای ﷻ څخه مرګه وغواړي الله ﷻ به انشاء الله هم هغه شی ورکوي.(۱)

## دمړي دغسل

۲۲۶_ **مسئله** : مړي ته دغسل ورکولو په وخت کي که دمړي پرېدن باندي زخم وي او پر هغه پټۍ لګېدلي وي نو ليري دي يې کړي اوغسل دي ورکړي.

۲-که مړی دغسل ورکولو وروسته په کور ا بل ځای کي تر يوي شپې پوري پاته سي نو په دوهمه ورځ باندي دبل غسل ورکولو ضرورت نسته.

۳-خاوند ته دخپلې ښځي دمړيني وروسته يوازي دهغې مخ ته دکتلو اجازه سته ، لاس وروړلو او دغسل ورکولو اجازه نسته خو د ضرورت په وخت کي غسل ورکولای سي او قبر ته يې هم کښېنته کولای سي.(۲)

۴-که مړي ته دجنابت څخه غسل یا تیمم نه ؤ ورکول سوی نو دجنازې لمونځ يې نه دی صحيح ،که چيري په دغه قسم په قبر کي ښخ سوی ؤ نو بيا پروانه کوي چي لمونځ ورکړي.(۳)

۱-ترمذي شريف.
۲-فتاوای محموديه صـ۲۱۵ دوهم توک.
۳-فتاوای رحيميه صـ۹۳ پنځم توک.

## دامام اعظم رحمه الله ذكاوت او پوهه

۲۲۷_ **مسئله** : امام رازي رحمه الله وايي چي دامام ابوحنيفه رحمه الله څخه يوچاپوښتنه وكړه چي دصانع (الله جل جلاله پروجود) باندي ستاسره دليل سته ؟ امام ابوحنيفه رحمه الله ورته وويل : هوا راسره سته هغه دادی چي دخپلي ښځي سره دنزديكت په وخت كي پلار دزوی اميد لري او هغه لور سي ، اوكه چيري دلوراميدلري هغه زوی سي ، نوداهر څه دصانع (الله جل جلاله پروجود) دلالت كوي ځكه داانسان په واك كي نه دي اونه دبل چاپه واك اواختياركي دي بلكي دايوازي دالله په قدرت سره كيږي .[۱]

## دمسلمانو ښځوڅخه داسلام غوښتنه

۲۲۸_ **مسئله** : اسلام په لومړي ځل ښځي ته هغه مقام ، مرتبه او حقوق وروبخښل چي تردې دمخه يې تصورلاهم نه كېدی ، نبي كريم صلى الله عليه وسلم دښځودپالني اوژوند پوره قانون وړاندي كړی چي دهغه سره سم كه ښځه دخاوندخدمت ، دهغه دمال ساتنه اواولاد روزنه ترسره كړي نودجنت دكومي دروازې څخه چي وغواړي ور داخلېدلای سي ، دښځولپاره دقرانكريم اوحديث شريف يوڅو هراړخيزه لاړښووني په لاندي ډول دي :

هردين ځان ته يوځانګړی صفت لري ، داسلام ځانګړی صفت حياء

---

۱ - كبيري صـ۱۸دوهم ټوک

د ه نوحياء دځان لپاره عادت وګرځوئ.

دناروا شيانو له ليدلو ځخه ، دخپلو عورتونو ساتنه ، دښايست داسبابو دښکاره کولو څخه ځان وساتئ.

- نامحرمو خلکو ته خپل دزېب اوزينت شيان مه ښکاره کوئ تردې چې دخپلو زرو شرنګهار تردوی پوري مه رسوئ .(١)
- دښځو لپاره داچي خوشبويي ولګوي ، نازکه جامه واغوندي او له کوره ووزي ناروادي اودعرياني (لوڅوالي) اوګناه ته دعوت ورکول دي ، له دي ځخه پرهېزوکړئ .(٢)
- دبېګانه اوغيرمحرم سره دخبروپروخت باندي په خپل لب او لهجه کي نرمي اونزاکت مه پيدا کوئ .(٣)
- پرداسي لارمه تېرېږئ چي هلته نارينه ؤ رش وي بلکي پربغل باندي ځئ اولارپربکوئ.
- دغيرمحرم سري حتی داخښي ، لېوراوداسي نوروسره ديوازي يوځای کېدلو اويوازي سفرکولوڅخه پرهېز وکړئ .(٤)
- نبي کريم ﷺ بازارونه ترټولو بد ځايونه بللي دي ،بېله ضرورته هغه ته دورتلګ پرځای په خپلو محفوظو کورونو اوکلاګانو کي اوسېدل په کاردي .

---

١ - سورة النور ايت ٣١.

٢ - سنن ابي داود كتاب الباس والزينة مكتبه دار السلام للنشر والتوزيع الرياض - فتح الملهم شرح المسلم كتاب الباس والزينة دحديث نمبر ٥٥٢٧ صـ ١٧٢ السم توک مکتبه دار الاحياء التراث العربي

٣ - سورة الحزاب ايت ٣٢.

٤ - بخاري ٥٢٣٢.

- دنارينه ، سره يوځای په مجلسونو ، محفلونو ، تعليم اوزده کړې څخه پرهيز وکړئ .[1]
- ديوې پردی ښځې پټ حال اوصفت خپل خاوندته مه بيانوئ .[2]
- لمونځ اداءکوئ ، درمضان دمياشتې روژه نيسئ اودخپل عزت او ابروساتنه وکړئ .
- دهرسړي په شان دهرې ښځې لپاره دقيامت په ورځ دخپل حساب ورکول دي ، ځکه نودهغه لپاره تياري وکړئ .[3]
- خپلوبچوته داووکالوپه عمرکې دلمانځه شوق اوترغيب ورکوئ اودلسوکالوپه عمرکې يې په زوره په کوئ اووېې وهئ .[4]

## دنوروز لمانځل دشريعت له نظره

۲۲۹ـ **مسئله** : دشريعت له نظره ددې ورځې لمانځل حرام کاردی ځکه دادمجوسيانو اخترد‌ی چې زردشت دمجوسيانولپاره دوې ورځې داخترونو ښوولي وې چې هغه يوه دنوروز (حمل اوله ورځ) اوبله دمهرجان (ميزان اوله ورځ) وه .[5]

اوبل داچې دجاهليت ددورې مشرانودغه دوې ورځې دخوشحالی

1 - بخاري ۹۸۰.
۲ صحيح البخاري كتاب النكاح دحديث نمبر ۲۲۰ ص ۹۳۶ مکتبه دارالسلام للنشروالتوزيع الرياض.
۳ صحيح البخاري كتاب الوصايا دحديث نمبر ۲۷۵۳ ص ۴۵۵ مکتبه دارالسلام للنشروالتوزيع الرياض
۴ - سنن ابي داود كتاب الصلاة دحديث نمبر ۴۹۲ ص ۱۱۰ مکتبه دارالسلام للنشروالتوزيع الرياض .
۵ - الملل والنحل ـ وهوالزرداشتية والثنوية اصحاب الاثنين ص ۲۶۲ لومړی ټوک مکتبه عثمانية .

دپاره هم خوبښي کړي وې نوبيا دهغه وخت خلکو ددوی تابعداري وکړه نويه حديث شريف کې راځي چې حضرت انس ﷺ يې روايت کوي چې رسول الله ﷺ ومدينې منورې ته تشريف راوړی (هجرت يې وکړی) اود مدينې منورې خلکو يو دوې ورځې لمانځلې چې يوه دنوروز (دحمل اوله ورځ) اوبله دمهرجان (دميزان اوله ورځ) وه چې دوی په دغه دوو ورځو کې خوشحالي کوله نو رسول الله ﷺ پوښتنه وکړل چې داڅه دي نوهغوی خپل حال ورته وواېه چې دجاهليت په ورځو کې موږ په دغو دوو ورځو کې خوشحالي کوله نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : په تحقيق سره الله ﷻ ددغه دووورځو په بدل کې خيراوښه تردغه دوو ورځو درکړي دي چې هغه يوه دکوچني اختر اوبله دلوی اختر ورځ ده .(١)

١ مشكواة المصابيح كتاب الصلاة باب صلاة العيدين الفصل الثاني عن انس ﷺ قال قدم رسول الله ﷺ المدينة ولهم يومان يلعبون فيهما ، فقال ماهذان يومان قالوآ كنانلعب فيهما في الجاهلية فقال رسول الله ﷺ قد ابدلكم الله ﷻ بهما يوم الضحى ويوم الفطر ، دحديث نمبر ١٢٣٩ صـ ١٢٩ دوهم ټوک مكتبة البشرای - مرقات المفاتيح شرح المشكواة كتاب الصلاة باب صلاة العيدين من الفصل الثاني عن انس ﷺ قال قدم النبي ﷺ دحديث نمبر ١٢٣٩ دريم ټوک مكتبه رشيديه . - عون المعبود شرح السنن ابوداود كتاب الصلاة باب صلاة العيدين دحديث نمبر ١١٣١ صـ ٢٨٠ دريم ټوک مكتبه قديمي كتب خانه . - فقه على المذهب الاربعه كتاب الصلاة دليل مشروعية صلاة .....ويوم الفطر صـ ٢٩٨ لومړی ټوک مكتبه وحيدي كتب خانه . - حاشيه الطحاوي علي مراقي الفلاح شرح نورالايضاح احكام العيدين من الصلاة وغيرها قال في البحروصلاة العيد شرعت في السنة الاولي من الهجرة كما رواه ابوداود عن انس ﷺ قال قدم رسول الله ﷺ..... صـ ٣٣٢ المكتبه الانصارية . - حجة البالغه العيدين - الاسلام ابدل اعياد الجاهلية والاصل فيهما ان كل قوم لهم يو...... من بلادهم بزينتهم .... كنا نلعب .... يوم الضحى ويوم الفطر صـ ٥٣ دوهم ټوک مكتبه فاروقية - مظاهر حق صـ ٩١٨ دوهم ټوک مكتبه وحيدي كتب خانه . - اشعة اللمعات صـ ٦٤٣ لومړی ټوک مكتبه حنيفيه - بذل المجهود شرح ابي داود صـ ٢٠٠ دوهم ټوک مكتبه الاسلامي - سنن ابي داود صـ ١٦١ دحديث نمبر ١١٣٢ مكتبه رشيديه . - سنن الكبيري البيهقي صـ ٧٠٢ دريم دحديث نمبر ١٤٢٣ - المسند الامام احمد بن حنبل دحديث نمبر ١٢٧٦٢ صـ ١٨ يوولسم ټوک مكتبه دارالحديث القاهرة . - الدرالمختارشرح تنويرالابصار صـ ١٢٦ لومړی ټوک مكتبه امير حمزه كتب خانه . - ردالمحتارشرح الدرالمختار صـ ٣١١ دريم ټوک مكتبه غفاريه . - الفقه الحنيفي

نواوس ددې حديث شريف څخه داراته معلومه سوه چې ددې ورځې لمانځل سخته ګناه ده ، نوهيڅ مسلمان وروراومسلماني خورته نه ده روا چې په دغه ورځ کې اويادداغي ورځې په مناسبت سره يواوبل ته مبارکي ورکړي اوياداسې نوردخوشحالۍ حالت ښکاره کړي لکه نوي کالي کول اواغوستل ، يوبل ته ميلمستياکول ، مکتبونه مدرسې مارکېټونه او دوکانونه تړل ، جشنونه اومېلې جوړول ، نورو خايونوته سفرونه کول ، يواوبل ته تحفې اوهديې ورکول ، پر زيارتوباندې جنډې (بيرغونه) پورته کول ، څوقسمه خواړه تيارول اوخوړل نوداټوله کارونه که دنوروز دتنظيم احترام اولمانځلولپاره نه وي يعني دانيت يې نه وي نوبياخودخپل پېغمبرمحمد ﷺ دلوړ حديث مبارک څخه مخالفت دى يعني سرغړونه ده اودمجوسيانواو مشرکانوسره مشابهت (يووالى) دى اودکافرانو داعمالو تائيد اواثبات دى اودخپل دين سره يوه لويه بېباکي ده اوسره ددې چې رسول الله ﷺ دمشرکانودمخالفت (جلاوالي) حکم کړى دى اوپه حديث شريف کې يې داسې فرمايلي دي : دمشرکانوسره مخالفت وکړئ ږيره غټه کړئ اوبرېتونه کوچني کړئ .(١)
اوپه بل حديث شريف کې رسول الله ﷺ فرمايلي دي : څوک چې د

ص۲۶۳ لومړى ټوک مکتبه دارالعلوم الاسلامي . - اثمارالتکلمل لموسى روحاني بازي ص ۲۸-۲۰ - تحفة العلماء ص ۱۳۹ .
١ - (خالفوا المشرکين وفروااللحي فتقعواالشوارب ، فتح الباري شرح البخاري ص ۳۲۸ لسم ټوک مکتبه رشيديه . - عمدة القاري شرح البخاري کتاب الباس ص۱۷ دورېشتمټوک مکتبه رشيديه

کوم قوم سره مشابهت کوي هغه دهغوی څخه دی .(١)

اوکه چيري بيا دالمانځل دنوروزد تعظيم اواحترام په نيت وي لکه دغه اوس ځيني خلک اوبنځي چي په ډېرښه شوق اوذوق سره دغه لمانځل کوي نوبيا خودکفرخطره (بېره) ورته متوجه ده لکه شيخ ابوحفص کبير رحمه الله چي وايي که څوک يوه دانه هګۍ دنوروز په مناسبت يومشرک (کافر) ته هديه (بخشش) کړه لکه څنګه چي دغه سي دمشرکانوعادت هم دی نودغه شخص په الله جل جلاله سره کافردی ، اونيک اعمال يې برباددي .(٢)

اوقاضي ابوالمحاسن الحسن بن منصورالحنفي رحمه الله وايي که چا داسي شی دنوروزپه ورځ کي رانيوی چي په نورو ورځوکي يې نه رانيوی اويايې په نوروزکي يوشی چاته هديه (بخښنه) کړی نوکه يې په دغه رانيولويا هديه کولوکي دنوروز دتعظيم اواحترام اراده وه لکه چي کافرانو کاوه بس نوپه تحقيق سره دغه شخص کافرسو.(٣)

په فتاوای هنديه کي هم لاندي عبارت راغلی دی:

که څوک دنوروز په ورځ دمجوسيانو ونوروزته ددي لپاره ورغلی

---

١ - مشکواة المصابيح کتاب الباس الفصل الثاني (من تشبه بقوم فهومنهم) دحديث نمبر ٤٣٤٧ دريم ټوک مکتبة البشرای.

٢ - مرقات المفاتيح شرح المشکواة کتاب الصلاة باب صلاة العيدين الفصل الثاني قال ابوحفص الکبيرالحنفي من اهدای في نيروزبيضة الي مشرک تعظيما لليوم فقدکفربالله واحبط اعماله دحديث نمبر ١٤٣٩ ص ٥٤٣ دريم ټوک مکتبه رشيديه .

٣ - وقال القاضي ابوالمحاسن الحسن بن منصورالحنفي - من اشتری فيه شيئالم يکن يشتريه في غيره اواهدی فيه هدية الي غيره فان ارادبذلک تعظيم اليوم الکفر فقد کفر.) مرقات المفاتيح کتاب الصلاة باب صلاة العيدين الفصل الثاني دحديث نمبر ١٤٣٩ ص ٥٤٣ دريم ټوک مکتبه رشيديه .

چې ددوی سره په هغوشیانو کې موافقت وکړي کوم چې دوی یې په دغه ورځ کې تنظیم کوي نویس په دې کارسره کافرسو.(۱)

پاملرنه: نومسلمان ورونه بایدچې دشیطان په دام اوچم کې بندي نه سي اودلږڅه خوشحالۍ اونفسي خواهشاتودپوره کولوپه خاطر د الله ﷻ اودهغه درسول ﷺ دفرمان په مخالفت کولوسره دجهنم داور کندي ته ځان ونه غورځوي بلکې ومسلمانانوروڼواوخویندو ته دا په کاردي چې دالله ﷻ اودهغه درسول ﷺ دراضي کولولپاره کوښښ وکړي ترڅوچې په دنیااواخرت کې کامیاب اودجنت د داخلیدو خاوندان وګرځي.

یادونه: دنوروز(دحمل اوله ورځ) اومهرجان (دمېزان اوله ورځ) په ورځ نفلي روژه نیول مکروه ده، اوکه چیري یوځوک بیاداسي وي

---

۱- ویخرجه الي نیروز المجوس لموافقته معهم فیهاذلک الیوم - ویشرنه یوم نیروزشیئالم یکن یشتریه قبل ذالک تعظیماللنیروزلاالاکال والشرب وباهد یانه ذالک الیوم للمشرکین ولوبیضه تعظیما لذالک لااجابه دعوة مجوسي ....فتاوای هندیه مطلب موجبات الکفرانواع منهامایتعلق بالایمان والاسلام صـ۲۷۷ دوهم ټوک مکتبه رشیدیه . عون المعبودشرح سنن ابي داود کتاب الصلاة باب صلاة العیدین قال المظري فیه دلیل علی ان تعظیم النیروزوالمهرجان وغیرهمااي من اعیادالکفارمنهی عنه - قال ابوحفص من اهدای في نیروزبیضة الي مشرک تعظیما للیوم فقدکفربالله واحبط اعماله دحدیث نمبر ۱۱۳۱ دریم ټوک مکتبه قدیمي کتب خانه . - فتاوای تاتارخانیه کتاب احکام المرتدین فصل في خروج الي النشیدة . قال شیخ ابوبکربن طرخان من خرج الي النشیدة فقد کفر.... الخروج الي النیروز المجوس والموافقة معهم فیمایفعلون في ذالک الیوم ویوافقهم فیصیربه کافرا ... حکی عن ابي حفص الکبیراوان رجلاعبدالله خمسین سنة ثم جاء یوم النیروزفاهدی الي بعض المشرکین بیضة یریدبه تعظیم ذالک الیوم فقد کفربالله واحبط عمله ....صـ۳۵۲ پنځم ټوک مکتبه محمودیه ، حجة الله البالغة . قیل هماالنیروز والمهرجان وانمابدلالانه مامن عید في الناس الاوسبب وجوده ....صـ ۵۳ دوهم ټوک مکتبه فاروقیه .

چي يوه ورځ روژه نيسي اوبله ورځ يې نه نيسي اويه دغه سي حالت کي نوروز اويامهرجان ورباندي راغلی نوبياپروانه لري چي روژه ونيسي .(١)

## دعلم اوعلماءکرامو رحمة الله عليهم فضيلت

۲۳۰ـ **مسئله** : ۱-دحضرت معاويه ﷜څخه روايت دی چي رسول الله ﷺوفرمايل : دچاپه اړه چي الله ﷻدخيرپرېکړه کړي وي نوپه دين باندي يې پوه کړي ، اوپه بل روايت کي راځي چي الله ﷻ څوک نه پوه کوي نوبياپروا نه په کوي اوهمدارنګه په بل حديث کي رسول الله ﷺفرمايي : دچاچي الله ﷻدخيرپرېکړه وکړي نوپه دين باندي يې پوه کړي اوپه تحقيق سره دالله ﷻپه بندګانو کي دالله ﷻ څخه ډېرسخت علماءکرام رحمة الله عليهم بيرېږي .(٢)

۲- دعبدالله بن مسعود ﷜څخه روايت دی ، دی وايي چي رسول الله ﷺوويل : څه وخت چي الله ديوبنده دخيرپرېکړه وکړي نودی په دين سره پوه کړي اودرهنمايي الهام ورته وکړي .(٣)

۳- دابن عمر ﷜څخه روايت دی ،چي رسول الله ﷺوايي : بهترين

---

١ - ردالمحتارعلى درالمختاركتاب الصوم – نقال يكره صوم النيروز والمهرجان اذاتعمد صـ٩١دوهم توک مکتبه رشيديه .

٢ - (عن معاويه ﷜قال قال رسول الله ﷺمن يردالله به خير .....انمايخشي الله من عبادالعلماء) رواه بخاري ومسلم وابن ماجه ،رواه ابويعلي ؛ ورواه الطبراني في الكبير. الترغيب والترهيب صـ٥٠ لومړی توک مکتبه محموديه .

٣ - (عن عبدالله بن مسعود ﷜قال قال رسول الله ﷺاذا ارادالله بعبد ....والهمه رشد ) رواه البزار والطبراني في الكبيربلسنادلاباس به . الترغيب والترهيب صـ٥٠ لومړی توک مکتبه محموديه

په عبادت کې تفقه (په دين کې پوهې)ده (او)بهترين دين تقوای ده .([1])

۴- دحذيفه بن اليمان ﷜څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل : فضيلت او(بهترې) دعلم خير(اوښه) ده ترفضيلت او (بهترې) دعبادت (خو) خير اوښه دين تقوای او(پرهېزګاري) ده .([2])

۵- دابي درداء﷜څخه روايت دی چې وايي : مادسرورکائنات ﷺ څخه واوريدل چې هغه ويل : هرچاچې دعلم لپاره يولاره برابره کړه (ددې دپاره چې پردغه لاربانديمسلمانان دعلم طلب وکړي نو الله ﷻ به وده ته دجنت لاره اسانه کړي ، اوپه تحقيق سره ملائکې ﷩ (دهغه چا ترپښولاندې خپل)وزرونه ږدي چې هغه دعلم طلب کوي اوپه راضي٭ هم وي اودعالم دپاره هغه څوک چې اسمانوکي وي او هغه څوک چې په مځکه کې وي حتی ماهيان په اوبوکې دده لپاره (دالله ﷻ) څخه بخښنه غواړي ، اودعالم فضيلت (چې په ديني علوموسره پوه وي ) پرعابد (چې دخپل ځان دپاره عبادت کوي ) باندي داسې دی لکه دسپوږمی فضيلت اوروښنايي پر دانورو ستورو باندې ، اوپه تحقيق سره علماءکرام رحمة الله عليهم دانبياء﷩ وارثان دي اوپه تحقيق سره دانبياء﷩ څخه نه ديناراونه درهم پاته دي (بلکې) په تحقيق سره (انبياء﷩څخه)علم پاته سوي دي

١ - (عن ابن عمر ﷛ قال قال رسول الله ﷺ افضل العبادة ....الدين الورع)، رواه الطبراني في ........ وفي اسنادمحمدبن ابي ليلي . الترغيب والترهيب ص ۰ ۵لومړی ټوک مکتبه محموديه

٢ - عن حذيفه بن اليمان ﷛ قال قال رسول الله ﷺ فضل العلم خير ....دينكم الورع)، رواه الطبراني في الاوسط ، والبزارباسنادحسن . الترغيب والترهيب ص ۰ ۵لومړی ټوک مکتبه محموديه

نوهرڅا چي د دغه علم څخه برخه واخیستل (نوهغه شخص په) یوه غټه برخه سره برخمن سو .(۱)

۶- دابن عباس ﷺ څخه روایت دی ، دی وایي چي رسول الله ﷺ وفرمایل : هرهغه چاته چي (په داسي حال کي) اجل (مرګ) راورسیږي چي دی دعلم طلب کوي نودی به دالله ﷻ سره په داسي حال ملاقات وکړي چي دده اودانبیاء ﷺ په مابین کي به یوازي یوه درجه دنبوت وي .(۲)

۷- دانس ﷺ څخه روایت دی چي نبي کریم ﷺ وفرمایل : داوو شیان ثواب وبنده ته په قبرکي دده دمرګ څخه وروسته هم ور رسیږي :

۱- هغه څوک چي علم یې زده کړی وي .

۲- هغه څوک چي ویاله یې کندلي وي .

۳- هغه څوک چي څاه یې کندلی وي .

۴- هغه څوک چي ونه یې شنه کړې وي .

۵- هغه څوک چي مسجد یې جوړکړی وي .

۶- هغه څوک چي (بل چاته) یې قرانکریم پاته سوی وي .

---

۱ - (عن ابي درداء ﷺ قال سمعت .....فمن اخذه اخذ بحظ وافر). رواه ابوداود ، ترمذي وابن ماجه وابن حبان في صحيحه والبيهقي . - الترغيب والترهيب ص ۵۱ لومړی توک مکتبه محمودیه .

۲ - (عن ابن عباس ﷺ قال قال رسول الله ﷺ من جاء اجله .....ولم يكن بينه وبين النبيين الادرجة النبوة ). رواه الطبراني في الاوسط . - الترغيب والترهيب ص ۵۲ لومړی توک مکتبه محمودیه .

۷- اوهغه اولاد چي دده دمرګ وروسته وده ته دبخښني دعاوي کوي[۱]
۸- دابي ذر ﷺ اوابي هريرة ﷺ څخه روايت دی دوی وايي چي رسول الله ﷺ وويل: هغه دروازه چي دهغې څخه سړی علم زده کوي دا وماته ترزرورکعتونفلومحبوبه ده اودوی (اصحابوکرام رضي الله عنهم) وويل چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څه وخت چي وطلب العلم (زده کوونکي) ته اجل (مرګ) راسي اودی په دغه سي حالت کي (دعلم په طلب) کي وي نودی مرسو په داسي حال کي چي شهيد دی اوپه بل روايت کي راځي چي رسول الله ﷺ وويل: دا (دروازه) ماته خيرده ترزرو رکعتو نفلوکولو څخه.[۲]
۹- ابي ذر ﷺ په يوه بل روايت کي راځي چي سرورکائنات ﷺ وفرمايل: ای اباذره ﷺ په داسي حال کي چي ته سهارکړي اودالله ﷻ دکتاب څخه يوايت زده کړي داستادپاره خيردی ترهغه چي ته سل رکعت نفل وکړي اوکۀ بياته په داسي حال کي سهار کړي چي ته دعلم دروازه زده کړي عمل پـه کـوي اوکـه عمـل نـه پـه کـوي داستالپاره تردي خيردی چي ته زر رکعته نفل وکړي.[۳]
۱۰- عبدالله بن مسعود ﷺ روايت کوي چي نبي اکرم ﷺ وويل: که

۱- (عن انس ﷺ قال قال رسول الله ﷺ سبع يجري للعبد الجرهن ....اوترک ولدا يستغفرله بعدموته) رواه البزاروابونعيم في حلية وقال: هذاحديث غريب من حديث قتاده .....وهويجمع ماورد ابه من الزيادة والنقصان، انتهی .- الترغيب والترهيب ص ۵۳ لومړی ټوک مکتبه محموديه.
۲- (وروي عن ابي ذر ﷺ وابي هريرة ﷺ انهما قالا الباب يتعلمه الرجل احب ...خيرمن الف رکعته) رواه البزار والطبراني في الاوسط .- الترغيب والترهيب ص ۵۲ لومړی ټوک مکتبه محموديه.
۳- (عن ابي ذر ﷺ قال قال رسول الله ﷺ يااباذرلان تغدو فتعلم .....من ان تصلي الف رکعته) رواه ابن ماجه باسنادحسن .- الترغيب والترهيب ص ۵۲ لومړی ټوک مکتبه محموديه.

چاپوه دروازه دعلم زده کړه ددې دپاره چې دخلکوته يې وروښيي نـوالله ﷻبــه ورتــه (۷۰) وو صــديقانو (ربښـتياويوونکويا خيرات ورکوونکو) ثواب ورکړي .(۱)

۱۱- ابـوهريرة ﷜روايـت کـوي چـې رسـول الله ﷺوايـي : بهترينـه صـدقه داده چـې يوسـړی علـم زده کـړي اووروسـته يـې بياوخپـل مسلمان وروړته وروښيي .(۲)

۱۲- دابن مسعود ﷜په روايت کي راځي چې رسول الله ﷺوويـل : حسد (تمنااواميد) نه سته لاکن په دوشيانوکي سته يودهغه سړي (سره) چې الله ﷻمال ورکړی وي اودی هغه (مال) دحق پـه لاره کـي مصرفوي (اوبـل)دهغـه سـړي (سـره) دی چـي الله ﷻوده تـه حکمـت اوعلم ورکړی وي هغه اداکړي اوخلکوته يې ور ورسوي .(۳)

۱۳دابوهريرة ﷜څخه روايت دي چي رسول الله ﷺوويل : څه وخت چي دادم ﷺزوی مړسو نودده څخه دده عمل قطعه (پرې) سـي مگرنه ددريونفروڅخه (چي دغه لاندي کارونه يې کړي وي) :

۱- جاري خيرات .

---

۱- (وروي عن عبدالله بن مسعود ﷜عن النبي ﷺقال من تعلم بابا .....ثواب سبعين صديقا). رواه ابومنصورالديلمي في مسند الفردوس .- الترغيب والترهيب صـ ۵۴ لومړی توک مکتبه محموديه .

۲- (وعنه ان النبي ﷺقال افضل الصدقة ان يتعلم المرء.....اخاه المسلم). رواه باسنادحسن من طريق الحسن ايضا عن ابي هريرة﷜. - الترغيب والترهيب صـ ۵۴ لومړی توک مکتبه محموديه

۳- (عن ابن مسعود ﷜قال قال رسول الله ﷺلاحسد الافي اثنتين رجل اتاه الله ﷻ.....بهاويعلمها) . رواه البخاري ومسلم (الحسد) يطلق ...وهوالتمني مثل ماله ، وهذا لاباس به وهوالمرادهنا . الترغيب والترهيب صـ ۵۵ لومړی توک مکتبه محموديه .

۲- علم چي نفع ورباندي اخيستل سوې وي.
۳- نيک اولادچي (دمرګ څخه وروسته) دعاورته کوي .[۱]
۱۴- همدارنګه دابي قتاده ﷺ څخه روايت سوی دی ، دی وايي چي رسول الله ﷺ وفرمايل : بهترين شی (دادی چي) سړی يې ترمرګ وروسته (پرېږي دې هغه) درې شيان دي :
۱- نيک اولادچي دعاورته کوي .
۲- داسي صدقه اوخيرات چي جاري وي اوده ته يې ثواب رسېږي
۳-هغه علم دی چي دده څخه وروسته عمل په کېږي .[۲]
۱۵- همدارنګه په هغه حديث کي چي انس بن مالک ﷺ يې روايت کوي نبي کريم ﷺ ويلي دي : په تحقيق سره دعلماء کرامو ﷺ مثل په مځکه کي دستوروپه شان دی چي په (دې ستورو) سره (انسان)په تاريکه کي دوچي اودرياب لارپيدا کوي څکه څه وخت چي دغه ستوري تول سي (ولوېږي نوبيادغه انسان)په شک کي ولوېږي (نژدې وي چي وخپل هدايت اومقصدته ونه رسېږي بلکي) هدايت ورڅخه ورک سي .[۳]
۱۶- سهل بن معاذبن انس ﷺ دخپل پلار ﷺ څخه روايت کوي چي

---

۱ - (عن ابوهريرة ﷺ قال قال رسول الله ﷺ اذامات ابن ادم انقطع ....اوولدصالح يدعوله) . رواه مسلم وغيره .- الترغيب والترهيب ص ۵۵ لومړی ټوک مکتبه محموديه .
۲ - (عن ابي قتاده ﷺ قال قال رسول الله ﷺ خيرمايخلف .....وعلم يعمل به من بعده) . رواه ابن ماجه باسنادصحيح .- الترغيب والترهيب ص ۵۵ لومړی ټوک مکتبه محموديه .
۳ - (عن انس بن مالک ﷺ قال قال رسول الله ﷺ ان مثل العلماء في الارض ....اوشک ان تضيل الهداية) . رواه احمد عن ابي حفص صاحب انس عنه ، ولم اعرفه وفيه رشدين .- الترغيب والترهيب ص ۶ لومړی ټوک مکتبه محموديه .

رسول الله ﷺ وفرمايل: چاچي (خپله) علم زده کړی نو دده لپاره دهرعمل کوونکي په پرتله ثواب ږسېږي سره ددې چي دهغودعمل څخه هم نه کمېږي.(١)

١٧- اوهمدارنګه دابي امامة ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ څخه ددونفروپه اړه پوښتنه وسوه چي يوددوی څخه عابد (دخپل ځان لپاره عبادت کوونکی) اوبل شخص ددوی څخه عالم (په شرعي علوموپوه اوهم بل چاته ښوونکی) وو نورسول الله ﷺ ورته وويل بهتري (اوښه والی) دعالم پرعابد باندي (داسي دی) لکه زمابهتري (اوښه والی) ستاسي پريوکم ترين (درجه) والاباندي نو وروسته بيا رسول الله ﷺ وفرمايل په تحقيق سره ملائکي ﷺ، داسمان اومځکي اهل، حتی مېږی په خپل سوري کي اوحتی ماهيان (په دريابوکي) دخيرپه ښوونکي باندي چي خلکوته (دخير علم ورښوي) درود (دعا) وايي.(٢)

١٨- ابي موسی ﷺ روايت کوي چي نبي کريم ﷺ وويل: په ورځ داخرت الله ﷻ (خپل) بندګان راپاڅوي نوبيا (الله ﷻ) علماء ﷺ ورڅخه جلاکړي (اوداسي) ورته وايي چي ای دعلماء کرامو ﷺ تولی زه (الله ﷻ) خپل علم نه ږدم په تاسوکي ددې لپاره (چي

١- عن سهل بن معاذبن انس ﷺ عن ابيه ان النبي ﷺ قال من علم علمافله .....من اجرالعامل شئ) ورواه ابن ماجه وسهل ياتي الكلام عليه.- الترغيب والترهيب صـ ٥٢ لومړی ټوک مکتبه محموديه.
٢- ورجلان احدهماعابدوالاخرعالم ....علي معلم الناس الخير رواه الترمذي وقال حديث حسن صحيح ورواه البزارمن حديث عائشه مختصر (قال معلم الخيريستغفرله) .- الترغيب والترهيب صـ ٥٢ لومړی ټوک مکتبه محموديه.

تاسوته عذاب درکړم ځئ ولاړسئ ماوتاسوته بخښنه کړېده .(1)

۱۹- په بل حديث شريف کي دابي امامة ﷺ څخه روايت دی چي سرور کائنات ﷺ وفرمايل : په ورځ داخرت به راتلل وسي په عالم اوعابد سره نووعابدته به وويل سي چي وجنت ته داخل سه اووعالم ته به وويل سي ودرېږه ترڅودخلکوشفاعت وکړي .(2)

۲۰- دجابربن عبدالله ﷺ څخه روايت دی چي دنبي اکرم ﷺ فرمان دی چي وايي : په ورځ داخرت به عالم اوعابد (دقبر څخه) راپورته سي وعابدته به وويل سي وجنت ته داخل سه اوعالم ته به وويل سي چي ودرېږه ترداسي وخته پوري (چي ته دهغه چا) شفاعت وکړې چي اداب يې ترنوروښه دي .(3)

۲۱- په بل مبارک حديث کي عبدالله بن عمر ﷺ رانقلوي چي رسول الله ﷺ وويل : بهتري (اوښه‌الی) دعالم پرعابدباندي اويا (۷۰) درجي دی اوپه مابين کي ديوې درجي څخه بياتربلي درجي پوري (دومره اندازه ده لکه) اوياکاله چي آس وځغلي داپه دې خاطر چي په تحقيق سره شيطان يوبدعت پرېږدي دخلکولپاره (مګر) چي په دې پوه سئ (عالم)پلټنه کوي اودهغوی څخه مخنيوی کوي اوعابد

---

۱ - «روي عن ابي موسى ﷺ قال قال رسول الله ﷺ يبعث الله ﷻ .....غفرت لكم» رواه الطبراني في الكبير. - الترغيب والترهيب ص ۵۷ لومړی ټوک مکتبه محموديه .

۲ - «عن ابي امامة ﷺ قال قال رسول الله ﷺ يجاء بالعالم والعابد.....لف حتى تشفع للناس» رواه لاصبهاني وغيره. - الترغيب والترهيب ص ۵۷ لومړی ټوک مکتبه محموديه .

۳ - «عن جابربن عبدالله ﷺ قال قال رسول الله ﷺ يبعث ....حتى تشفع بما احسنت ادبهم» رواه بيهقي. - الترغيب والترهيب ص ۵۷ لومړی ټوک مکتبه محموديه .

(خاص وخپل) عبادت ته مخ وي نه يې وبدعت ته مخ وي اونه بدعت پېژني .([1])

۲۲- دابن عباس ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : يو د فقهي (عالم) د پرسخت دی پرشيطان ترزروعابدانو.([2])

۲۳- همدارنګه دجابر ﷺ په بل روايت کي راغلي دي چي رسول الله ﷺ ويلي دي : علم دوه قسمه دی يوقسم علم په زړه کي دی دا علم نوتفع رسوونکی دی (اودوهم قسم) علم بياپرژبه دی (دابيا دالله ﷻ) له طرفه په انسان باندي (دليل) دی .([3])

۲۴- دابوهريرة ﷺ څخه روايت دی ، دی وايي چي رسول الله ﷺ وفرمايل : چاچي يوه لاره جوړه کړه (ددې لپاره چي خلک) پدې لار کي علم حاصل کړي نوالله ﷻ به دده لپاره (په دې سره) دجنت لاره اسانه کړي .([4])

۲۵- دحضرت علي ﷺ څخه روايت دی چي محمدرسول الله ﷺ وويل : هيڅ يوبنده چوته نه په پښو کوي اونه موزه په پښو کوي اونه جامه اغوندي په طلب کي دعلم مګرنه چي الله ﷻ وده ته بخښنه

۱ - (عبدالله بن عمر ﷺ قال قال رسول الله ﷺ فضل العالم علي العابد سبعين .....لهاولايعرفها) رواه الاصبهاني .- الترغيب والترهيب صـ ۵۷ لومړی ټوک مکتبه محموديه .

۲ - (عن ابن عباس ﷺ قال قال رسول الله ﷺ فقيه واحد .....من الف عابد ) رواه ترمذي في باب العلم وابن ماجه والبيهقي من رواية روح بن جناح تفردبه عن مجاهد عنه .- الترغيب والترهيب صـ ۵۷ لومړی ټوک مکتبه محموديه .

۳ - (عن جابر ﷺ قال قال رسول الله ﷺ العلم علمان .....فذالک حجة الله علي ابن ادم) رواه الحافظ ابوبكر الخطيب في تاريخه باسنادصحيح .- الترغيب والترهيب صـ ۵۸ لومړی ټوک مکتبه محموديه .

۴ - (عن ابي هريرة ﷺ ان رسول الله ﷺ قال من سلک طريقا .....به طريقاالي الجنة ) رواه المسلم وغيره ، وتقدم بتمامه في الباب قبله .- الترغيب والترهيب صـ ۵۹ لومړی ټوک مکتبه محموديه .

کوي دده دګناهونو تر داسي (اندازي) پوري چي ده (دخپل سرای) د دروازې پرچارچوب باندي پښه ايښې وي .[1]

۲۶- حضرت انس ﷺ روايت کړی دی چي نبي کريم ﷺ وفرمايل : څوک چي دعلم په طلب کي (د کور څخه) ووځي نو دا شخص دالله ﷻ په (ساتنه) کښي دی تر هغه وخته پوري چي بيرته راګرځي .[2]

۲۷- دابن عباس ﷺ څخه روايت دی چي سرورکائنات ﷺ وويل : ای الله ﷻ زما پرخلفاؤ باندي ورحمېږي (نو ابن عباس ﷺ وايي) موږ ورته وويل يارسول الله ﷺ ستا خلفاء څوک دي ؟ (نو) رسول الله ﷺ راته وويل چي هغه کسان دي چي زما څخه وروسته راځي زما احاديثو روايت کوي (نورو) خلکو ته يې ورښيي .[3]

۲۸- دابوهريرة ﷺ څخه روايت دی ، دی وايي چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هغه وخت چي دادم ﷺ زوی مړسي نو دده عمل ختم سي ليکن د درو نفرو (عمل نه ختمېږي)

۱- جاري صدقه . ۲- داسي علم چي نفع ورباندي اخيستل کېږي .
۳- نيک او صالح اولاد چي دعاوي ورته کوي .[4]

۱ - (عن علي ﷺ قال قال رسول الله ﷺ ما انتعل عبد قط .... حيث يخطو عتبة داره) رواه الطبراني في الاوسط .- الترغيب والترهيب ص ۶۰ لومړی توک مکتبه محموديه .
۲ - (عن انس ﷺ قال قال رسول الله ﷺ من خرج في طلب ..... حتى يرجع) رواه الترمذي کتاب العلم وقال حديث حسن. الترغيب والترهيب ص ۶۰ لومړی توک مکتبه محموديه .
۳ - (عن ابن عباس ﷺ قال قال رسول الله ﷺ اللهم ارحم .... ويعلمونها الناس) رواه الطبراني في الاوسط .- الترغيب والترهيب ص ۶۲ لومړی توک مکتبه محموديه .
۴ - (عن ابوهريرة ﷺ قال قال رسول الله ﷺ اذا مات ابن ادم ﷺ ..... او ولدا صالح يدعو له) رواه صحيح المسلم وغيره وتقدم هو وما ينظم في سلكه .- الترغيب والترهيب ص ۶۲ لومړی توک مکتبه محموديه .

۲۹- همدارنګه دابوهريرة ﷺ په يوه بل روايت کي راغلي دي چي رسول الله ﷺ وويل : که چاپرماباندي په يوکتاب کي درودووايه نوملائکي ترهغه وخته (دالله ﷺ څخه) دده لپاره بخښنه غواړي چي زما نوم په دغه کتاب کي وي .([1])

۳۰- درسول الله ﷺ په يوه بله وينا کښي راځي چي روايت کوونکی يې ابوهريرة ﷺ دی چي رسول الله ﷺ فرمايي : چاکه پرماباندي په قصدي توګه سره درواغ وويل (نودجهنم) په اورکي دی (خپل ځان ته ځای برابرکړي .([2])

۳۱- په بل مبارک حديث کي چي دمغيره ﷺ څخه روايت دی ، دی وايي مادرسول الله ﷺ څخه واورېدل چي ويل يې : په تحقيق سره پرما باندي درواغ ويل داسي نه دي لکه پربل چاباندي که چاپر ما باندي په قصدسره درواغ وويل (نودخپل ځان لپاره دي دجهنم په اورکي ځای تيارکړي .([3])

۱ - (عن ابوهريرة ﷺ قال قال رسو ل الله ﷺ من صلي علي في كتاب لم تزل .....في ذالک الکتاب) رواه الطبراني وغيره وروي من كلام جعفرين محمد موقوفا عليه .- الترغيب والترهيب صـ ۴۲ لومړی توک مکتبه محموديه .

۲ -وعنه قال قال رسول الله ﷺ من كذب علي متعمدا .....من النار رواه البخاري ومسلم وغيرهما ، وهذاحديث قدروي عن غيرهماحتى بلغ مبلغ التواتروالله اعلم .- الترغيب والترهيب صـ ۴۳ لومړی توک مکتبه محموديه .

۳ - (وعن مغيره ﷺ قال سمعت رسول الله ﷺ يقول ان كذبا علي .....مقعده من النار رواه مسلم واخرجه الترمذي في باب العلم وابن ماجه في المقدمه .- الترغيب والترهيب صـ ۴۳ لومړی توک مکتبه محموديه .

## دعلماؤكرامو ﷭ سره ناسته

۲۳۱_ **مسئله** : ۱-دابن عباس ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : كله چي تاسي دجنت پر باغچو باندي تېرېږی نو صحابه كرامو رضي الله عنهم ورته وويل چي يارسول الله ﷺ دجنت باغچي څه شي دي ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : دعلماؤ كرامو ﷭ مجلس دی .(۱)

۲- همدارنګه په هغه مبارکه وينا کي چي ابي امامة ﷺ يې روايت کوي رسول الله ﷺ ويلي دي : په تحقيق سره (حضرت) لقمان صاحب وخپل زوی ته وويل چي ای زويه پر تاد الازمه ده چي دعلماؤكرامو ﷭ سره مجلس وکړي اوداچي دحكماء خبري واوري په تحقيق سره مړ زړه په نورحكمت سره ژوندی کېږي لکه مړه مځکه چي دباران په څاڅکو باندي ژوندۍ کېږي .(۲)

۳- جابر ﷺ وايي چي نبي كريم ﷺ داحد (دغزا) شهيدان (په قبر) کي دوه دوه نفره اېښول اورسول الله ﷺ داوويل دچا (دكوم شهيد) چي ډېر قران عظيم الشان په ياد دی ؟ نوڅه وخت چي به اشاره ورېوچاته وسوه نوهغه به په لحدکي مخ ته اېښوول کېدی .(۳)

---

۱ - (عن ابن عباس ﷺ قال قال رسول الله اذا امررتم ....العلم) رواه الطبراي في الكبيروفيه راولم يسم .- الترغيب والترهيب صـ ۴۲ لومړی ټوک مکتبه محموديه .

۲ - (عن ابي امامة ﷺ قال قال رسول الله ﷺ ان لقمان قال لابنه .....يحي الارض الميته بوابل المطر) رواه الطبراني في الكبيرمن طريق عبيدالله بن زمرعن علي بن يزيدعن القاسم ....والله اعلم .- الترغيب والترهيب صـ ۴۳ لومړی ټوک مکتبه محموديه .

۳ - (عن جابر ﷺ ان النبي ﷺ كان يجمع بين .....احدهما لدمه في لحد) رواه البخاري في باب الجنائز والمغازي .- الترغيب والترهيب صـ ۴۲ لومړی ټوک مکتبه محموديه .

۴- په بل حديث شريف كي چي دابن عباس ؓ څخه رانقل سوى دى رسول الله داسي فرمايلي دي: بركت (حاصلول) دمشرانو څخه دى (دمشرانو او ښو خلكو په ناسته ولاړه سره بركت حاصلېږي). (۱)

۵- همدارنګه دابن عباس ؓ په بل روايت كي راځي چي رسول الله وويل: هغه څوك زموږ څخه نه دى چي دمشرانو عزت (احترام) نه كوي او پر كوچنيانو باندي رحم (شفقت) نه كوي او امر په ښو كارو سره او نهې دبدكارو څخه نه كوي. (۲)

۶- دعبدالله بن عمر ؓ څخه روايت دى، دى وايي چي ماته نبي كريم ﷺ څخه (دغه لاندي خبره راورسېدل) چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هغه څوك زموږ څخه نه دى چي زموږ پر كوچنيانو باندي شفقت نه كوي او دمشرانو حق نه پېژني. (۳)

۷- دواثلته بن اسقع ؓ څخه روايت دى چي رسول الله وويل: هغه څوك زموږ څخه نه دى چي زموږ پر كوچنيانو شفقت نه كوي او د مشرانو عزت نه كوي. (۴)

۱ - (عن ابن عباس ؓ ان رسول الله قال البركة مع اكابركم) رواه الطبراني في الاوسط والحاكم، قال صحيح علي شرط مسلم. - الترغيب والترهيب ص ۶۲ لومړى توک مكتبه محموديه.

۲ - (عن ابن عباس ؓ قال ليس منا من لم يوقرالكبير......... عن المنكر) رواه احمد والترمذي وابن حبان في صحيحه. - الترغيب والترهيب ص ۶۲ لومړى توک مكتبه محموديه.

۳ - (عن عبدالله بن عمر ؓ يبلغ به النبي ﷺ قال ليس منا من لم يرحم صغيرنا....حق كبيرنا) رواه الحاكم وقال صحيح علي شرط مسلم. - الترغيب والترهيب ص ۶۲ لومړى توک مكتبه محموديه.

۴ - (وعن واثلته بن واسقع ؓ قال قال رسول الله ﷺ ليس منا من لم ....ويجل كبيرنا) رواه الطبراني من روايت ابن شهاب عن واثلته.....- الترغيب والترهيب ص ۶۲ لومړى توک مكتبه محموديه

۸- عمربن شعيب دخپل نيکه ﷺ څخه روايت کوي چي په تحقيق سره درسول الله ﷺ فرمان دی چي وايي : هغه څوک زموږ څخه نه دی چي زموږ پرکوچنيانو باندي شفقت نه کوي اوزموږ دمشرانو عزت نه پېژني .([1])

۹- دابوهـــريرة ﷺ څخه روايت دی چي نبي کريم ﷺ وفرمايل : علم زده کـــړئ دعلم دزده کړي لپاره (دزړه) ارام اوعـــزت سته (هـــر چا چي دعلم څخه (يوڅه)زده کــړه نودده لپاره به عاجـــزي وي (دی به عاجـــزه وي) .([2])

۱۰- همدارنګه دابوهريرة ﷺ په يوبل روايت کي راځي چي رسول الله ﷺ وويل : په تحقيق سره په مؤمن پوري دده دمرګ څخه وروسته دده دعمل اونېکي څخه څوشيان ورته رسېږي :

۱- هغه علم چي ده زده کړی وي اوبيايې نشـــر کړی وي .
۲- چي ده نيک (صالح) اولاد پرې اينبی وي .
۳- قـــرانکريم په ميراث کي ور څخه پاته سوی وي .
۴- مسجد يې جـــوړکړی وي .
۵- دمسافـــرانولپاره يې کـــور جـــوړکړی وي .
۶- وياله کېنل اوجـــوړول .

[1] - (عن عمربن شعيب عن جده ان رسول الله ﷺ ليس منامن .....شرف كبيرنا) رواه الترمذي وابوداود الاته قال .....- الترغيب والترهيب صـ ۶۵ لومړی ټوک مکتبه محموديه .
[2] - (عن ابوهريرة ﷺ قال قال رسول الله ﷺ تعلموا العلم ...لمن تعلمون منه) رواه الطبراني في الاوسط .- الترغيب والترهيب صـ ۶۵ لومړی ټوک مکتبه محموديه .

۷- چې په خپل ژوند اوجوړوالي کي يې خيرات کړی وي .(۱)

۱۱- دقتادة ﷺ څخه روايت دی ، دی وايي چې رسول الله ﷺ ويلي دي : درې شيان خير دي چې سړی يې دمرګ وروسته پرېږدي :

۱- صالح اولاد چې دعاورته کوي .

۲- داسي صدقه چې جاري وي اوده ته يې ثواب رسېږي .

۳- داسي علم چې دده وروسته په هغه باندي(نورخلک)عمل کوي (۲)

۱۲- سمرة بن جندب ﷺ روايت کوي چې سرورکائنات ﷺ وويل : ترداسي علم چې هغه نشر(نوروخلکوته ورسېږي ) سي بله ښه صدقه نسته چې خلک يې کوي .(۳)

## دعلم پټوونکي په اړه احاديث

۲۳۲_ **مسئله** : ۱- دابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چې په تحقيق سره رسول الله ﷺ وفرمايل:دچاڅخه چې د(شرعي)علم پوښتنه وسي (سره ددې چې دی هم معلومات لري)اودی هغه پټ کړي نوپه ورځ داخرت به دجهنم داورڅخه يوقيضه په خوله کي ورولوېږي .(۴)

۱- (عن ابي هريرة ﷺ قال قال رسول الله ﷺ ان مها يلحق المومن ... من بعد موته ) رواه ابن ماجه باسناد حسن والبيهقي ورواه ابن خزيمه في ......- الترغيب والترهيب صـ ۶۸ لومړی ټوک مکتبه محموديه .

۲- (عن قتاده ﷺ قال قال رسول الله ﷺ خير ما يخلف الرجل .... علم يعمل به من بعده ) رواه ابن ماجه باسناد صحيح ...رواه مسلم .- الترغيب والترهيب صـ ۶۶ لومړی ټوک مکتبه محموديه .

۳- (عن سمرة بن جندب ﷺ قال قال رسول الله ﷺ ماتصدق .... علم ينتشر) رواه الطبراني في الكبير وغيره .- الترغيب والترهيب صـ ۶۸ لومړی ټوک مکتبه محموديه .

۴- (عن ابوهريرة ﷺ قال قال رسول الله ﷺ من سئل عن علم فكتمه الجم ...بلجام من النار) رواه ابوداود على شرط الشيخين. الترغيب والترهيب صـ ۷۰ لومړی ټوک مکتبه محموديه .

۲- عبدالله بن عمر ﷺ روایت کوي چي په تحقیق سره رسول الله ﷺ وویل : دچاځخه چي د (شرعي) علم پټ کړي (نو) په ورځ دقیامت به یې (په خوله کي) دجهنم داورقیضه ور واچوي .(۱)
۳- اوپه بل مبارک حدیث کي دابن عباس ﷺ څخه روایت دی چي سرورکائنات ﷺ فرمایلي دي : دچاځخه چي د(شرعي) علم پوښتنه وسي اودی هغه پټ کړي (نو) په ورځ دقیامت به (په داسي حال کي) راسي چي په خوله کي به یې دجهنم داورقیضه وي . اوڅوک چي په قران عظیم الشان کي داسي څه وایي چي په قرانکریم کي نه وي یعني بېله علم دقرانکریم څخه څه وایي (نو) په ورځ دقیامت به راسي چي په خوله کي به یې دجهنم داوربوقیضه وي .(۲)
۴- ابي سعید ﷺ وایي چي نبي کریم ﷺ وویل : چاکه داسي علم پټ کړی چي الله ﷻ په هغه سره وخلکوته نفع رسول ددین په لاز کي (نو) را به سي په ورځ دقیامت چي الله ﷻ به دجهنم داورپه قیضه سره قیضه کړی وي .(۳)
۵- همدارنګه دابوهریرة ﷺ په یوه بل روایت کي راځي چي رسول الله ﷺ وفرمایل : مثال دهغه چاداسي دی چي علم زده کړي (اوبیا

۱ - (عن عبدالله بن عمر ﷺ قال من کتم .... بلجام من نار) رواه ابن حبّان ... وقال صحیح لاغبارعلیه .- الترغیب والترهیب صـ ۷۰ لومړی توک مکتبه محمودیه .
۲ - (عن ابن عباس ﷺ قال قال رسول الله ﷺ من سئل عن علم ..... بلجام من نار.... ومن قال في قران بغیرمایعلم .... بلجام من نار) رواه ابویعلي .... بسندجدیدبالشرط الاول فقط .- الترغیب والترهیب صـ ۷۰ لومړی توک مکتبه محمودیه .
۳ - (عن ابي سعید الخدري ﷺ قال قال رسول الله ﷺ من کتم .... یوم القیامة بلجام من نار) رواه ابن ماجه في المقدمه الباب .- الترغیب والترهیب صـ ۷۱ لومړی توک مکتبه محمودیه .

دهغه) علم په اړه چاته معلومات نه ورکوي لکه يوځوک چي خزانه جوړه کړي اوبيا يې (دالله ﷻ په لاره کي اويا په خپل ځان باندي) نه نفقه کوي.[۱]

۶- دابن عباس ﷺ څخه روايت دی، دی وايي چي په تحقيق سره سرورکائنات ﷺ وويل: د(شرعي)علم ښوونه کوئ په تحقيق سره ستاسو خيانت په علم کي (داډېر)سخت دی تر خيانت په مال کي (څکه)په تحقيق سره الله ﷻ (په ورځ دقيامت)ستاسوڅخه پوښتنه کوي.[۲]

۷- درسول الله ﷺ په هغه مبارک حديث کي چي زيدبن ارقم ﷺ يې راروايت کوي داسي ويلي دي: ای الله ﷻ زه پناه غواړم په تاسره د داسي علم څخه چي نفع نه په اخيستل کېږي، دداسي زړه څخه چي عاجزي نه وي پکښې، دداسي نفس (خواهش) څخه چي نه سرېږي او دداسي دعوت (دعاکولو)څخه چي دهغه لپاره قبول نه وي.[۳]

۸- دابي برزه الاسلمي ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ فرمايلي دي: (دقيامت په ورځ به)يوبنده (دځپله ځايه څخه) ونه ښوري تر داسي وخته پوري چي دده څخه دده دعمرپوښتنه ونه سي چي په څه کي دي تير کړی، اودده دعلم چي څه دي په پکښې وکړه

۱- (عن ابي هريرة ﷺ ان رسول الله ﷺ قال مثل الذي يتعلم العلم ثم لايحدث ......لاينفق منه) رواه الطبراني في الاوسط - الترغيب والترهيب ص ۷۱ لومړی توک مکتبه محمديه.
۲- (عن ابن عباس ﷺ النبي ﷺ قال تناصحوا في العلم ، فان وان الله ســائلكم) رواه الطبراني في الكبير .- الترغيب والترهيب ص ۷۲ لومړی توک مکتبه محمرديه.
۳- (عن زيد بن ارقم ﷺ ان رسول الله ﷺ كان يقول اللهم اني .....لايستجاب لها) رواه مسلم والترمذي والنسائي .- الترغيب والترهيب ص ۷۲ لومړی توک مکتبه محمرديه

، دده دمال چي دکومه ځايه څخه دي پيدا کړی اوپه څه کي دي مصرف کړی اودده دبدن څخه چي په څه کي دي زوړکړی .([1])

۹- معاذبن جبلﷺوايي چي نبي اکرمﷺوويل : دقيامت په ورځ به يوبنده (دخپله ځايه څخه) ونه ښوري ترداسي وخته پوري چي دده څخه دڅلوروشيانوپوښتنه ونه سي :

۱- دعمرچي په څه کي دي تيرکړئ .

۲-دځواني چي په څه کي دي زړه کړه .

۳- دمال چي د کومي لاري دي پيدا کړی اوپه څه کي دي مصرف کړ

۴- دعلم چي څه عمل دي په وکړ.([2])

۱۰- وليدبن عقبهﷺروايت کوي چي ســرورکائناتﷺفــرمايلي دي : په تحقيـق سره دجنت خلک (دجهنم) داوروخلکوتـه ورسي او پوښتنه ورڅخه وکړي چي دڅه شي په وجه (دجهنم) اورتـه داخل ســـواست (نوجنتيـان ورتـه په خـــواب کي وروايي) قسم په اللهﷻ مـوږ و جنت تـه نـه يوداخل ســوي مګرپـه څـه چي ســتاسوڅخه مــوزده کـړي وو (نو)ددوږخ خلـک بـه ورتـه وايـي چي مـــوږ هغه څـوک وو) چي ويل به مـــواوکول به مـــو نه .([3])

[1] - عن ابي برزه الاسلميﷺقال قال رسول اللهﷺلاتزل قدم عبد....فيم ابتلاه) رواه الترمذي وقال حديث حسن صحيح .- الترغيب والترهيب صـ ۷۲لومړی ټوک مکتبه محموديه .

[2] - (من حديث معاذبن جبلﷺعن النبي ﷺقال ماتزال قد ماعبد....وعن علمه ماذاعمل فيه ) رواه البيهقي .- الترغيب والترهيب صـ ۷۳لومړی ټوک مکتبه محموديه .

[3] - (روي عن الوليدبن عقبهﷺقال قال رسول اللهﷺان اناسـامن اهل الجنة .....ولاتفعل ) رواه الطبراني في الكبير .- الترغيب والترهيب صـ ۷۴لومړی ټوک مکتبه محموديه .

۱۱- دمعاذ بن جبل ﷺ څخه روایت دی ، دی وایي چي زه رسول الله ﷺ ته ورغلم او یا ما ور ږغ کړل چي رسول الله ﷺ پر بیت الله شریفه طواف (راګرځېدی) کوی نوما ورته وویل چي ای د الله ﷻ رسوله ﷺ کوم خلک بد (اوشریر) دي رسول الله ﷺ راته وفرمایل : الله ﷻ بخښونکی دی ، دخیر پوښتنه کوه دشر او شریرو خلکو پوښتنه مه کوه (او په خلکو کي) شریرخلک هغه شریرعلماء دي .[۱]

۱۲- دبرزه الاسلمي ﷺ په بل روایت کي راځي دی وایي رسول الله ﷺ ویلي دي :دهغه چامثال چي وخلکوته دخیرعلم ورښيي او خپل ځان یې هیر کړی وي (داداسي) مثال لري لکه پلیته (یعني پلیته والا څراغ) چي وخلکوته روښنايي ورکوي او خپل ځان سوځوي .[۲]

۱۳- دجندب بن عبد الله الازدي ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : مثال دهغه چاچي وخلکوته دخیرعلم ورښيي او خپل ځان هیروي داسي دی لکه څراغ چي وخلکوته روښنايي ورکوي او خپل ځان سوځي .[۳]

۱۴- په بل حدیث شریف کي دابوهریرة ﷺ څخه روایت دی چي نبي کریم ﷺ وویل : دقیامت په ورځ (هغه) سخت ترین عذاب والا (هغه)

---

۱ - وعن معاذ بن جبل ﷺ قال تعرضت اوتصديت لرسول الله ﷺ . شرار العلماء في الناس) رواه البزار فيه .- الترغيب والترهيب صـ ۷۲ لومړی ټوک مکتبه محموديه

۲ - روي عن برزه ﷺ قال قال رسول الله ﷺ مثل الذي يعلم الناس .....وتحرق نفسها) رواه البزار .- الترغيب والترهيب صـ ۷۲ لومړی ټوک مکتبه محموديه .

۳ - وعن جندب بن عبد الله الازدي ﷺ عن رسول الله ﷺ قال مثل الذي يعلم .....للناس ويحرق نفسه) رواه الطبراني .... - الترغيب والترهيب صـ ۷۲ لومړی ټوک مکتبه محموديه .

عالم دی چي په خپل علم يې نفعه نه وي اخيستې .(۱)
۱۵- همدارنګه دانس بن مالک ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : په تحقيق سره سړی مؤمن نه سي کيدای ترڅوچي زړه يې دژبې (دخبري) سره برابره نه وي اوژبه يې دزړه (دخبري) سره برابره نه وي اوترڅوچي ويل يې دعمل (کولو)سره جلانه وي (ويل او کول به يې يورقم وي) اودده دضرر څخه دده همسايه په امن کي نه وي .(۲)

## اخلاص اوپاک نيت

۲۳۳_ مسئله : ۱-دانس ﷺ څخه روايت دی چي حضرت رسول الله ﷺ وفرمايل : هرڅوک چي ددنياڅخه په داسي حال کي ولاړسي (مړسي)چي دالله ﷻ سره اخلاص لري (اودااقرارکوي چي) الله ﷻ يودی شريک نه لري ، لمونځ کوي اوزکات ورکوي (نوڅه وخت چي دی ددنياڅخه ولاړسي نو) الله ﷻ راضي دده څخه دی (۳)
۲- په بل حديث شريف کي دمعاذبن جبل ﷺ څخه روايت دی ، دی وايي چي څه وخت زه نبي کريم ﷺ يمن (ديمن ښار) ته استولم (نو) ما ورسول الله ﷺ ته وويل چي ماته وصيت (ښوونه) وکړه (نو)رسول

۱ - (عن ابوهريرة ﷺ قال قال رسول الله ﷺ اشدالناس .. عالم لم ينفعه علمه ) رواه الطبراني في الصغيروابيهقي .- الترغيب والترهيب ص ۷۵لومړی ټوک مکتبه محموديه
۲ - (عن انس بن مالک ﷺ عن رسول الله ﷺ قال ان الرجل لايکون ....وبامن جاره بوائقه ) رواه الاصبهايي باسنادفيه نظر .- الترغيب والترهيب ص ۷۵لومړی ټوک مکتبه محموديه .
۳ - (عن انس ﷺ عن رسول الله ﷺ من فارق الدنيا....عنه راض وسلم ) رواه ابن ماجه والحاکم وقال صحيح على شرط الشيخين .- الترغيب والترهيب من حديث - الترغيب في الخلاص والصدق ص۲۲لومړی ټوک مکتبه محموديه .

الله ﷺ راته وويل : په دين كي اخلاص وكړه (يعني دين دي دالله ﷻ لپاره كړه) اولږعمل ستادپاره كفايت كوي .(١)

٢- دثوبان ﷺ څخه روايت دی چي مادرسول الله ﷺ څخه واورېدل چي ده ﷺ وويل : خوشحالي ده مخلصانولره (څكه) دوی دهدايت څراغان دي ددوی څخه هره دظلم فتنه روښانه كېږي (يعني ددوی په وجه هره مسئله روښانه كېږي) . (٢)

٣- همدارنګه دابي درداء ﷺ څخه روايت دی ، دی وايي چي رسول الله ﷺ ويلي دي : دنياا وهغه څه چي په دنيا كي دي دواړه معلونان دي مګر نه هغه څه چي خاص دالله ﷻ لپاره وي .(٣)

٥- رسول الله په هغه حديث كي چي عباده بن صامت ﷺ روايت كوي فرمايي : چي داخرت په ورځ به دنيا راوستل سي نو(دالله ﷻ) دطرفه به ورته وويل سي هغه څه دي ورڅخه جلاسي چي خاص دالله ﷻ لپاره وي اوهغه نوربه (دجهنم) په اوركي وغورځول سي .(٤)

٦- حضرت عمربن خطاب ﷺ روايت كوي دی وايي چي مادرسول الله ﷺ څخه واورېدل چي رسول الله ﷺ وفرمايل : په تحقيق سره عملونه په نيت پوري ارتباط لري اوپه بل روايت كي راغلي دي په

---

١- (عن معاذبن جبل ﷺ قال حين بعث ..... يكفك العمل القليل ) رواه الحاكم من طريق عبيدالله بن دحر عن ابن ابي عمران ، وقال صحيح الاسناد كذاقال . - الترغيب والترهيب صـ ٢٢ لومړی ټوک مكتبه محموديه

٢- (عن ثوبان ﷺ قال سمعت رسول الله ﷺ يقول طوبي للمخلصين ..... كل فتنة ظلما ) رواه البيهقي . - الترغيب والترهيب صـ ٢٣ لومړی ټوک مكتبه محموديه

٣- رواه الطبراني باسنادلاباس به . - الترغيب والترهيب صـ ٢٢ لومړی ټوک مكتبه محموديه

٤- (عن عبادة بن صامت ﷺ قال يجاء بالدنيا يوم القيامة ...... فيماز ، ويرمي سائرلي النار) رواه البيهقي عن شهربن حوشب عنه موقوفا.

تحقیق سره دهرسړي دپاره دهغه وخت نیت دی نو که دچا هجرت دالله ﷻ اودهغه درسـول لپاره وو نو دهغه هجرت دالله ﷻ اودهغه درسـول الله ﷺ لپاره دی او کـه دچا هجرت ددنیالپاره وي نوهغه ته به ورسـېږي اوکه دچا هجرت دیوې ښـځې دنکاح کولولپاره وو نو دده هجـرت دهغه دپاره دی .(١)

٧- دابوهریرة رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل : په تحقیق سـره الله ﷻ نـه ګـوري ستاسـي وبـدنو اورنګونوتـه لـیکن الله ﷻ (ستاسي) وزړونوته ګوري .(٢)

٨- دابـن عبـاس رضي الله عنه څخه روایت دی ، دیٰ وایـي چـي رسـول الله ﷺ فرمايي : په جهنم کي یوه شېله ده چي جهنم ددغي شېلي څخه په ورځ کي څلورسـوه واره پناه غواړي داشېله درسول الله دهغه امتي لپاره چمتوسوي ده (چي خپل تول کارونه) دریالپاره کوي (دمثال په توګه) دالله ﷻ قـران يي په یادوي ، ببله دې چي دالله ﷻ دذات لپاره يي وايي (لیکن دی يي دریالپاره وايي) ، دبیت الله شـریفي حج کوي اویادجهادلپاره ووځي (مګردوی سره دریا فکروي) .(٣)

١ - (عن عمربن خطاب رضي الله عنه قال سمعت رسول الله ﷺ یقول انماالاعمال بالنية .....فهجرته الي ماهاجر اليه) رواه البخاري في بدء الوحي والمسلم في الامارة حديث ١٥٥ ، وابوداود في الطلاق باب ١١ ، والترمذي في فضائل الجهادباب ١٦ ، والنسائي في الطهارة باب ٥٩ ، قال الحافظ وزعم بعض المتاخرين ان هذا الحديث بلغ التواتر، وليس كذالک فانه انفرد.....وقال الخطابي لااعلم في ذالک خلافا بين اهل حديث والله اعلم . - الترغيب والترهيب ص ٢٥ لومړی ټوک مکتبه محموديه .

٢ - (عن ابوهريرة رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ ان الله لاينظرالي ......ولكن ينظرالي قلوبكم) رواه المسلم .- الترغيب والترهيب ص ٢٦ لومړی ټوک مکتبه محموديه

٣ - (عن ابن عباس رضي الله عنه عن النبي ﷺ قال ان في جهنم لواديا ....وللخارج في سبيل الله) قال الحافظ رفع حديث ابن عباس رضي الله عنه غريب ولعله موقوف ، والله اعلم .- الترغيب والترهيب ص ٣٢ لومړی ټوک مکتبه محموديه .

۹- ابي سعيد الخدري ﷺ روايت کوي چي رسول الله ﷺ وويل : که چاپاک مال وخوړی او په سنتوسره يې عمل وکړی او خلک دده دازار او تکليف څخه په امن کي وي (نو) جنت ته به داخل سي (نو) صحابه کرامو رضي الله عنهم ورسول الله ﷺ ته وويل چي دا (داسي کسان) خو ستا په امت کي نن ورځ ډېردي (نو) رسول الله ﷺ ورته وفرمايل چي دا به زما په قوم کي زما څخه وروسته راسي .([1])

۱۰- همدارنګه دابن عباس ﷺ په بل روايت کي راځي چي رسول الله ﷺ ويلي دي : که چا په هغه وخت کي زما په سنتوسره لاس ټينګ کړي چي زما امت په فساد کي واقع سوی وي نو ددغه شخص لپاره دسلو شهيدانو ثواب ورکول کېږي .([2])

۱۱- دمعاويه ﷺ څخه روايت دی چي يو وخت رسول الله ﷺ زموږ سره وو چي ولاړسو او يې ويل چي : خبراوسئ چي په تحقيق سره هغه اهل کتاب چي ستاسي څخه دمخه وه (نو هغه) پردواويا (۷۲) ډلو ويشل سوي او په تحقيق سره دغه (زماامت) به پردرواويا (۷۳) ډلو وويشل سي (ليکن) دواويا ډلي به (دجهنم) اورته ورلوېږي او يوه ډله

---

۱- (عن ابي سعيد الخدري ﷺ قال قال رسول الله ﷺ من اکل طيبا وعمل .....وسيکون في قوم بعدي) رواه ابن ابي الدنياني کتاب الصمت وغيروالحاکم وللفظ له ، وقال صحيح الاسناد . - الترغيب والترهيب ص ۴۱ لومړی ټوک مکتبه محموديه

۲- (عن ابن عباس ﷺ عن النبي ﷺ قال من تمسک بسنتي ....فله اجرمائة شهيد) رواه البيهقي من رواية الحسن بن لتيبه . ورواه الطبراني من حديث ابوهريرة باسناد لاباس به الاانه قال فله مائة شهيد .- الترغيب والترهيب ص ۴۱ لومړی ټوک مکتبه محموديه

به په جنت کي وي او هغه ډله به جماعت (اهل السنت والجماعت) وي.[1]

۱۲ - دعمروبن عوف ﷺ څخه روايت دی، دی وايي چي ما د رسول الله ﷺ څخه واورېدل چي هغه ﷺ ويل: زه په خپل امت کي پر درو نفرو باندي ببرېږم:

۱ - د هغه څخه چي عالم ته په سپکه سره ګوري.

۲ - او يل دا چي د هوا متابعت به کوي.

۳ - د هغه چا څخه چي په ظلم سره به حکم (فيصله) کوي.[2]

۱۳ - او همدا رنګه په هغه حديث کي چي انس ﷺ يې روايت کوي راځي چي نبي کريم ﷺ ويلي دي: په تحقيق سره الله ﷻ منع راوړي د هغه چا د توبې څخه چي خاوند د بدعت (داسي کار دی چي په شريعت کي نه وي) وي تر داسي اندازې پوري چي بدعت هم پرېږدي. او ابن عاصم په کتاب السنة کي د ابن عباس ﷺ څخه روايت کوي چي نبي کريم ﷺ و فرمايل: الله ﷻ انکار کوي د دې څخه چي د بدعت کوونکي يو کار او عمل ور څخه قبول کړي تر دې پوري (چي) هغه هم هغه بدعت پرېږدي. ابو حنيفه ﷺ روايت کوي چي رسول الله ﷺ ويل: الله ﷺ د بدعت کوونکي څخه دده روژه، دده لمونځ، دده حج، دده عمره، دده جهاد، دده نفل او دده فرض نه

١ - (عن معاويه ﷺ قال قام فينا رسول الله ﷺ فقال الا ان من كان قبلكم من اهل الكتاب......وواحدة في الجنة وهي الجماعة) رواه احمد وابوداود ، اخرجه ابوداود في السنة باب الاول ، واحمد في المسند جلد الرابع صـ ۱۰۲ . - الترغيب والترهيب صـ ۴۴ لومړی ټوک مکتبه محموديه .

۲ - (عن عمرو بن عوف ﷺ سمعت رسول الله ﷺ يقول اني اخاف .....ومن حكم جائر) رواه البزار والطبراني من طريق كثير بن عبدالله وهوا .....صحيحه . - الترغيب والترهيب صـ ۴۵ لومړی ټوک مکتبه محموديه .

قبلوي ، اودی داسلام څخه داسې وزي لکه څنګه چې اوربشه داوړوڅخه راوزي[1]

۱۴-عرباض بن ساريه ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ ويلي دي : خپل ځانونه دنوو ، نوو کارونوڅخه راوساتئ (چې په اسلام کې نه وي ) په تحقيق سره هرنوی کارکوونکی (په اسلام کې)ګمراه دی .[2] ۱۵- اوپه هغه مبارک ارشادکې چې عمروبن عوف ﷺ يې روايت کوي چې په تحقيق سره سرورکائنات ﷺ وبلال بن حارث ﷺ ته يوه ورځ وويل چې پوه سه ! بلال بن حارث ﷺ ورسول الله ته وويل په څه باندې پوه سم رسول الله ﷺ ورته وويل چې په دې باندې پوه سه که چيرې يو چازما دسنتوڅخه يوسنت راژوندی کړي په داسې حال کې چې زماڅخه وروسته زماسنت مړه سوي وي نو ددغه شخص دپاره ثواب دهرهغه چا دثواب په اندازه دی چې هغه عمل په کوي اوسره ددې چې دهغوی دثواب څخه هم څه نه کمېږي (اوکه چيرې بيا) يو چا ديو بدبدعت اساس او بنسټ کېښېښوی چې الله ﷻ اودهغه رسول ﷺ هم نه وي په راضي نوپرده باندې دهغه چا

---

١ - رواه الطبراني واسناده حسن ورواه ابن ماجه قال قال رسول الله ﷺ ابي الله ان يقبل عمل صاحب بدعة ...... يخرج من الاسلام كما يخرج الشعر من العجين .- الترغيب والترهيب ص ۳۶ لومړی توک مکتبه محموديه .

٢ - (عن عرباض بن ساريه ﷺ قال قال رسول الله ﷺ اياكم .... كل محدثة ضلالة ) رواه ابوداود والترمذي وابن ماجه وابن حبان في صحيحه ، وقال الترمذي حديث حسن صحيح ، وتقدم .- الترغيب والترهيب ص ۴۲ لومړی توک مکتبه محموديه .

ګناه هم سته چي په دغه بدبدعت باندي عمل کوي سره ددې چي ددوی دګناهو څخه هم څه نه کمېږي.([1])

## په بيت الخلا(تشناب)کي خبري کول

۲۳۴_مسئله: ۱-دابي سعيدالخدري ﷺ څخه روايت دی، دی وايي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: نه دي يوځای کېږي دوه نفره پرغايطو(چکر)باندي چي هريودهغه بل انډيوال وعورت ته ګوري ځکه الله ﷻ ته پردغه کار باندي قهرورځي(وبنځوته دي الله ﷻ هـدايت وکړي دغه کارپه ښځوکي ډېردئ).([2])

۲-ابوهريرة ﷺ روايت کوي چي نبي کريم ﷺ وويل: نه وځي يو دوه نفره دغايطو(چکروهلو)لپاره چي دوی (په داسي حال کي يودبل سره) خبري کوي چي (دذوی دواړو) عورت لڅ وي (نو) په تحقيق سره الله ﷻ ته پردغه کارباندي قهرورځي.([3])

۳-همدارنګه په هغه حديث کي چي ابن عباس ﷺ يې روايت کوي راځي چي په تحقيق سره رسول الله ﷺ پريودوقبرباندي تېرېدی

---

۱-(عن عمروبن عوف ﷺ ان رسول الله ﷺ قال البلال بن حارث ﷺ يوما.......ذلک من اوزارالناس شيا) رواه الترمذي وابن ماجه کلاهمامن طريق عبدالله بن عمروبن عوف عن ابيه عن جده وقال الترمذي حديث حسن.-الترغيب والترهيب صـ ۲۷لومړی ټوک مکتبه محموديه.

۲-(عن ابي سعيدالخدري ﷺ ان النبي ﷺ قال لايتناجي اثنان علي غايطهما......فان الله يمقت علي اثنان علي ذلک) رواه ابوداود الاداب باب ۲۲ وابن ماجه في الطهارة باب ۲۴.-الترغيب والترهيب صـ ۸۲لومړی ټوک مکتبه محموديه.

۳-(عن ابوهريرة ﷺ قال قال رسول الله ﷺ لايخرج اثنان.....فان الله ﷻ يمقت علي ذالک) رواه الطبراني في الاوسط......-الترغيب والترهيب صـ ۸۳لومړی ټوک مکتبه محموديه.

رسول الله ﷺ وفرمایل : په تحقیق سره دغه دوه نفره په عذاب دي او دوی دواړه هر غټ (شي) په وجه نه دي په عذاب ، لیکن په تحقیق سره دغه عذاب غټ دی ، یو دوی څخه په چغل ګری سره تلک کوي او هغه بل نفر د بولو څخه (خپل ځان ) نه ساتی .[1]

## په لاره او سایه کي بولي کول

۲۳۵_ **مسئله** : ۱- د ابوهریرة ﷺ څخه روایت دی ، چي نبي کریم ﷺ فرمایي: ځان وساتئ د لاعنینو څخه صحابه کرامو رضي الله عنهم ورته وویل چي لاعنین څوک دي اي د الله ﷻ رسوله ﷺ ، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: هغه څوک چي د خلکو په لارکي چکروهي او یا په (داسي) سایه کي (چکروهي) چي تر هغه سایه لاندي خلک کښېني ( [2]

۲- ابن عباس ﷺ هم روایت کوي او وایي ما د رسول الله ﷺ څخه واورېدل چي ویل يي : ځان وساتئ د درو لعنت کوونکو کسانو څخه یوچا وویل دري لعنت کوونکي کسان څوک دي ای د الله ﷻ رسوله ﷺ ، رسول الله ورته وفرمایل : داچي (دچکرلپاره) یو څوک په داسي سایه کي کښېني چي هلته (خلک د سایې په خاطر کښېني) او یا په

---

۱ - وعن ابن عباس ﷺ ان رسول الله ﷺ مر بقبرين فقال .....لايستتر من بوله ، رواه البخاري وهذا احد الفاظ ......وابن ماجه . - الترغيب والترهيب ص ۸۳ لومړی ټوک مكتبه محموديه .

۲ - (عن ابي هريرة ﷺ ان رسول الله ﷺ قال اتقوا اللاعنين قالوا ......في طرق الناس اوفي ظلهم ، رواه المسلم وابوداود . - الترغيب والترهيب ص ۸۱ لومړی ټوک مكتبه محموديه .

لاركي (چكركولو) لپاره كښېني اوياهم په اوبوكي (چكروهي). ([1])

٣- په بل حديث كي دحذيفه بن اسيد ﷺ څخه روايت دى چي وايي په تحقيق سره رسول الله ﷺ وويل: څوک چي مسلمانان په لاروكي په تكليف كوي (نو) پرده باندي لعنت واجب دى. ([2])

۴- مكحول ﷺ وايي چي سروركائنات ﷺ منع كړېده ددې څخه چي دمساجدو ددروازوسره (يوڅوک) بولي كوي. ([3])

۵- همدارنګه دابي هريرة ﷺ په بل روايت كښي راځي چي رسول الله ﷺ ويلي دي: څوک چي قبلې شريفي ته دغايطو (د كوبولو) په وخت كي مخ اوياشا ونه ګرځوي نودده لپاره به (الله ﷻ) يونيكي وليكي اودده څخه به (يوه) ګناه ليري كړي. ([4])

۶- جابر ﷺ هم روايت كوي اووايي چي رسول الله ﷺ ددې څخه منع كړېده چي په ولاړواوبوكي بولي كېږي. ([5])

٧- اوپه بل روايت كي دجابر ﷺ راغلي دي چي وايي رسول الله ﷺ

---

١ - (وروي عن ابن عباس ﷺ قال سمعت رسول الله ﷺ يقول اتقوا......اونقع ماء) رواه احمد .- الترغيب والترهيب ص ٨٠ لومړی ټوک مکتبه محموديه.

٢ - (عن حذيفه بن اسيد ﷺ ان النبي ﷺ قال من اذي المسلمين في طريقهم وجبت عليه لعنتهم) رواه الطبراني في الكبيرباسناد حسن. - الترغيب والترهيب ص ٢٥٨١ لومړی ټوک مکتبه محموديه.

٣ - (عن مكحول ﷺ نهى الرسول ﷺ ان يبال......المسجد) رواه ابوداود ........- الترغيب والترهيب ص ٨١ لومړی ټوک مکتبه محموديه.

۴ - (عن ابي هريرة ﷺ قال قال رسول الله ﷺ من لم يستقبل القبلة......... ) رواه الطبراني ورواه الصحيح .- الترغيب والترهيب ص ٨١ لومړی ټوک مکتبه محموديه.

۵ - (عن جابر ﷺ عنه النبي ﷺ انه نهى .....في الماء الراكد) رواه المسلم في الطهارة حديث نمبر ٩۴ وابن ماجه في الطهارة في باب ٢۵ . - الترغيب والترهيب ص ٨١ لومړی ټوک مکتبه محموديه.

منع کړېده ددې څخه چي په روانو اوبو کي بولي کېږي .(۱)

۸- د بکر بن ماعز ﷺ څخه روايت دی چي وايي ما د عبدالله بن يزيد ﷺ څخه واورېدل چي ده د رسول الله ﷺ څخه حديث بيانوي چي رسول الله ﷺ وويل: په (خپل) کورکي دي په تشت (يا بل هر لوښی چي وي) بولي مه جمع کوئ ځکه ملائيکي نه داخلېږي وهغه کورته چي په هغه (کورکي) بولي جمع سوي وي او د غسل په ځای کي بولي مه کوئ .(۲)

۹- د قتاده او عبدالله بن سرجن رضي الله عنهما څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ ددې څخه منع فرمايلي ده چي په سوريانو کي بولي کېږي و قتاده ﷺ ته وويل سوه ولي په سوريانو کي بولي کول مکروه دي؟ ده ﷺ وويل چي دا سوريان د پيريانانو د ګوزارې (ژوند کولو) ځايونه دي .(۳)

## د قرض (پور) اداء کولو فضيلت

۲۳۶_ **مسئله**: د ابن مسعود ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هر مسلمان چي دوه ځلي يو چاته قرض ورکړي الله ﷻ

۱- (عن جابر ﷺ نهى رسول الله ﷺ ان يبال في الماء الجاري ......) رواه الطبراني في الاوسط باسناد جيد. - الترغيب والترهيب ص ۸۱ لومړی توک مکتبه محموديه.

۲- (وعن بكر بن ماعز ﷺ قال سمعت عبدالله بن يزيد ......) روه الطبراني في الأوسط باسناد حسن .... وقال صحيح الاسناد. - الترغيب والترهيب ص ۸۲ لومړی توک مکتبه محموديه.

۳- (عن قتاده ﷺ قال نهى الرسول الله ﷺ ان يبال في الحجر...... مساكن الجن) رواه احمد في المسند ص ۸۲ واخرجه ابوداود في الطهارة والنسائي في الطهارة باب ۹۲. - الترغيب والترهيب ص ۸۱ لومړی توک مکتبه محموديه.

داسې ثواب ورکوي لکه يوځلي چي يې صدقه ورکړې وي .[1]
همدارنګه انس بن مالک ﷺ هم روايت کوي چي رسول الله ﷺ
وويل : څه وخت چي زه دمعراج په شپه اسمانونه وختلم جنت
رابنکاره کړل سو دجنت پر دروازه باندي دصدقې بدله يوپه لس
ليکل سوې وه اودقرض بدله يوپه اتلس (باندي) وه ما (رسول
الله ﷺ) دجبرائيل ﷺ څخه پوښتنه وکړه چي داڅه سبب دی چي
دقرض بدله ترصدقې زياته ليکل سوې ده ؟ جبرائيل ﷺ په ځواب
کي راته وويل : سائل چي سوال کوي (احتياج لري) مال دده سره
پاتېږي (بيايې نه ورکوي) اوقرض غوښتونکی داړتيا پرته قرض نه
کوي (اوقرض بيرته مالک ته ورکوي) .[2]
۳- بريدة ﷺ روايت کوي چي نبي کريم ﷺ فرمايي : کوم څوک چي
پوروړي ته وګوري (يعني مهلت ورکړي) دده لپاره به (دپوردمهلت
له امله) هره ورځ (يوه يوه) صدقه وي (اوکه دپورمهلت پوره سي) بيا
(هم) وخت ورکړي (نو) دده لپاره به هره ورځ دومره صدقه وي لکه دده
چي په پور ورکړېده (دومره ثواب به يې وي لکه په پور سره ورکړل
سوي پيسې چي هره ورځ خيرات کوي) .[3]
۴- اوبل په هغه حديث کي چي ابوهريرة ﷺ يې روايت کوي چي د
رسول ﷺ فرمايي : کوم څوک چي پرتنګه لاسه انسان باندي اساني

۱ - سنن ابن ماجه ابواب الصدقات صـ ۱۷۵ الومړی ټوک مکتبه قديمي کتب خانه .
۲ - سنن ابن ماجه ابواب الصدقات صـ ۱۷۵ الومړی ټوک مکتبه قديمي کتب خانه .
۳ - سنن ابن ماجه ابواب الصدقات صـ ۱۷۴ الومړی ټوک مکتبه قديمي کتب خانه .

راولي (يعني دپورمهلت ورکوي) الله ﷻ به پردغه کس باندي په دنيا او اخرت دواړو کي اساني راولي (يعني دده مشکلات به ورحل کړي او اساني به پرجوړه کړي) .([1])

۵- همدارنګه دابوهريرة ﷺ په يوه بل روايت کښي راغلي دي چي رسول الله ﷺ وويل : چاکه ديوبل چا څخه مال (دقرض په توګه) واخيستی په دې نيت چي له منځه يې يوسي (دنه اداکولو په نيت) الله ﷻ به دی برباد کړي (يعني دغلط نيت په وجه به يې مال دلاس څخه ووځي خوفايده به هم ورته ونه کړي او پوربه هم پرپاته وي)

۶- حضرت صهيب الخير ﷺ د رسول الله ﷺ څخه روايت کوي چي رسول الله ﷺ وفرمايل : کوم سړی چي په دې نيت پور وکړي چي بيرته يې نه ورکوي دالله ﷻ سره به په داسي حال کي ملاقي سي چي غلا کوونکی به وي .([2])

۷- رسول الله ﷺ فرمايي : کوم سړی چي ديوچا څخه په دې نيت سره پيسې پور کړي چي بيرته به يې ورکوي (ليکن خوده داسي ونکړه يعني دادا کولو توان يې په دنيا کي پيدا نه کړی) او مړسو (نو) الله ﷻ به يې دقيامت په ورځ وراداکړي او کوم کس چي ديوچا څخه په دې نيت پيسې پور کړي چي بيا به يې نه ورکوي دقيامت په ورځ به د الله ﷻ سره ملاقي سي (او) الله ﷻ به ورته وفرمايي : تادافکر کاوه چي زه به دقيامت په ورځ دده په حق نه نيول کېږم (دافکردي بې

ځایه دی بلکې زه به دخپل بنده حق ستاځخه اخلم نو(ده نیکی به واخیستل سي وهغه چاته به ورکول سي ، چي ده پورځني اخیستی دی اوکه یې نیکی نه درلودې نود هغه چاګناوي به راواخیستل سي (چي ده پورځني اخیستی دی)پرده باندي به واچول سي .(١)

٨- ابن عمر ﷺ روایت کوي چي رسول الله ﷺ وفرمایل : که څوک مرسو(اوپرده باندي دپور) یودینار اویادرهم پاته وو دقیامت په ورځ به دده دنیکیوځخه ورکول کېږي ځکه چي هغه ورځ به نه درهم وي اونه دینار وي .(٢)

٩- اوهمدارنګه درسول الله ﷺ په هغه مبارکه ویناکي چي عبدالله بن عمر ﷺ یې را روایت کوي وایي : بیشکه (هرڅوک چي پور وکړي اوبیه ژوندکي یې ادانه کړي) دقیامت په ورځ دده ځخه اخیستل کېږي مګر دروکسانوپور الله ﷻ اداکوي ، (چي هغه په لاندي ډول دي) :

اول - هغه کس د چي خپل روزي دالله ﷻ په لارکي (جهاد)کي مصرف کړي (پورباندي پاته سي داداکولوتوان یې پیدانه کړي).

دوهم - هغه کس دی چي دمسلمان ورورد کفن اوجامي لپاره پیسي نه لري پرته له دې چي پور ورکړي (اوبیایې دپورداداکولو توان پیدانه کړي) .

دریم- هغه کس دی چي پرخان باندي دزناکولوځخه بېرېږي

١ - الترغیب والترهیب کتاب البیوع ص٥٩٧دوهم توک مکتبه محمودیه .
٢ - سنن ابن ماجه باب من ادن دینالم ینو قضاءه ص١٧٢دوهم توک مکتبه قدیمي کتب خانه .

اودنکاح لپاره پيسې قرض کړي (اوداداکېدوتوان يې پيدا نه کړي) (نو الله ﷻ دغودروکسانوقرض اداکوي .(١)

يادونه : کوم قرض چې دنفعې اوګټې په شرط ورکړل سي داسې قرض دسود په حکم کې دی .(٢)

١٠- دابوسعيدالخدري ﷺ څخه روايت دی ، دی وايي چې ماد الله ﷻ درسول ﷺ څخه اورېدلي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل : زه په الله ﷻ سره دکفر(کولو) اوپور(کولو) څخه پناه غواړم ، نويوسړي ورته وويل : ای دالله ﷻ رسوله ﷺ اياکفردې دپورسره برابرکړې ؟ نورسول الله ﷺ ورته وويل هو .(٣)

١١- په بل حديث شريف کې چې ثوبان ﷺ يې روايت کوي اووايي سرورکائنات ﷺ وفرمايل : دچاروح چې دبدن څخه جلاسي اود دروشيانو(څخه) يې خان ساتلی وي جنت ته به داخل سي (نوهغه دري شيان په لاندې ډول دي) : ١- دغنيمت دغلا څخه . ٢- دبېله ضرورته پورکولوڅخه . ٣- دتکبر اولويي څخه .(٤)

١ - سنن ابن ماجه باب التشديد في الدين ص١٧٨ دوهم ټوک مکتبه قديمي کتب خانه .
٢ - ردالمحتار ص ٣١٢ اووم ټوک مکتبه دارالتراث بيروت .
٣ - رواه النسائي الترغيب والترهيب ص ٩٦٥ باب الاستعاذة من الدين دحديث نمبر ٥٣٧٨ .
٤ - الترغيب والترهيب ص٩٧٥ دوهم ټوک مکتبه محموديه .

## دتجارت اوكسب فضيلت

۲۳۷_ **مسئله** : ۱-دابن عمرﷺ څخه روايت دی چي درسول اللهﷺ څخه پوښتنه وسوه چي كوم كسب افضل دی ؟ رسول اللهﷺ ورته وفرمايل : دسړي دخپل لاس كسب اوهرهغه تجارت چي مقبول وي ‹يعني هغه تجارت چي مالک اوخاوندي دحلال والي فكركوي› (۱).
۲- اوپه بل حديث شريف كي چي جابرﷺ يي روايت كوي رسول اللهﷺ فرمايي : ای خلكو داللهﷻ څخه وبيرېږئ اوتاسي په پيدا كولو كي ‹د رزق›ښه والی كوي ‹دحلالي نفقي كوښښ كوئ دحراموڅخه پرهېز كوئ› بېشكه يوڅوک نه مركېږي ، ترڅوچي خپل رزق پوره نه كړي كه څه هم تريووخته پوري وځنډېږي نوداللهﷻ څخه وبيرېږئ اوښه والی ، ‹كوښښ› په طلب كي كوي حلال ‹مال›اخلئ اوحرام پرېږدئ .(۲).
۳- ابوسعيدالخدريﷺ وايي چي رسول اللهﷺ وفرمايل : چي امانتدار اوربښتياويونكی تاجربه ‹دقيامت په ورځ›دانبياءﷺ صادقانو اوشهيدانوسره وي .(۳). ۴- په بل مبارک حديث كي عبدالله بن مسعودﷺ روايت كوي چي سروركائناتﷺ وويل : چي حلال رزق طلبول ‹پيداكول›ددين د اولينو فرضو وروسته ددوهمي ‹درجي› فريضه ده .(۴).

---

۱ - الطبراني في الكبير. - الترغيب والترهيب صـ۵۲۲دوهم توک مکتبه محموديه
۲ - سنن ابن ماجه باب الاقتصادفي طلب المعيشة صـ۳۴۲دوهم توک مکتبه قديمي کتب خانه
۳ - جامع الترمذي وقال حديث حسن باب ماجاء في التجارتسمية ....صـ۲۷۱مکتبه رشيديه .
۴ - کنز العمال في سنن القول والافعال دحديث نمبر ۹۲۲۰صـ ۴خلورم توک مکتبه رحمانيه .

۵- ابوهريرة ﷺ روايت کوي دی وايي چي نبي کريم ﷺ فرمايلي دي ای خلکويه تحقيق سره الله ﷻ (د ټولو عيبونو څخه) پاک دی (نو) الله ﷻ نه خوښوي مګر نه پاک (مال اونيت، اوداخبره هم بايدپه يادکي ونيول سي) چي دکوم شي حکم چي الله ﷻ ورسولانو ﷺ ته ورکړی دی ددغه شي حکم ومؤمنانو ته هم ورکوي (څکه الله ﷻ) فرمايي: ای رسولانو ﷺ! پاک شيان وخورئ اوښه کاروکړئ، تاسي چي هر څه کوئ زه پري ښه پوهېږم [1]

(اوبيا الله ﷻ فرمايي) ای مؤمنانو! هغه پاک شيان وخورئ چي تاسي ته موخواړه کړخولي دي. [2]

بيارسول الله ﷺ (د مثال په توګه) ديوه چا دحال داسي بيان وکړی، چي يو څوک اوږدسفراختيارکړي، ګرد واوپه ګرځ بانـدي لړلي وېښتان يې وي، هغه خپل دواړه لاسونه داسمان طرف ته پورته کړي وي، اووايي: ای زماربه! (دخپل مقصدلپاره دعاکوي سره ددې چي) خوراک يې حرام، اغوستونکی (شی يې) حرام اودهغه پرورښت په حرام سره سوی وي نوبيادهغه دعاڅنګه قبلېږي. [3]

۶- همدارنګه دابوهريرة ﷺ په بل روايت کي راغلي دي چي رسول الله ﷺ ويلي دي: کله چي ته خپل دمال زکات اداکړي، نوپرتاچي

---

۱- سورة المومنون ايت ۵۱.

۲- سورة البقرة ايت ۱۷۲.

۳- صحيح المسلم باب قبول الصدقه من الكسب الطب دحديث نمبر ۱۶۸۶. - جامع الترمذي سورة البقرة ص ۲۴۹ دحديث نمبر ۲۹۱۵.

څه وه هغه دي اداکړه اوچاچي حرام مال جمع کړی وي ، بیا هغه خیرات کړي په دغه خیرات کولوکي به دده لپاره ثواب نه وي او «ددغه حرام مال دراجمع کولوپه وجه»ګناه هم پرهغه «راجمع کوونکي باندي»ده .(١)

٧- دعبدالرحمن بن شبل الانصاري ﷺ څخه روایت دی ، دی وایي مادرسول الله ﷺ څخه اورېدلي دي چي هغه ﷺ به ویل چي : تاجران فاجران دي ، صحابه وو رضي الله عنهم وفرمایل : چي ای دالله ﷻ رسوله ﷺ ایاالله ﷻ بیع نه ده حلاله کړې ؟

رسول الله ﷺ ورته وویل : چي هولیکن دوی قسمونه اخلي بیا ګنهګاره کېږي «بې ځایه قسمونه اخلي اوپرخپل ځان باندي یې اړوي» اوخبري کوي بیادرواغ پکښې وایي .(٢)

## دمرض په سبب ګناه رژېږي

٢٣٨_ **مسئله** : رسول الله ﷺ وفرمایل : یومسلمان ته اذی «تکلیف نه رسېږي مګرنه چي الله ﷻ دده ګناهونه ور ورژوي ، «داسي یې ور ورژوي» لکه درخته چي پلګونه رژوي .(٣)

١ - رواه ابن خزيمة وابن حبان في صحيحها. - الترغيب والترهيب ص٥٤٩ ، ابن حبان باب جمع المال من حله ......اجزء ١٢ص٣٢٣ وحديث نمبر ٣٢٨٥ .

٢ - رواه احمد باسناد جيد.- الترغيب والترهيب ص٥٨٧.

٣ - «مامن مسلم يصيبه اذى الاحات الله عنه خطايه كماتحات ورق الشجرة» عمدة القاري شرح البخاري دحديث نمبر ٥٦٤٧ ص٢١٤ يوويشتم ټوک مکتبه رشيديه . - الموسوعة السير. السيرة النبوية الفصل السابع عشر غزوة تبوک وهي غزوة العسرة ص٥٥٢ دوهم ټوک مکتبه دارابن کثيربيروت لبنان .

## د رسول الله ﷺ نفلي لمونځ

۲۳۹_ **مسئله** : د مغيرة بن شعبة ﷺ څخه روايت دی ، دی وايي چې رسول الله ﷺ تر داسې اندازې پورې لمونځ کاوه چې پښې به يې وپرسېدلې ، په اصحابو کرامو رضي الله عنهم کې يوچا ورته وويل چې ته خپل ځان داسې په تکليف کوې ؟ په تحقيق سره چې ستا مخکي او وروسته ګناهونه بخښل شوي دي ، نو رسول الله ﷺ په جواب کې ورته وويل چې د الله ﷻ شکر ګذاره بنده نه شم؟ .(۱)

## د ښه او بد خوب دليدو په وخت کې

۲۴۰_ **مسئله** : د ابي سعيد الخدري ﷺ څخه روايت دی چې ما د رسول الله ﷺ څخه واورېدل چې هغه به ويل : چې که څيري کوم کس ښه خوب وليدی ، نو دا د الله ﷻ له طرف څخه دی او د الله ﷻ حمد (الحمد لله) دې ووايي او دا خوب دې يوچا ته ووايي او که چا بد خوب وليدی ، نو بيا دا د شيطان له خوا څخه دی نو هيڅ چاته دې يې نه وايي ، او وده ته تاوان او ضرر هم نه رسوي .(۲)

۱ - (عن المغيرة بن شعبة ﷺ قال علي رسول الله ﷺ حتى انتفخت قدماه ......افلا يكون عبدا شكورا) جامع الترمذي ابواب الصلاة صـ ۲۰۳ لومړی ټوک مکتبه رحمانيه .

۲ - (عن ابي سعيد الخدري ﷺ انه سمعت رسول الله ﷺ يقول اذارا.........ولايذكرها لاحد فانها لاتضره) جامع الترمذي ابواب دعوات صـ ۴۵۸ دوهم ټوک مکتبه رحمانيه .

## دالله ﷻ په دربارکي ددنيا اهميت

۲۴۱_ **مسئله**: سهل بن سعد رضي الله عنه روايت کوي چي نبي کريم ﷺ وويل: که چيري دنيا دالله ﷻ به دربارکي دغوماشي دوزرپه اندازه قدر (عزت) ردلودلای، نوبيابه کافرددې دنيا څخه ديوپله داوبوڅښلوپه اندازه نه وای څښلي.[۱]

## دجنت ددرختي صفت

۲۴۲_ **مسئله**: رسول الله ﷺ په هغه حديث مبارک کي چي ابوهريرة رضي الله عنه يې روايت کوي فرمايي: په تحقيق سره په جنت کي درخته ده، چي څوک پرسپرلی سپوروي سل کاله به يې په سايه کي تلګ او رفتارکوي.[۲]

## بېله نزديکت څخه دښځي په رحم کي مني تويول

۲۴۳_ **مسئله**: داچي په ځينوځايونوکي داکارمخ په وراندي روان دی چي دنارينه مني راواخلي اوديوې الې پواسطه يې دښځي ورحم ته داخل کړي، نوموړې مسئله دوه حالته لري چي لومړی حالت يې دادی: مني که دخپل خاوند وي، څوديوسخت ضرورت په وجه اوس داسي حالت استعمالوي چي اولاد پيداکړي نوبه دې کارکي

۱ - (عن سهل بن سعد رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ لوكانت الدنيا...... كافرامنهاشربة ماء، جامع الترمذي ابواب الزهد ص۵۰۷ دوهم توک مکتبه رحمانيه.

۲ - (عن ابوهريرة رضي الله عنه عن رسول الله ﷺ انه قال ان في الجنة شجرة...... في ظلهامائة عام) جامع الترمذي ابواب الصفة الجنة ص ۵۳۱ دوهم توک مکتبه رحمانيه.

خوضرورت دی او انشاءالله چي په دې کړنه سره ګناه هم نسته ، خوبیاهم په دغه ډول حالت کي کوښښ باید وسي چي نوموړی عمل اوکاربايد ښځينه ډاکټراني ترسره کړي اوکه ښځينه ډاکټراني نه وي نوبیانارینه ډاکټران هم نوموړی کارترسره کولای سي ، ځکه چي داځوی ضرورت دی.

دوهم حالت دادی چي ښځه خوداولاد پیداکېدوته اړتیالري ، لیکن خو دداسي چالخوا دديږ ورحم ته مني وردا خليږي چي ددوی په منځ کي نکاح نسته نوداکار حرام دی ، ځکه دې ته شریعت زنا ويلې ده اوداسي عمل ځخه بايد جدي منع وسي اوداځکه چي دزنا په اړه الله ﷻ ډېرېد وعيد (وعده دعذاب) فرمايلی دی.[1]

## دنیا دمؤمن لپاره بندي خانه ده

۲۴۴_ **مسئله** : دابي هريرة ﷺ ځخه روايت دی چي سرور کائنات ﷺ وفرمایل:دنیابندي خانه ده دمؤمن لپاره اوجنت دی دکافرلپاره .[2]

## دیو چاځخه چي یوشی ورک سي

۲۴۵_ **مسئله** : دابن عمر ﷺ په روايت کي راځي چي وايي : کله چي دکوم کس ځخه يوشی ورک سي اودس دي تازه کړي ، دوه رکعته لمونځ دي وکړي اوکله چي (التحيات) وويل سي نو وروسته دي

۱ - فقه الاسلامي وادلته المبحث الرابع ص۲۶۲۹خلورم ټوک مکتبه فريديه .

۲ - (عن ابي هريرة ﷺ قال قال رسول الله ﷺ الدنيا سجن.....وجنة الكافر) جامع الترمذي ابواب الزهد ص ۷۰ ډوهم ټوک مکتبه رحمانيه .

دغه دعاووايي (بِسْمِ اللهِ يَاهَادِيَ الضَّالَ وَرَادَالضَّالَةِ أرْدُدْ عَلَيَّ ضَالَّتِيْ بِعِزَّتِکَ وَسُلْطَانِکَ ، فَإِنَّهَا مِنْ عَطَايَاکَ وَفَضْلِکَ ).(١)

## دعطسي (پرنجي) په وخت کي

۲۴۶_ **مسئله** : دحضرت علي بن ابي طالب ﷺ څخه روايت دی چي هرڅاکه دهري عطسي په وخت کي (چي وايي وري) ، (اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ عَلٰي كُلِّ حَالٍ) ووايه ،نونه به دده زامه (غاښونه) خوږسي اونه به دهمېشه لپاره دده غوږونه خوږسي .(٢)

## دپيداسوي کوچني په غوږ کي اذان کول سنت دي

۲۴۷_ **مسئله** : رسول الله ﷺ دامام حسين بن علي رضي الله عنهما په غوږ کي اذان کړی دی .(٣)

## دفاتحي (الحمدلله) سورةنومونه

۲۴۸_ **مسئله** : ١- فاتحة الكتاب .٢- فاتحة القران .٣- ام الكتاب .۴- ام القران .۵- الكنز .۶- الوأفيه .۷- الكافيه .۸- الاساس .۹- الحمد .١٠- الشكر .١١- الدعا .١٢- النور .١٣- تعليم المسئله

---

١ - المصنف لابن ابي شيبه كتاب الدعاء دحديث نمبر ٣٠٢٣٨ صـ٣٢٥ پنځلسم ټوک مكتبه المجلس العلمي بيروت لبنان .
٢ - المصنف لابن ابي شيبه كتاب الدعاء دحديث نمبر ٣٠٢٣٠ صـ٣٨١ پنځلسم ټوک مكتبه المجلس العلمي بيروت لبنان .
٣ - (رايت رسول الله ﷺ اذن في اذن الحسين بن علي حين ......) عون المعبود شرح سنن ابي داود كتاب الاداب باب في المولود يوذن في اذنه صـ ٨ څوارلسم ټوک مكتبه قديمي كتب خانه .

۱۴-السؤال . ۱۵-المناجاة . ۱۶-التفويض . ۱۷-الرقيه . ۱۸-الشافيه . ۱۹-الشفاء . ۲۰-الصلاة . ۲۱-القران العظيم . ۲۲-سبع المثاني . ۲۳-علم القصص والاخبار . ۲۴-ام الشئ . [1]

## دجنتيانولومړی خوراک

۲۴۹_ **مسئله** : رسول الله ﷺ وفرمايل :(کله چي په اخرت کي مؤمنان جنت ته داخل سي ) ددوی لومړنی خوراک به دماهي ينه وي ، يعني الله ﷻ به په جنت کي جنتيانوته په لومړي خوراک کي دماهي ينه ورکوي چي ويې خوري . [2]

## دبنځي لپاره دپلارکوروطن اصلي دی

۲۵۰_ **مسئله** : کومه بنځه چي دپلاريا ورورله کوره دخپل خاوند کورته واده سي ، نوبيا هروخت چي دخپل پلاريا ورورکورته

---

[1] - تفسيرابي السعود سورة الفاتحه ص۱۴ الومړی ټوک مکتبه معروفيه . - تفسيرروح المعاني سورة الفاتحه ص۴۲ ۲۰ الومړی ټوک مکتبه رشيديه . صفوة التفاسيرسورة الفاتحه ص۲۲ الومړی ټوک مکتبه فاروقيه . - تفسير الكبيرسورة الفاتحه ص۱۵۲-۱۵۶ الومړی ټوک مکتبه لامسيه . - تفسيرالنسف النسفي . - مدارک التنزيل وحقايق التاويل سورة الفاتحه ص الومړی ټوک مکتبه فريديه . - دارة التفاسيرسورة الفاتحه ص۱ امکتبه عمريه . - تفسير المنيرسورة الفاتحه ص۶۸-۷ الومړی ټوک مکتبه اميرحمزه کتب خانه . - روح البيان سورة الفاتحه ص۱ الومړی ټوک مکتبه القدس . - تفسيرالخازن سورة الفاتحه ص۲ الومړی ټوک مکتبه فاروقيه . - نخبة البيان في التفسير القران سورة الفاتحه ص الومړی ټوک مکتبه دارالشفاعة تصنيف والتاليف دارالعلوم هاشميه . - تفسيرالكشاف سورة الفاتحه ص۱ الومړی ټوک مکتبه دارالكتب العلميه . - تفسيرالاحمديه في البيان الايات الشرعيه سورة الفاتحه ص۱۰ امکتبه الاسلاميه . - اعراب القرانكريم للمحي الدين الدرويش سورة الفاتحه ص۳۲ الومړی ټوک مکتبه سليمانزاده . - تفسير ابن الكثيرسورة الفاتحه ص۲ الومړی ټوک مکتبه حقانيه . - الموسوعة القرانيه سورة الفاتحه ص الومړی ټوک مکتبه دارالتقريب بين المذاهب الاسلاميه . - تفسير القرطبي الجامع الاحكام القران سورة الفاتحه ص۱۲۹-۱۵۲ الومړی ټوک مکتبه رشيديه . - تفسيرالبحرالمحيط سورة الفاتحه ص۱۳ الومړی ټوک مکتبه دارالكتب العلميه . - احكام القران تاليف جصاص سورة الفاتحه ص۳ الومړی ټوک مکتبه دارالک . - تفسيرالوسيط سورة الفاتحه ص۱۰ الومړی ټوک مکتبه سلطانيه . - تفسيرالمظهري سورة الفاتحه ص۲۲ الومړی ټوک مکتبه علوم اسلاميه . - تاويلات اهل السنة سورة الفاتحه ص۶۹ الومړی ټوک مکتبه دارالكتب العلميه . - تفسيرالبحرالمديد في التفسيرالقران المجيد سورة الفاتحه ص۱ الومړی ټوک مکتبه دارالكتب العلميه . - حاشية الشهاب على تفسيرالبيضاوي سورة الفاتحه الكتاب ص۲۳۰-۲۳۳ الومړی ټوک مکتبه دارالكتب العلميه . - الاتقان في علوم القران للحافظ جلال الدين عبدالرحمن السيوطي سورة الفاتحه ص۱۰۶ الومړی ټوک مکتبه قديمي کتب خانه .

[2] - تاريخ الاسلام للذهبي السنة الاولى من الهجرة ص۳۰ الي قصة اسلام بن سلام لومړی ټوک مکتبه دارالكتب العلميه .

په مېلمستياولاړه سي نوکه يې داقامت (پنځلسوورځو) نيت نه وي کړئ نودسفرلمونځ به کوي ځکه ددې لپاره دپلاريا وروږکوروطن اصلي نه دی بلکې ددې لپاره دخپل خاوند کوروطن اصلي دی اوکه چيرې يې داقامت (پنځلسوورځوپاته کېدو) نيت کړئ وي نوبيابه خپل لمونځ پوره کوي.(۱)

## دسپورټ په وخت کې نېکر اغوستل

۲۵۱ ـ **مسئله** : په اوس وخت کې سپورټ کول يو عادي کار دی، ځکه چې په هر ځاکې سپورټ کولو ته زمينه برابره ده او هرڅوک دسپورټ سره ليوالتيا لري، سپورټ کول دمسلمانانو لپاره هم جواز لري خو په دې شرط چې عورت به يې پټ وي، په اوس وخت کې ځينې دسپورټ مينه وال يوازې يو نېکر اغوندي چې دعورت پټول يې دپامه غورځولي وي او يا داسي جامه اغوندي چې د ډېر نازکوالي له کبله يې عورت ترې لاندې معلومېږي نو په داسي وخت کې دمسلمان لپاره سپورټ کول البته دعورت دنه پټولو په وجه جوازنه لري، دعورت لځول يوازي دشرعي عذر په اساس هغه ټاکلی ځای بنکاره کول جواز لري.

۱ ـ خلاصة الفتاوای الفصل الثاني والعشرون في صلواة المسافر صـ۲۰۲ لومړی ټوک. ـ ردالمحتار کتاب صلواة باب صلواة المسافر مطلب في الوطن الاصلي صـ۵۸۶ لومړی ټوک مکتبه رشيديه.

په يو حديث شريف کې رسول الله(ﷺ) فرمايي: نارينه دې د نارينه عورت ته نه ګوري، همدارنګه دې ښځه د ښځې عورت ته نه ګوري، په دې ترتيب دې نارينه و نارينه ته په داسې حالت کې نه ورنژدې کيږي چې يوازې يو کميس يا يوازې يو پرتوګ يې اغوستی وي او هم دې ښځه په همدغه حالت کې ښځې ته نه ورنژدې کيږي چې يوازې يو پرتوګ يا يوازې يو کميس يې اغوستی وي.

## دلاس پرېوللو لومړيتوب

۲۵۲ _ **مسئله**: د خوراک په وخت کې د لاسونو مينځل سنت طريقه ده او د طب د علم غوښتنه هم دغه ده، په حديث شريف کې راغلي چې مشران بايد په کشرانو شفقت ولري، خو ډير وختونه کوچنيان د ډوډۍ خوړلو پر وخت ترمشرانو وړاندې والې کوي او د ډوډۍ خوړلو ته ډير لېوال وي، نو په دې خاطر د ډوډۍ خوړلو په وخت کې بايد لومړی د کوچنيانو لاسونه ومينځل سي او بيا د مشرانو، خو د خوراک څخه وروسته لومړی بايد د مشرانو لاسونه ومينځل سي او بيا د کوچنيانو لاسونه.[1]

[1] فتاوای سراجيه کتاب والاستحسان ص ۳۲۰ مکتبه زمزم للطباعة والنشر والتوزيع – فتاوای خانيه کتاب الحظر والاباحة على هامش هنديه ص ۴۰۵ دريم ټوک مکتبه رشيديه – بحر الرائق شرح کنز الدقائق کتاب الکراهية ص ۳۳۷

## ډول ډول معلومات

**۲۵۳ ـ مسئله:** ـ دحضرت نوح (عليه السلام) اصلي نوم عبدالجبار يا عبدالغفار يا يشكر او ياالسكن ؤ.

ـ دحضرت نوح (عليه السلام) دنافرمانه (کافر) زوی نوم کنعان يا يما او يا يام ؤ.

ـ دحضرت صالح (عليه السلام) داوښي نوم قرار ؤ.

ـ دحضرت ابراهيم (عليه السلام) دمور نوم ليوثا ؤ.

ـ دحضرت ابراهيم (عليه السلام) دسوځلو مشوره چي يې ورکړه دهغه نوم هينون ؤ.

ـ دحضرت داؤد (عليه السلام) دپلار نوم ايشا ؤ.

ـ دحضرت شمعون (عليه السلام) اصلي نوم شمويل ؤ.

ـ دحضرت يوسف (عليه السلام) دمور نوم راحيل ؤ.

اتم ټوک مکتبه رشيديه ـ فتاوای هنديه الباب الحادی عشر في الكراهة الاكل وما يتصل به ص۳۳۷ پنځم مکتبه رشيديه.

- حضرت يوسف ﷺ چي يې له ورونو څخه په قيمت رانيوی دهغه نوم مالک ؤ.

- په دوهم ځل چي يې بيا حضرت يوسف ﷺ رانيوی دهغه نوم قطفير ؤ.

- دزلېخا اصلي نوم راعيل ؤ.

- دحضرت هارون ﷺ په مخ کي چي بني اسرائيلو دګيلګي عبادت کاوه دهغه نوم بهموت ؤ.

- دحضرت موسی ﷺ دمور نوم يوحنان، يا ريحانا، يا يوحانذ ياموخائيل او يا لوخاوه.

- دحضرت موسی ﷺ دلکړي نوم عليق يا نبغه اويا ماشا ؤ.

- دهغه نفر نوم چي په کوچنيوالي کي يې دحضرت موسی ﷺ دتابوت سره د درياب څخه راوکښی صابوت يا طابوث ؤ.

- دهغه نجار نوم چي دحضرت موسی ﷺ لپاره يې دده مورته تابوت ورجوړ کړئ سونام ؤ.

- دحضرت موسی ﷺ دپلار نوم عمران بن هافث ؤ.

- دحضرت موسی (علیه السلام) دزوجې (میرمن) نوم صفورا ؤ.
- دحضرت موسی (علیه السلام) دخور نوم مریم یاکلثوم ؤ.
- دهغه سړي نوم چې حضرت موسی (علیه السلام) په سوک وواهه او هغه مرسو قلیثون قطبي دفرعون اشپز ؤ.
- دبدبخته قارون دپلار نوم یصهر ؤ.
- دحضرت موسی (علیه السلام) دوخت دفرعون نوم ولید بن مصعب ؤ.[1]

## دخپلې ښځې سره ګډ خوب کول

**۲۵۴ _ مسئله** : دخپلې ښځې سره په یوه بستره کې خوب کول روا څه چې بلکې سنت هم دی، څکه رسول الله (ﷺ) فرمایي : که چیرې یو خاوند خپله ښځه (دنږدیکت لپاره) وخپل فراش ته راوبولي خو دا له راتګ څخه انکار وکړي (په داسې حال کې چې شرعي عذر ونه لري نو ملائیکې ترسهاره پورې لعنت وربانديې وایي . لـه دې حدیث شریف څخه دښځې او خاوند ګډخوب کول ثابت سو، دا د

[1] فتاوای هادیه متفرقات ص۵۲۸ - ۵۴۰ لومړی ټوک مکتبه حقانیه - الکامل فی التریخ ۲۰-۲۳-۱۲۱-۱۴۷-۱۴۹ لومړی ټوک مکتبه دارالمعرفة بیروت لبنان.

ناپوهانو خلکو کار دی چي خاوند په جلابستره کي او ښځه په جلا بستره کي بيد يږي يوازي د تزدېکت په وخت کي يا خو نر د ښځي ځای ته او يا ښځه د خاوند ځای ته ورځي ځکه چي په دې کار سره ځيني مشکلات را منځ ته کيږي، ښه خبره داده چي په يوه بستره کي ګډ خوب وکړل سي.[1]

## مړي ته دغُسل ورکول

**۲۵۵ _ مسئله**: ښه کار دادی چي مړي ته په داسي ځای کي غسل ورکړل سي چي هلته څوک نه وي، همدارنګه داسي ځای وي چي هغه ځای پټ وي ترڅو چي ستر يې خوندي سي، که چيري مړی په داسي حالت کي وي چي سريا کوم بل اندام يې پرې سوی وي، نو که چيري پرې سوی اندام موجود وي نو هغه دې په ګرمو ختوسره له هغه ځايه سره ومښلوي ترڅو مړی بد معلوم نه سي او که چيري

[1] صحيح المسلم کتاب النکاح د حديث شريف نمبر ۳۵۳۸ ص ـ ۲۰۸ مکتبه دارالسلام للنشر - صحيح البخاري کتاب النکاح باب اذا باتت المراة مهاجرة فراش زوجها د حديث شريف نمبر ۱۹۳ ص ۹۲۹ مکتبه دارالسلام للنشر والتوزيع - فتوای النابلسي مسائل بنتی ص ـ ۷۴۰ دوهم ټوک مکتبه حقانيه.

دمړي څخه غاښونه ولوېږي نوهغه دي په اوبو پاک پرېولي اوپه کفن کي دي ورسره کښېږدي.[1]

## معانقه (غاړه په غاړه کېدل)

**۲۵۲ _ مسئله**: معانقه يا غاړه په غاړه کېدل ديو مسلمان دبل مسلمان سره روا ده چي غاړه په غاړه روغبړسره وکړي، څکه چي رسول الله(ﷺ) دجعفر(رضي الله عنه) سره هغه وخت معانقه وکړل او دسترګو په منځ کي يې مچ کړ کله چي دی له حبشي څخه راغی، همدارنګه زيدبن حارثه(رضي الله عنه) معانقه کړې ده او درسول الله(ﷺ) نورو اصحابو کرامو(رضي الله عنهم) هم په خپلو منځو کي معانقه کړې ده.

دعطاء(رحمه الله) څخه روايت دی چي له ابن عباس(رضي الله عنه) څخه دمعانقې په اړه پوښتنه وسوه چي معانقه څنګه ده؟ ابن عباس(رضي الله عنه) په ځواب کي ورته وويل چي: دلومړي ځل لپاره چي معانقه يې کړې ده هغه حضرت ابراهيم(عليه السلام) ؤ چي د ذالقرنين سره يې معانقه په مکه مکرمه کي وکړه.

[1] فقه الاسلامي وادلته صلوة الجنائز ص۱۴۸۹ دوهم توک مكتبه فريديه - عالمگيري كتاب الصلوة الفصل الحادي والعشرون ص۱۵۸ لومړی توک مكتبه رشيديه - ردالمختار كتاب الصلوة باب الصلواة الجنائز مطلب فى حديث كل سبب ونسب ص۲۳۴ لومړي توک مكتبه رشيديه

داچي دځينوخلکوپه نظرمعانقه مکروه بلل سوي ده، هغه دشهوت پرستۍ په خاطر لـه کشرانو سره معانقه کول يې مقصد دی، دعالمانو اوبزرګانو خلکو سره معانقه کول مکروه نه بلکي ثواب پر مرتب دی.[1]

## دښځي سره خبري کول

۲۵۷ ـ **مسئله**: دځواني نابلدي ښځي سره له ضرورت پرته خبري کول روا نه دي او که دضرورت په خاطر خبري ورسره وکړي پروا نه کوي، خو دښځي لپاره په کارنه ده چي له نابلده نارينه سره په نرمه لهجه خبري وکړي.[2]

## دلاس مچول

۲۵۱ ـ **مسئله**: ديو عالم، پرهېزګار، عادل باچا، مور، پلار او مشر ورور لاس مچول پروا نه لري، په دې شرط چي په دې کار کي به نيت

---

[1] تبيين الحقائق کتاب الكرهيه ص۵۵ اووم مكتبه اشرفيه په حواله دشرح معني لاثار اوپه حواله دنصب الرايۀ – فقه الحنفي فی ثوبه الجديد المصافعه ص۲ ۴۱ لومړی توک مكتبه حقانيه – هدايه كتاب الكراهيه ص۲۲۳ اووم توک مكتبه البشرای – فتح القدير كتاب الكراهية ص۲۱ لسم توک مكتبه رشيديه – مجمع الانهر كتاب الكراهية ص۲۰۴ څلورم تک مکتبه الحرمين الشرفين – سنن الكبرای للبيهقي ص۱۰۰ اووم توک.

[2] التكلم مع الشابة الاجنبية لايجوزالالحاجة – په حواله دالطريقة المحمديه ص۱۹۷ دوهم توک – فتاوای هاديه ص۱۴ دوهم توک مكتبه حقانيه

پاک وي او يوازي او يوازي نېکي او عزت به يې مقصد وي، د مال او شتمنۍ په خاطر به نه وي ځکه ابوالليث سمر قند (رحمه الله) د جامع الصغير په شرح کي تقبيل (مچول) پر پنځه ډوله وېشلي دي: ۱ ـ د پلار لاس مچول، ۲ ـ يو مؤمن د بل مومن لاس مچول، ۳ ـ پلار چي زوی مچوي، ۴ ـ ورورخېل ورور مچوي، ۵ ـ خاوند چي خپله ښځه يا منځه مچوي او يا لکه د احرام په وخت کي د حجر الاسود مچول.

همدارنګه هر چاته ولاړيدل هم ښه کار نه دی ځکه چي په حديث شريف کي راځي چي صحابه کرام (رضي الله عنهم) سره ناست وو، چي رسول الله (ﷺ) راغی او لکړه يې لګوله او پايې تکيه ورباندي کړې وه، نومونږ ورته ولاړ سوو، رسول الله (ﷺ) راته وويل: مه ولاړېږئ لکه عجم (جاهلان) چي يو او بل ته د تعظيم په وجه ولاړيږي، د پورته حديث شريف څخه معلومه سوه چي هر چاته ولاړېدل ښه کار نه دی بلکي ديو عالم، مور او پلار، او استاد لپاره پروا نه لري ځکه د دوی احترام لازمي دی.[1]

[1] تبيين الحقائق په حواله د مسند احمد کتاب الکراهيه صـ۵۲ اووم ټوک مکتبه اشرفيه ـ فقه الحنفي في ثوبه الجديد المصانعه صـ۱۱ ۴۱۲-۴۱۳-۴۱۴ لومړی ټوک مکتبه حقانيه ـ هدايه کتاب الکراهيه صـ۲۲۳ اووم ټوک مکتبه البشرای ـ مجمع الانهر کتاب الکراهيتصـ۲۰۵ څلورم ټوک مکتبه الحرمين الشريفين ـ رد المختار باب الاستبراء ـ بين يدي العلماء ـ ـ ـ ـ ـ انما مرتکبا صـ۳۸۳، ټوک ۲ ـ عالمګيری الباب الثامن والعشرون فی ملاقات الملوک صـ۳۶۹ ټوک ۵ مکتبه رشيديه ـ

## په لمانځه کي چي اخيري ناسته پاته سي

۲۵۸ ـ **مسئله** : که چيري ديو چا ځخه په لمانځه کي اخيري ناسته سهواً پاته سي چي لمونځ څلور رکعتي وي نودده لپاره په کاردي چي بيرته وناستي ته راوګرځي ترڅو چي پنځم رکعت يې په سجده باندي نه وي مقيد کړی ، ځکه ده په دې باندي دفرضو دماتولو حکم نه دی کړی بلکي په دغه ناسته کي دلمانځه اصلاح هم ده ليکن په اخير کي پرده باندي سجده سهوه سته ځکه ده اخيري ناسته وځنډوله چي هغه هم فرض ده او که چيري بيا ده پنځم رکعت هم په سجده سره مقيد کړی نو دده فرض باطل سو دسجدي ځخه دراپورته کولو په وجه ، ځکه دپنځم رکعت په وجه يې په نفلو شروع وکړل مخکي تردې چي فرض پوره کړي اوداهم ضروري خبره ده چي دفرضو ځخه خپل ځان په يو فعل سره وباسي دا دامام محمد (رحمه الله) مذهب دی اودغه مختار هم دی ليکن امام ابويوسف (رحمه الله) بيا وايي چي د ده فرض دده دتندي په ايښولو سره باطل سوه ځکه چي داهم پوره سجده ده ليکن اوله وجه داده چي ديو رکن پوره کول دهغه ځخه په انتقال سره راځي ځکه که چيري يوچاته بې اودسي پيښه سي نوهغه رکن مات سوچي دی پکښي بې اودسه سو

اوپرده باندي راګرځېدل لازم دي که چيري يوچا بيا بنا کول يعني بې اودسه سي او بيرته اودس تازه کړي او دهغه دپاته ځای څخه خپل لمونځ شروع کوي نو هغه نو هغه رکن چي پکښې بې اودسه سوی دی بيرته به يې راګرځوي اوکه چيري ددغه لمونځ کوونکي لمونځ دتندي په اينښولو سره باطل سي نوبيا دده دغه رکن په بې اودسي سره ماتيږي.

نو اوس راځو خپلي اصلي خبري ته چي امام پنځم رکعت ته ولاړ سو او هغه يې هم په سجده باندي مقيد کړی دی نو دده لمونځ نفل وګرځېدی په نزد دامام ابوحنيفه (رحمة الله عليه) ليکن يو رکعت به بل هم ورزياتوي باره به يې دوه رکعته نفل وګرځوي ځکه چي په شريعت کي به سجده سهوه کوي اوکه چيري بيا يوچا په ده پسي اقتداء وکړه نو پر هغه باندي بيا شپږ رکعت لمونځ لازم دی اوکه چيري بيا دده اقتدا وروسته امام بيرته وناستي ته راوګرځيدی نو بيا وده ته ما لازمه ده چي څلور رکعته وکړي، او که چيري امام اويا يوازي نفر پر څلورم رکعت باندي کښينستی او بيرته ولاړ سو په دې ګمان چي ما لا دا اوله ناسته ده نو بيرته دي کښيني او سلام دي وګرځوي ځکه رکعت چي نه وي پوره سوی نو دغه ځای دماتولو دی خو داچي په

ولاړه کي سلام ګرځول غيري مشروع کار دی نو په دې وجه باندي بيرته ناستي ته وګرځي، نو که چيري بيا امام او ياي‌وازي نفر پنځه رکعته په سجده سره مقيده کړي نوفرض يې پوره سول ځکه بل څه نه سوه پاته بيله سلامه څخه اود سلام لفظ زموږ په مذهب کي فرض نه دی.[1]

## دفاتحي (اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ) فضليت

۲۵۹ ـ **مسئله**: رسول الله(ﷺ) ويو چاته وويل: آيا تاته ديوداسي بهترين او ښه (شي) دقرآن کريم باندي خبردر نه کړم؟ هغه نفر وويل چي هو خبر مي کړه، نو رسول الله(ﷺ) سورة الفاتحه ورته وويل.[2]

ـ رسول الله(ﷺ) وفرمايل سورة الفاتحه (اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ) دقرآن شريف د دريمي برخي سره په ثواب کي برابره ده.[1]

---

[1] تبيين الحقائق کتاب الصلاة باب سجدة السهو ص۴۸۰- ۴۸۱لومړی ټوک مکتبة اشرفيه ـ ردالمختار کتاب الصلاة ص۳۳۰ لومړی ټوک مکتبه رشيديه.

[2] (الترغيب والترهيب کتاب القرات القران دحديث نمبرص۲۲۹ دوهم ټوک مکتبه محموديه ـ کنزالعمال کتاب الاذکاردحديث نمبر(۲۵۱۲)، ص۲۷۹ لومړی ټوک مکتبه رحمانيه ـ تفسير ايات الاحکام من القرآن ماوردفی فضل سورة الفاتحه ص۱۲ لومړي ټوک داراحياء التراب عربي بيروت لبنان ـ تفسير معارف القرآن ص۲۳ لومړی ټوک مکتبه رشيديه)

- رسول الله(ﷺ) وفرمایل : قسم په هغه ذات چي زمانفس دهغه په لاس کي دی چي نه په قران، نه په زبور اونه په انجیل کي د(اَلْحَمْدُ لِلَّهِ) په مثل څه نازل سوي دي، داچي ام القرآن هم ورته وایي.[2]

- که دغه سورة الفاتحه(اَلْحَمْدُ لِلَّهِ) دترازو په یوه پله کي واچول سي او نور قرآن کریم دترازو په بله پله کي واچول سي نو بیا به هم سورة الفاتحه(اَلْحَمْدُ لِلَّهِ) پر قران کریم اووه واره فضیلت لري.[3]

- حضرت ابوهریرة(رضی الله عنه) وایي په هر کار کنبي چي شروع وسي بایدچي دبسم الله څخه وروسته اول په الحمدالله سره شروع سي او که چیري داسي ونه سي نو داکار به بې برکته وي.[4]

- عبدالمالک(رحمه الله) وایي چي سورة الفاتحه(اَلْحَمْدُ لِلَّهِ) دهر دردلپاره دوا ده.[1]

---

[1] کنزالعمال کتاب الاذکار دحدیث (۲۴۹۲)، صـ۲۷۸ لومړی ټوک مکتبه رحمانیه

[2] (کنزالعمال کتاب الاذکار دحدیث (۲۴۹۴)، صـ۲۷۸ لومړی ټوک مکتبه رحمانیه ـ تفسیر ایات الحکام من القرآن ماوردلی فضل سورة الفاتحه صـ۱۲ لومړي ټوک داراحیاء التراب عربي بیروت لبنان

[3] (کنزالعمال کتاب الاذکار دحدیث (۲۴۹۵)، صـ۲۷۸ لومړی ټوک مکتبه رحمانیه

[4] (کنزالعمال کتاب الاذکار دحدیث (۲۵۰۲)، صـ۲۷۹ لومړی ټوک مکتبه رحمانیه

## دمړي مجول پروا نه لري

۲۲۰ ـ **مسئله** : دمړي لـه مخـه څخـه شـی ایسـته کـول او بیـا مړی مجول پروا نه لري ځکه کله چي رسول الله(ﷺ) وفات سو نو په دې وخت کي ابو بکر صديق(ﷺ) نه وو حاضر خو کله چي دسُنخ نامي ځای څخه راغلی رسول الله(ﷺ) يې دسترګو په منځ کي مچ کړی ليکن دقبر مچول نه دي روا ځکه دابيا دنصاراو او (کفارو) عادت ؤ همدارنګه دي پرقبر باندي لاس نه ږدي ځکه داکارهم مکروه دي.[2]

## دخُسر روغبړ له مږور سره

که چیري یو خسر دخپلي مږور سره روغبړ کوي یا زوم دخپلي خوابني سره روغبړ کوي يا يو نابلده سړی دنابلده ښځي سره روغبړ کوي نو که په دې وخت کي د دوی په منځ کي شهوت را پيداسي نو د دوی دشهوت په وجه پر زوم باندي خپله ښځه حرامه سوه او پر

[1] كنزالعمال كتاب الاذكار دحديث (۲۴۹۷)، صـ۲۷۸ لومړی ټوک مكتبه رحمانيه

[2] ـ الرحيم المختوم مؤلف ابي بكر صديق(ﷺ)، صـ۳۲۲ مكتبه دارالكتب العلميه بيروت لبنان :- فتاوای التاتار خانيه كتاب الصلاة دمسئلي نمبر(۳۷۵۸)، صـ۷۸ دريم ټوک مكتبه حنفيه ـ تبيين الحقائق كتاب الكراهة صـ۵۲ـ اوړم ټوک مكتبه اشرفيه ـ سيراعلام النبلاء للامام ذهبي باب وفاته (ﷺ) صـ۳۳۰ ۲ ټوک مكتبه دارالحديث القاهرة ـ سيرت النبوية لابن هشام شان على والعباس قبل وفات(ﷺ) جزاول صـ۴۱۳ مكتبه دارالكتاب العربي بيروت لبنان ـ موسوعة السيرالسيرة النبويه الفصل السابع عشرغزوة تبوک وهی غزوة العسرة صـ۵۵۲ ټوک مكتبه دارابن كثير بيروت لبنان

زوی باندې هم خپله ښځه حرامه سوه او پر هغه نابلده سړي باندې دهغې ښځي مور او لور هم حرامه سول که څه هم دوی په خپل منځ کې نکاح سره کوي او که یې نه کوي هغه ته اعتبار نسته .

په شهوت کې داخبره لازمي نه ده چې شهوت به دیوې خوا څخه وي بلکي شهوت چي دهرې خوا څخه پیدا سي حرمت راځي که دنارینه له خوا وي او که دښځي له خوا وي.[1]

## دشهوت راپیداکیدل پر دوه قسمه دي

۱ - یو خودشهوت راپیداکیدل دالتماس اولاس وروړلو په وجه راپیداکیږي چي هغه داسي التماس د دوی په منځ کې راسي چي یاخو بیخي جامې او کالي نه وي او یا خو وي لیکن ډیري بارکي او نازکي وي چي په دې وخت کې د دوی دبدن حرارت یو بل ته ورسیږي. که چیري بیا ددوی پر بدن باندې داسي پنډه او ډبله جامه او ټوکر وي چي د دوی دبدن حرارت او ګرموالی یو بل ته نه رسیږي نو په دې وخت کې که څه هم په دوی کې دیوې خوا څخه شهوت راپیداسي بیا هم پروا نه لري ځکه دلته بیا حرمت نه راځي ، خو

[1] - بحرالرائق کتاب النکاح فصل فی المحرمات صـ۱۰۱ ج-۳ ردالمختار کتاب النکاح فصل الحرمات صـ۳۲ ج ۳-

بیاهم ډیر احتیاط په کار دی، دې ته څه اړتیا سته چي د مړور یا خوابنۍ یا نابلده ښځي سره التماس او روغبړ کوي، سره ددې چي داسي کارونه دخبرو دلاري هم کیږي.

۲- بل قسم د شهوت دادی چي دنظر او کتلو په وجه راپیدا کیږي چي هغه نظر او کتل هم دښځي دخاص اندام(تناسلي آله) و دتنه برخي ته وي یوازي او یوازي دښځي وخاص اندام ته کتل حرمت نه راولي بلکي دښځي دخاص اندام و دتنه برخي ته په کتلو سره راځي

دشهوت اندازه په لاندي ډول سره ده : مثلاً که چیري دده تناسلي آله لوړه نه وه نو وروسته دده نظر او لمس په وجه دده تناسلي آله لوړه سول نو حراموالی راځي او که چیري بیا دده تناسلي آله دنظره او لمس څخه ترمخه لوړه ولاړه وه نو بیا دده په تناسلي آله کي ښه لوړوالي او زیاتوالی راغلی نوهم حرام والی راځي.[1]

[1] فتاوای التار تارخانیه کتاب النکاح الفصل (۷) اسباب التحریم دمسئلي نمبر(۵۴۹۴-۲-۵۵۰۲-۸-۵۵۰۸)،ص-۵۴-۵۱ څلورم ټوک مکتبه حنیفه، عالمگیري کتاب النکاح القسم الثاني ص-۲۷۴ لومړي ټوک مکتبه رشیدیه- فتح القدیر شرح الهدایه کتاب النکاح فصل في بیان المحرمات ص-۲۱۰ ټوک ۳ مکتبه رشیدیه-

## په هديره کي دګچو استعمال

۲۲۱ ـ **مسئله** : دقبر په جوړولو کي دګچو استعمال مکروه دی او هم داسي پر قبر باندي خط ليکل هم مکروه دی، ليکن پر قبر باندي داوبو پاشل پروا نه لري بلکي داکار سنت هم دی ځکه رسول الله(ﷺ) دخپل زوی ابراهيم پر قبر باندي اوبه پاشلي.[۱]

### دسورة يسين فضليت

۲۲۲ ـ **مسئله** :سورة يسين په قرآن کريم کي (۳۶) نمبر سورة دی ، په (۲۲) او (۲۳) پاره کي راغلی دی ، (۵) رکوع لري ، ټول آياتونه يې (۸۳) دي ، د (۴) منزل اخري سورة دی او په مکه معظمه کي زمونږ پر ګران پېغمبر(ﷺ) باندي دالله(ﷻ) له لوري دحضرت جبرائيل (ع) پواسطه نازل سوی دی .

---

[۱] (الملتقط فی الفتاوای حنيفه کتاب الصلاة صـ۲۲ مکتبه حقانيه ـ (فتاوای التار تار خانيه کتاب الصلاة دمسئلې نمبر(۳۷۳۵) صـ ۷۰ دريم ټوک مکتبه حنيفه ـ عالمګيري کتاب الصلاة الفصل الحادي والعشرون صـ۱۲۲ لومړی ټوک مکتبه رشيديه - ردالمختار کتاب الصلاة باب الصلواة الجنائز صـ۲۲۲ لومړي ټوک مکتبه رشيديه ـ سنن الکبرای جنائز باب رش الماء حديث شريف نمبر (۲۸۳۹) صـ۲۸۲ پنځم ټوک ـ تبيين الحقائق کتاب الصلاة باب الجنائز صـ۵۸۷ لومړي ټوک مکتبه اشرفيه .

- رسول الله(ﷺ) فرمايلي دي : د هرشي لپاره زړه ستته ، دقرآن کريم زړه يسين شريف دی ، نو که چيري يو څوک يسين شريف ووايي الله(ﷻ) دلس واره قرآن دويلو ثواب ورکوي .[1]
- رسول الله(ﷺ) وفرمايل : که چا په شپه کي دالله(ﷻ) درضاء لپاره سورة يسين شريف ووايه نو الله(ﷻ) به ورته بخښنه وکړي .[2]
- څوک چي سورة يسين يوازي دالله تبارک وتعلی(ﷻ) او اخيرت لپاره ووايي ، هغه ته به حتمي مغفرت کيږي او دغه سورة (يسين شريف) پر مړه کېدونکيو (دځکندن پر مهال) وواياست .[3]
- سورة يسين سهار او مابنام تلاوت کوئ ، په ځانګړي ډول دځکندن اومړيني پر مهال باندي پر مړي باندي څکه چي په حديث شريف کي راغلي دي چي سورة يسين دقران کريم زړه دی .[4]

---

[1] الترغيب والترهيب كتاب قرائت القرآن دحديث شريف نمبر(٢) صـ٢۴٢ دوهم ټوک مکتبه محموديه ـ كنزالعمال كتاب الاذكار دحديث شريف نمبر (٢٢٢١) صـ٢٨٩ لومړي ټوک مکتبه رحمانيه .

[2] الترغيب والترهيب كتاب قرائت القرآن دحديث شريف نمبر(٣) صـ٢۴٢ دوهم ټوک مکتبه محموديه ـ كنزالعمال كتاب الاذكار دحديث شريف نمبر (٢٢٢٢) صـ٢٨٩ لومړي ټوک مکتبه رحمانيه .

[3] شعب الايمان للبيهقي فصل فی فضائل السورة والايات دحديث شريف نمبر (٢٢٣١) صـ٩۴خلورم ټوک ـ عالمگيري كتاب الصلوع الفصل الحادي والعشرون فی الجنائز صـ١٥٧ لومړي ټوک مکتبه رشيديه ـ كنزالعمال كتاب الاذكار دحديث شريف نمبر (٢٢٢٢) صـ٢٨٩ لومړي ټوک مکتبه رحمانيه ـ ردالمختار كتاب الصلاة باب الجنائز صـ٢٢٨ . ټوک ١ مکتبه رشيديه -

[4] جامع ترمذي فضائل قرآن د حديث شريف نمبر(٢٨٨٧) صـ٦۴٩ مکتبه دارالسلام للنشر والتوزيع الرياض ـ الترغيب والترهيب كتاب قرائت القرآن دحديث شريف نمبر(١) صـ٢۴٢ دوهم ټوک مکتبه محموديه ـ كنزالعمال كتاب الاذكار دحديث شريف نمبر (٢٢٢٢) صـ٢٨٩ لومړي ټوک مکتبه رحمانيه .

## دښځي د وفات پر وخت

۲۲۳ ـ **مسئله** : کله چي يوه ښځه وفات سوې وي او په قبر کي يې ښخوي نو په قبر کي د اېښوولو پر مهال بايد داسي څوک کار وکړي چي په قرابت کي ښځي ته تر هر بل چا ورنږدې وي د مثال په ډول لکه دښځي ورورنه ، که چيري دښځي ورورنه نه وي بيا يې داکازامن داکار کولای سي يعني تر خاوند يا رضاعي ورور ترمخه دوی حق لري .[1]

## دمسافر لمونځ په يو خاص حالت کي

۲۲۴ ـ **مسئله** :مسافر هغه چاته ويل کيږي چي له خپله کوره څخه يو خواته په سفر ولاړسي يعني دده دسفر کولو واټن بايد دومره اوږد واټن وي چي دپښو په تګ هغه ځای ته يو څوک په دري ورځو او درو شپو کي رسيږي، اوس نو که چيري يو څوک يو ځای ته غواړي ولاړ سي او هغه مزل دوې لاري ولري يوه اوږده لاره بله لنډه لاره ، که چيري پر اوږده لاره ولاړ سي نو دسفر شرط پوره کيږي اوکه پر لنډه لاره ولاړ سي نو دسفر شرط نه په پوره کيږي ، نو که چيري دغه سړی

[1] -: فتاوای التاتار خانيه کتاب الصلاة دمسئلي نمبر(۳۷۴۱) صـ۷۴ دريم ټوک مکتبه حنفيه ـ عالمګيري کتاب الصلوع الفصل الحادي والعشرون صـ۱۲۲ لومړی ټوک مکتبه رشيديه .

پر اوږده لاره ولاړ سي نو مسافر بلل کيږي يعني څلور رکعتيزه فرض لمونځ بـه حتمـاً دوه رکعتـه کـوي او کـه روژه وه او تکليـف ورتـه رسيدی نو هم کولای سي روژه وخوري او که دلوی اختر شپې وي نو اختر دي هم نه کوي ، دا هم مهمه نه ده چي دغه سړی په ښه کار پسي تللی دی اوکه په بد کار پسي تللی دی، يعني هر کله چي يو څوک دسفر واټن ووهي هغه مطلق مسافر بلـل کيـږي او دسفر ټـول احکام ورباندي جاري کيږي.[1]

## د پرسېدلي مړي غسل

۲۲۵ ـ **مسئله** : کـه چيـري يـو مـړی پـه داسي حال ومونـدل سي چي پرسـېدلی وو ، داامکـان نـه وچـي لاس دي وروړل سـي نـو دغـسل ورکولـو لپـاره دي يـوازي اوبـه وربانـدي تـوی کـړي او لاس دي نـه وروړي.[2]

[1] عالمګيري کتاب الصلوع الفصل الخامس عشر صـ۱۳۸ لومړی ټوک مکتبه رشيديه ـ التجريد کتاب الصلاة دمسئلي نمبر(۲۱۹)، صـ۸۹۸ دوهم ټوک مکتبه محمديه-

[2] ـ فتاوای التاتار خانيه کتاب الصلاة دمسئلي نمبر(۳۵۹۸)،صـ۱۰ دريم ټوک مکتبه حنفيه ـ عالمګيري کتاب الصلوع الفصل الحادي والعشرون صـ۱۵۸ لومړی ټوک مکتبه رشيديه .

**مسئله** : که چیرې یو څوک په اوبو (حوض ، څاه) کې لویدلی وي او مړسي نو دغه اوبوته لویدل دده لپاره دغسل پرځای نه دریږي بلکې ددغه مړي لپاره بل غسل ضروري دی چې ورکړل سي همدارنګه که پر مړي باندي باران واوري هم دغسل کفایت نه کوي باید بل غسل ورکړل سي .[1]

## په لمانځه کي پرنجی کول

۲۲۲ _ **مسئله** : که چیرې یو چا په لمانځه کي ونورږله او په زړه کي يې (الحمدالله) وویل خو ژبه يې ونه ښورول نو لمونځ يې نه فاسدیږي ، او که چیرې يې ژبې ته حرکت ورکړ نو لمونځ يې فاسد سو.[2]

[1] -: فتاوای التاتار خانیه کتاب الصلاة دمسئلې نمبر(۳۷۴۹)، صـ۷۲ دریم ټوک مکتبه حنفیه ـ عالمګیري کتاب الصلوح الفصل الحادي والعشرون صـ۱۲۲ لومړی ټوک مکتبه رشیدیه ـ تبیین الحقائق کتاب الصلاة باب الجنائز صـ۵۲۵ ټوک ۱ مکتبه اشرفیه ـ رد المحتار کتا الصلاة باب الجنائز صـ۲۳۴ ټوک ۱ مکتبه رشیدیه

[2] محیط البرهان کتاب الصلاة دمسئلې نمبر (۱۴۴۲)، دوهم ټوک مکتبه داراة والعلوم اسلامیه المجلس العلمي بیروت لبنان ـ -: فتاوای عالمګیري فیما یفسد صلوةخانیه کتاب الصلوة صـ۹۸ لومړي ټوک مکتبه رشیدیه ـفتاواي سراجیه کتاب الصلوة صـ۸۳ مکتبه زمزم ـ -: فتاوای التاتار خانیه کتاب الصلاة دمسئلې نمبر(۲۲۰۹) صـ۲۱۲ دریم ټوک مکتبه حنفیه

## داخلاص دسورة (قُلۡ هُوَ ٱللَّهُ أَحَدٌ) فضليت

۲۲۷ ـ **مسئله**: حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمايلي دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: ټول راغونډ سئ !!! زه به تاسي ته دقرآن کريم دريمه برخه واوروم ، کله چي صحابه کرام رضي الله عنهم راټول سول ، نو رسول الله ﷺ تشريف راووړی او د اخلاص سورة يې تلاوت کړ او وروسته يې داسي وفرمايل : داسورة دقران کريم له دريمي برخي سره برابر دی.[1]

دنبي کريم ﷺ وينا ده : څوک چي دخوب په اراده په بستر کي پرېوزي او ښى اړخ ته په اوښتلو سره سل خله (قُلۡ هُوَ ٱللَّهُ أَحَدٌ) ووايي نو دقيامت په ورځ به الله جل جلاله دغه سړي ته ووايي : آی زما بنده !!! ته دخپل ښي اړخ جنت ته ولاړسه.[2] يوه ورځ رسول الله ﷺ ديوه سړي څخه داخلاص سورة تلاوت واوريدی نو رسول الله ﷺ

---

[1] صحيح البخاري كتاب فضايل القرآن دحديث شريف نمبر ۵۰۱۳ صـ۸۹۸ مكتبه دارالسلام للنشروالتوزيع - جامع ترمذي فضائل قرآن د حديث شريف نمبر (۲۸۹۹)، صـ۷۵۱ مكتبه دارالسلام للنشروالتوزيع الرياض ـ صفوة التفاسير سورة الاخلاص صـ۲۲۲ دريم توک مكتبه فاروقيه ـ صحيح المسلم صلاة مسافر دحديث ـ الترغيب والترهيب كتاب الذكروالدعا دحديث شريف نمبر (۱)، صـ۲۴۸ دوهم توک مكتبه محموديه ـ فيض القدير حرف الهمزة دحديث نمبر (۲۵۹)، صـ۴۷۰ لومړي توک مكتبه دارالكتب العلميه بيروت ـ

[2] ـ (تفسير آبن كثير صـ۱۴۷ ، دريم توک)

وفرمايل : واجب سو، يو چاپوښتنه وکړه ، څه شي واجب سو؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : دغه سړي ته جنت واجب سو.[1]

## طمع به ونه کړي

۲۲۸ ـ مسئله :دابو هريره ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : که چيري مؤمن پوهيدلای چي دالله ﷻ (څو قسمونه دعذابونو دي) نو هيچا به دجنت طمع نه وای کړي ، او که چيري کافر پوهيدلای چي دالله ﷻ (سره څو قسمونه درحمت دي) نو هيچا به دجنت څخه طمع نه وای پرې سوې.[2]

## دمېلمه سره تر دروازې تګ کول

۲۲۹ ـ مسئله :دابي هريره ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : دسنّتو څخه دادی چي دکور خاوند دميلمه سره تر درزازې پوري ملګری وي، يعني تر دروازې پوري ورسره راووزي .[3]

---

[1] تفسير ابي سعود سورة الاخلاص صـ۴۸۸ شپږم ټوک مکتبه معرفيه ـ الترغيب والترهيب کتاب الذکروالدعا دحديث شريف نمبر (۱)، صـ۲۴۹ دوهم ټوک مکتبه محموديه ـ

[2] مشکوة مصابيح کتاب الدعوات دحديث شريف نمبر (۲۳۲۷)، صـ۳۸۱ دوهم ټوک مکتبه البشري ـ مرقات المفاتيح کتاب الدعوات دحديث شريف نمبر (۲۳۲۷)، صـ۲۰۰ پنځم ټوک مکتبه رشيديه-

[3] مشکوة مصابيح کتاب الاطعمة دحديث شريف نمبر (۴۲۵۸)، صـ۵۰۲ دريم ټوک مکتبه البشري-

ملاعلي قـاري ﷺ وايـي چي دايـو پخوانی عـادت دی او دا ورڅخـه معلوميږي چي دا دميلمه عزت دی او يو چا بيـا داهم ويلي دي چي په دې کي داحکمت هم دی چي دهمسايه څخه داتوهم (بيـره) ليـري سي چي نابلده څوک نـه دی چي زمـا دهمسايه دکور څخه راووتی څکه پخپله دکور خاوند ورسره دی.[1]

## په واده کي پاشل سوي پيسې او خوږي

۲۷۰ _ **مسئله** : د نکـاح تړلـو پـه وخـت کـي چـي کلـه زوم تـه کـالي وراغونـدي کـه چيـري پـه دغـه وخـت کـي يـو سړی ددې لپـاره پتـو يـا دسمال وغوړوي چي هغه څه پر زوم باندي پاشل کيږي هغـه زمـا پـه دسماله کي واچول سي ، نو هغه ددغه سړي حق دی اوکه بـل چـا پتـو يادسمال په دغه نيت نه وغوړولی او تصادف دده پر پتـو بانـدي يـو شی ولويږي نو بيا که هغه شی بل څوک واخلي پروا نه لري.[2]

---

[1] مرقات المفاتيح کتاب الاطعمة دحديث شريف نمبر (۴۲۵۸) صـ۸۵ اتم ټوک مکتبه رشيديه-

[2] ومنها لونثر سكر او دراهم فى العرس فوقعت على ثوب رجل فان كان هذا الرجل قد اعد ثوبه لذالك فما وقع فيه يكون له ليس لغيره ان ياخذه وان لم يعده لذلک فلا يملكه بل هو لمن سبقت يده اليه . فتاوای هاديه صـ۷ دوهم مکتبه حقانيه-

## د ډوډۍ پر وخت دبوټونو کښل

۲۷۱ ـ **مسئله**: دانس ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: کله چې ډوډۍ (دیوچامخ ته) کښېښوول سي نو دپښو څخه دي بوټونه وکاږي (څکه) داستاسو دپښو لپاره خوشحالي ده.[1]

یادونه: داچي په یو وخت کي په ځینو ځایونو کي دبوټونو سره خوراک کېږي دا دسنت طریقې خلاف کار دی، په ځانګړي ډول د واده دمراسمو دپرځای کولو پر مهال کله چې خلک د ډوډۍ لپاره هوټل (صالون) ته بلل سوي وي، دټولو مسلمانانو ورونو څخه په ډیر درښنت هیله کېږي چې دغه کار ته پوره پاملرنه وکړي ځکه چې دپیغمبر ﷺ په هره سنت طریقه کي د دنیا او آخیرت ښېګڼي نغښتي دي.

## دا امت به پر ډلو وېشل کېږي

۲۷۲ ـ **مسئله**: دحضرت عوف بن مالک ﷺ څخه روایت دی چې وایي رسول الله ﷺ وفرمایل: یهود پر (۷۱) ډلو باندي ویشل کیږي چي یوه ډله به یې په جنت کي وي او (۷۰) ډلي به یې په اور کي وي

[1] سنن الدارمي کتاب الاطعمه دحدیث شریف نمبر (۲۰۸۰) ص۹۳ دوهم توک مکتبه دارالکتب العلمیه.

نصارا پر (۷۲) ډلو ويشل کيږي چي (۷۱) ډلي به يې په اور کي وي او يوه ډله به په جنت کي وي ليکن رسول اللهﷺ وفرمايل: چي قسم په هغه ذات چي دمحمد ﷺ نفس يې په لاس کي دی چي خامخا (په تحقيق) سره به زما امت په (۷۳) ډلو سره وويشل سي چي يوه ډله به يې په جنت کي وي او (۷۲) ډلي به په اور کي وي، يو چا وويل چي داڅوک دي؟ رسول اللهﷺ وويل دا اهل سنت دي.[1]

## په لمانځه کي د خوب غلبه

۲۷۳ ـ **مسئله**: که چيري يو څوک پر لمانځه باندي ولاړ وي او خوب غلبه ورباندي وکړي، نو په دې وخت کي دغه لمونځ کوونکي ته نه ښايي چي ددغه غلبې سره سره لمونځ وکړي بلکي سلام دي وګرځوي، لمونځ دي تر داسي وخته پوري پريږدي چي دخوب غلبه ورځخه ولاړه سي، ځکه دخوب سره سره لمونځ کول په لمانځه کي

[1] عن عوف بن مالک ﷺ قال قال رسول اللهﷺ فترفت اليهود على احداى وسبعين ........قيل: يا رسول اللهﷺ من هم؟ قال: الجماعة :- سنن ابن ماجه کتاب الفتن دحديث شريف نمبر (۳۹۹۲) صـ۷۲۴ مکتبه دارالسلام للنشروالتوزيع الرياض ـ فيض القدير حرف الهمز دحديث شريف نمبر (۱۲۲۳) صـ۲۲ دريم ټوک مکتبه دارالکتب العلميه بيروت لبنان-

سستي ، ناخبري او بې فکري ده ، چې د داسي شيانو سره لمونځ کول روا نه دي.[1]

## د مېږيانو مړه کول

۲۷۴ _ **مسئله** : مېږيان هم دانسانانو په څېر دالله ﷻ دمخلوقاتو څخه يو ډول ژوندی مخلوق دی چې دانسانانو په څېر تنفس کوي ، خوراک کوي، وده او تنفس کوي او دمځکي پر مخ باندي حرکت کوي نو که چيري دالله ﷻ دغه مخلوق (مېږيان) اشرف المخلوقات (انسانانو) ته ضرر رساوه نو په دې صورت کي انسانانو ته دمېږيانو مړه کول روا کار دی او که چيري يې ضرر نه ورته رساوه نو بيا يې مړه کول روا نه دي او دا يو مکروه کار دی.[2]

## دامام اعظم صاحب رحمه الله خوب

۲۷۵ _ **مسئله** : دامام عظم رحمه الله ارشاد دی چي : ما په خوب کي الله ﷻ نه نيوي (۹۹) واره وليدی ، نو مي دځان سره داقصد وکړی

[1] محيط البرهان كتاب الصلاة الفصل الثالث عشر التراويح والوتر دمسئلي نمبر (۱۷۲۰)، ص۲۶۴ دوهم توک مکتبه المجلس العلمي بيروت لبنان-

[2] ويدون اذيها يكره _ په حواله الطريقه المحمديه ص۲۳۳ دوهم توک فتاوای هاديه ص۱۲ دوهم توک مکتبه حقانية

چي که مي (۱۰۰) سلم واري وليدی نو به سوال ورڅخه وکړم چي دقيامت په ورځ به ستا بندګان په څه شي ستا له عذابه خلاصيږي ؟ نوامام عظم رحمه الله وويل : کله چي ما (۱۰۰) سلم واري خدای ﷻ په خوب کي وليدی نو مي سوال ورڅخه وکړی چي : يا دټوله عالم خالقه ! دقيامت په ورځ به ستا بندګان ستا له عذابه په څه شي خلاصيږي؟ الله ﷻ وفرمايل : چي څوک دغه دعا سهار او مابنام وايي او هغه دعا داده :

سبحان الابدی الابد – سبحان الواحد – سبحان الفرد الصمد – سبحان رافع السماء بغير عمد – سبحان من بسط الارض علی ماء جمد – سبحان من خلق الخلق فا حصاهم عدد – سبحان من قسم الرزق ولم ينس احد – سبحان الذی لم يتخذ صاحبة ولاولد – سبحان الذی لم يلد ولم يو لد ولم يکن له کفواً احد.[1]

[1] وهی ان الامام رحمه الله قال رايت رب العزة فی المنام تسعا وتسعين مرة فقلت فی نفسی ان رايته تمام المائة لاسألنه بم ينجو الخلائق من عذابه يوم القيامة قال فرايته سبحنه وتعالی فقلت ...... ردالمختار علی الدار المختار صـ۳۸ لومړی ټوک مکتبه رشيديه .

## يوه په زړه پورې کيسه

۲۷۶ _ مسئله : خلف بن ايوب ابو سعيد البلخي رحمه الله چي دامام زفر رحمه الله داصحابو او يارانو څخه وو، يو وخت يې خپل زوى دبلخ ولايت څخه دعراق مركز بغداد ته د زده كړي لپاره واستاوه او پنځوس زره درهمه يې دمصرف لپاره ورته بيل كړل او په مصرف يې كړل ، كله چي هغه بيرته له دې سفر څخه راستون سو نو خلف بن ايوب رحمه الله پوښتنه ورڅخه وكړه چي څه شي دي زده كړه؟ زوى يې په جواب كي ورته وويل چي دهغه چا (حايضې ښځي) په اړه مي د طهر (پاكۍ) وخت زده كړ چي دهغې حيض لس ورځي وي او يا هم تر لس ورځو كم وي. نو پلار يې ورته وويل چي قسم په الله جل جلاله چي دغه سفر دي نه دى ضايع كړى.[1]

## د امام تر شا قرائت ويل

۲۷۷ _ مسئله : پردې خبره باندي ټول علماء كرام رحمهم الله يوه خوله دي چي : كه چيري مقتدى دامام سره په ركوع كي يو ځاى سي نو دامام سره شريک سو او قرائت له ده څخه ساقط سو (پرده باندي

[1] بدائع والصنائع كتاب الطهارة ص ۲۲ لومړي توک مکتبه رشيديه

لازمه نه ده چي قرائت ووايي، ځکه چي قرائت دولاړي په حالت کي ويل کيږي او له ده څخه دولاړي حالت تير سوی دی او داپه دې وجه چي دی د امام سره درکوع په حالت کي شريک سوی دی ، همدارنګه که چيري دامام سره دولاړي په حالت کي شريک سوی وای نو دامام اعظم صاحب رحمه الله په مذهب دده لپاره دامام قرائت کفايت کاوه .

دامام ترشا په قرائت ويلو کي د امامانو تر منځ اختلافات سته چي هغه په لاندي ډول دی :

امام شافعي او امام احمد بن حنبل رحمه الله په جهري لمونځ (چي په لوړ اواز قرائت پکښي ويل کيږي) او سري لمونځ (چي په ټيټ اواز قرائت پکښي ويل کيږي) دامام تر شا دالحمدالله ويل لازم بولي.

امام مالک رحمه الله وايي چي : که چيري لمونځ سري وي (چي په ټيټ اواز قرائت پکښي ويل کيږي)نو د امام تر شا دالحمدالله ويل لازم ده . او که چيري لمونځ جهري و (چي په لوړ اواز قرائت پکښي ويل کيږي) نو دامام تر شا دالحمدالله ويل په کار نه ده .

ـ امام عظم ابو حنيفه رحمه الله وايي چي: که لمونځ جهري وي او که سري وي دامام تر شا قرآئت ويل په کار نه دي په دې اړه هر مجتهد دخپلي خبري داثبات لپاره دلايل لري چي په لاندي ډول دي [1]

دواړه امامان (امام شافعي او امام احمد بن حنبل رحمه الله) په دې عقيده دي چي دغه عام دی يعني امام او مقتدی دواړه په کښي شامل دي او دا هم فرق نه کوي که جهري لمونځ وي او که سري لمونځ وي، نو که چيري څوک په لمانځه کي الحمدالله ونه وايي نو لمونځ يې نه صحيح کيږي.

امام مالک رحمه الله دخپلي خبري داثبات لپاره دصحيح البخاري (۷۵۲) نمبر حديث شريف چي عبادة بن الصامت رضي الله عنه روايت کړی دی رانقل کوي چي مخکي ذکر سو، يعني که چيري لمونځ سري وي نو په امام پسي دي الحمدالله وويل سي او که چيري لمونځ جهري وي نو دخپلي خبري داثبات لپاره دالله ﷻ داقول نيسي: «وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ»

---

[1] ـ امام شافعي او امام احمد بن احنبل رحمه الله دخپلي خبري داثبات لپاره دصحيح البخاري (۷۵۲) نمبر حديث شريف چي عبادة بن الصامت رضي الله عنه روايت کړي دي رانقل کوي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: «لاصلواة لمن لم يقراء بفاتحة الكتاب» - ژباړه: دهغه چا لمونځ صحت نه لري چي الحمدالله ونه وايي.

ژباړه: او کله چي قرآن شريف لوستل کيږي نو هغه ته (په پوره پاملرنه) غوږ کښيږدئ او غلي اوسئ، ښايي چي رحمت درباندي اوسي. سپېڅلی قرآن سورة الاعراف ايت (۲۰۴) صـ (۲۵۵) يعني کله چي قرآنت په لوړ اواز سره ويل کيږي نو هغه ته غوږ ونيسئ. امام قرطبي رحمه الله امام مالک رحمه الله څخه نقل کوي چي: دامام تر شا په جهري لمونځ کي دالحمدالله ويل نه سته خو په سري لمونځ کي به د امام تر شا الحمدالله وايي او که چيري چا ونه ويل نو گناهکاره دی ليکن څه شي ورباندي نه سته

- امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله دخپلي خبري داثباط لپاره لاندي دلايل لري.

- امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله دامام تر شا دالحمدالله ويل روا نه بولي او دقرآن شريف دغه آيت شريف دليل نيسي: ((وَاِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَاَنصِتُوا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ))

ژباړه: او کله چي قرآن شريف لوستل کيږي نو هغه ته (په پوره پاملرنه) غوږ کښيږدئ او غلي اوسئ، ښايي چي رحمت درباندي اوسي. سپېڅلی قرآن سورة الاعراف ايت (۲۰۴) صـ (۲۵۵) او بل دغه لاندي حديث شريف هم دليل نيسي: ((من کان له امام فقراءة الامام له قراءة))

ژباړه: هغه څوک چي دده لپاره امام وي (نو) دامام قرائت دده لپاره قرائت دی.[1]

## دابراهيم (ع) دپسه غوښه

۲۷۸ ـ **مسئله**: کله چي ابراهيم (ع) خپل زوی اسمعيل (ع) قرباني کاوه نو په دې وخت کي له جنته څخه کوم پسه راوستل سو او داسمعيل (ع) پر ځای قرباني سو نو ددغه پسه غوښه هيڅ چا نه ده خوړلې بلکي دهوا مرغانو او دمځکي درنده ګانو وخوړل خو ښکرونه يې بيت الله شريفه کي دحضرت زبير ﷺ تر وخته پوري راځړېدل.[2]

[1] تفسير ايات الحكام للصابوني ص۴۲ لومړي ټوک داراحياء التراب عربي ـ صحيح البخاري كتاب الاذان د حديث شريف نمبر ۷۵۲ ص ۱۲۳ مكتبه دارالسلام للنشروالتوزيع الرياض - فقه على المذاهب الاربعة كتاب الصلاة الفرض الرابع من فرائض الصلاة قراءة الفاتحه ص ۲۰۱ لومړي ټوک مكتبه وحيدي كتب خانه ـ التجريد كتاب الصلاة دمسئلي نمبر (۱۱۴) ص ۵۱۱ دوهم ټوک مكتبه محمديه - شرح معاني الاثار ص ۱۲۸ - ۱۲۹ لومړي ټوک مشكواة كتاب الصلاة ـ فتاوای دارالعلوم ديوبند، الصلاة پنځم فصل دسوال نمبر (۳۸۵) ص ۱۹۷ دوهم ټوک مكتبه رشيديه-

[2] فتاوای هاديع په حواله دشرعة الاسلام ص ۲۸ دوهم ټوک مكتبه حقانية ـ خاشيه العلمة الصاوی على الجلالين سورة الصافات (۳۴۳) ج - ۴ تفسير المجمل سورة الصافات (۵۴۹) ج - ۳

## د جُنُب سړي لپاره دالله ﷻ ذکر کول

۲۷۹ ـ **مسئله** : دجنب سړي او ښځي لپاره دا روا ده چي بسم الله الرحمن الرحيم دشکر ، ذکر او دعا په خاطر ووايي خو دتلاوت نيت به نه کوي، همدارنګه الحمدالله تر پايه پوري دثنا او دعا په خاطر ويلای سي ، په دې ډول دقرآن کريم يو کوچنی ايت شريف هم د دعا او ثنا په خاطر ويلای سي .[1]

## په زاړه قبر کي دمړي ښخول

۲۸۰ ـ **مسئله** : که چيري زوړ قبر وي او په هغه کي د بل مړي هډوکي پيدا نه سي نو دضرورت په وخت کي په دغه قبر کي نوی مړی ښخولای سي او که چيري په دغه زاړه قبر کي دبل مړي هډوکي پيدا سي نو ښه خبره داده چي دغه مړی په دغه قبر کي ښخ نه کړل سي .

الملتقظ فی الفتاوای الحنفيه کتاب الوصا يا صـ۴۴۵ مکتبه الحقانية .

[1] بسم الله ..... الحمدالله الشکر ...... علی وجه الشفاء والدعاء جاز ـ فقه الحنفي في ثوبه الجديد احکام الحيض صـ۱۲۰ الومړي ټوک مکتبه حقانية .

## دنكاح يوه مسئله

**۲۸۱ ـ مسئله** : د ابي هريره ﷺ څخه روايت دی چي وايي : رسول الله ﷺ وفرمايل چي : ژباړه ـ جمع دي نه راوستل كېږي دعمه او وريرې او دخاله او خورزې . يعني كله چي ديوه سړي په نكاح كي يوه ښځه وي نو دهغې ښځي عمه دي همدغه سړی په عيني حال كي نه په نكاح كوي ، همدارنګه دهمدغه سړي دخپلي ښځي خاله په عيني حال كي نه په نكاح كوي .

يادونه : خاله او عمه كه سكه وي او كه ناسكه فرق نه كوي .

همدارنګه يو سړي ته روا نه ده چي دخپلي ښځي وريره او يا دخپلي ښځي خورزه په داسي حال كي په نكاح كړي چي خپله دغه ښځه يې ژوندۍ وي داځكه چي د داسي ښځو په جمع كولو كي د دوی په منځ كي د بُن توب په وجه صله رحمي له منځه ځي .دهدايې كتـاب داسي يو مثال هم راوړي چي كه چيري په دوی كي يوه يې نر فرض كړل سي نو دهغه بلي سره يې نكاح نه كيږي لكه داكا او وريرې يا ماما او خورزې يو له بل سره نكاح باطله ده .[1]

[1] تحفة الاحوذي شرح جامع الترمذي كتاب النكاح صـ۲۹۷ څلورم ټوک مكتبه قديمي كتب خانه ـ هدايه كتاب النكاح فصل فی بيان المحرمات صـ ۸ـ ۱۲ دريم ټوک مكتبه البشری ـ مرقات المفاتيح شرح المشكوة كتاب النكاح باب المحرمات فصل الاول (۳۱۰)

## پر رسول اللهﷺ باندي درواغ ويل

۲۸۲ ـ **مسئله** : ډير داسي نا خبره خلك ستـه چي دخپلـه ځانـه خبري جوړوي او خلګو ته يې په دې نيت وايي چي داخبره درسـول اللهﷺ خبره ده، دمثال په ډول دوی وايي : تور بانجڼ چي څوک په هر نيت وخوري نو همغسي کېږي ، دوی داخبره په مبارک ﷺ پوري تړي حال داچي په شريعت کي ددې خبري هيڅ اصل نستـه ، [1]

نو هغه خلک چي داخبره په مبارک ﷺ پوري تړي نو د مبـارک ﷺ دغه لاندي احاديث دي هم په ښه غوره سره ولولي ، ځکه چي پر رسول اللهﷺ باندي دروا‌غ ويـل داسي نه دي لکه پر نورو انسانانو باندي چي څوک دروا‌غ وايي ، ځکه چي مسلمانان عقيده لـري او درسـول اللهﷺ خبـره پـه سرسـترګو منـي او عـمـل وربانـدي کـوي او دخدای ﷻ له درباره څخه دثواب اُميد کوي .

ـ دحـضـرت ابـوهريرهؓ څخـه روايـت دی چـي : رسـول اللهﷺ وفرمايل : ژباړه ـ پر ما باندي دروا‌غ مه واياست ، په تحقيق سره که

---

صـ۳۲۰ پنځم ټوک مکتبه رشيديه ـ فقه الاسلامي وادلته الفصل الثالث المحرمات من النساء او الانکحته المحرمة صـ۲۲۲۵ نهم ټوک مکتبه فريديه ـ جامع الترمذي کتاب النکاح د حديث شريف نمبر(۱۱۲۲) صـ۲۷۲ مکتبه دارالسلام للنشر والتوزيع الرياض .

[1] الموضوعات الکبری حرف الباء الموحدة ـ دحديث شريف نمبر(۳۱۷) صـ۸۲ مکتبه غوثيه .

چا پر ما باندي دروغ وويل نو (جهنم) اور ته دي ننوزي. «لاتكذبوا علىّ، فانه من كذب علىّ فليليج النار» [1]

## دقبر (مړي) لڅول

۲۸۳ ـ **مسئله**: د قبر لڅول حرام کار دي ترڅو داګمان وي چي ددغه مړي دهډوکو څخه څه پاته دي، خو په څینوحالاتو کي بیا پروا نه کوي چي قبر لڅ کړل سي مثلاً لکه په لاندي حالاتو کي:

ـ مړي ته په داسي ټوکر کفن ورکړل سوی وي چي هغه دغصب وي او دمځکي مالک هم دمړي پردلته ښخولو راضي نه وي.

ـ که دمړي سره په قبر کي مال ښخ سوی وي، که په قصدي توګه داکار سوی وي او که په غیر قصدي توګه، که دغه مال دمړي وي او که دبل چا وي، مال لږ وي او که ډیر وي مثلاً که څه هم یودرهم وي

[1] صحيح البخاري كتاب العلم دحديث شريف نمبر ۱۰۲ صـ ۲۴ مكتبه دارالسلام للنشر والتوزيع الرياض - جامع الترمذي كتاب العلم د حديث شريف نمبر (۲۲۲۰) صـ ۲۰۳ مكتبه دارالسلام للنشر والتوزيع الرياض - صحيح مسلم المقدمة دحديث نمبر ۱ صـ ۸ مكتبه دارالسلام للنشر والتوزيع الرياض - سنن ابن ماجه المقدمة دحديث نمبر (۳۱) صـ ۲ مكتبه دارالسلام للنشر والتوزيع الرياض.

، که په دې وخت کې مړی په قبر کې خراب سوی وي او که نه وي نو دا جواز سته چې قبر لڅ کړي او هغه مال ورڅخه راواخلي .[1]

## دشهادت مرتبه

۲۸۴ _ **مسئله** : رسوالله ﷺ وفرمایل : هر څوک چې د زړه له اخلاصه دالله ﷻ څخه دشهادت غوښتنه وکړي ، نو الله ﷻ به يې دشهادت لوړو مرتبو ته ورسوي که څه هم پر خپل فرش باندي مړسي .[2]

## په يوه مسجد کي مکرر جماعت کول

۲۸۵ _ **مسئله** : امام ابوحنيفه رحمه الله وايي چې دلاري په مسجد کي يو يا دوه ياڅو واره جماعت کول روا دي ځکه دلاري مساجد يو خاص امام او يو خاص جماعت نه لري نو په دې وجه چې هر څو جماعتونه په کښي وسي پروا نه لري ، ليکن دمحلې او کلي دمسجد لپاره چې يو خاص امام سته او هم په خاص وخت کي جماعت سته ، خو په دغه مسجد کي هم دوهم جماعت روا دی خو

[1] فقه على المذاهب الاربعة كتاب الصلاة نبش لقبر صـ۴۵۵ لومړي توک مکتبه وحيدي کتب خانه ـ ردالمختار كتاب الصلوة باب الجنائز صـ۲۲۲ لومړي توک مکتبه رشيديه ـ

[2] ان النبي ﷺ قال من سئال الله الشهادة ..... وان مات على فلشه . سنن ابن ماجه كتاب الجهاد دحديث نمبر (۲۷۹۷) صـ۵۱۰ مکتبه دارالسلام للنشرو والتوزيع الرياض .

چي داول جماعت سره يې فرق وي مثلاً که چيري دلومړي جماعت امامت په محراب کي سوی وي نو د دوهم جماعت امامت دي په محراب نه کوي .[1]

## دحضرت علي ﷺ په اړه معلومات

۲۸۲ ـ **مسئله** : دحضرت علی ﷺ نوم همدغه حضرت علی ﷺ دی دپلار نوم يې عبدالمناف دی خو په ابي طلاب سره ډير شهرت لري ، دنيکه نوم يې ابو المطلب دی او شيبه الحمد هم ورته ويل کيږي.

### دنسب سلسله يې داده

علی زوی دابو طالب ، زوی دعبدالمطلب ، زوی دهاشم زوی دعبدالمناف ، زوی دقصی ، زوی دکلاب ، زوی دمرة ، زوی دکعب ، زوی دقصی ، زوی دغالب ، زوی دفهر ، زوی دمالک ، زوی دالنضر ، زوی دکنانة ، زوی دخزيمة ، زوی دمدرکة ، زوی د الياس، زوی دمضر، زوی دنزار ، زوی دمعد ، زوی دعدنان .

[1] فقه على المذاهب الاربعة كتاب الصلاة تكرار الجماعة فى المسجد الواحد صـ۳۷۳ لومړي ټوک مکتبه وحيدي کتب خانه .

نو حضرت علیؓ د رسول اللهﷺ سره په لومړي نیکه عبد المطلب کي يو ځای سو ، کله چي حضرت علیؓ وزېږېدی نوم يې اسد کېښېښول سو چي دخپلي مور لخوا ورته غوره سوی ؤ، په دغه وخت کي د حضرت علیؓ پلار ابي طالب نه ؤ خو کله چي هغه راغی نو نوم يې ور واړاوه او حضرت علیؓ نوم يې پر کېښېښود.

کنیه يې ابوالحسن ؤ چي دده مشر زوی ته منسوب سوی ؤ او بل کنیه نوم يې ابو تراب ؤ.

لقب يې امیر المؤمنین او رابع الخلفاء الراشدين ؤ ، حضرت علیؓ د رسول اللهﷺ تر نبوت لس کاله مخکي زېږېدلی دی.[1]

## توسل کول روا دي

۲۸۷ _ **مسئله**: داچي ځيني ناخبره کسان توسل نه مني دا ددوی ناخبري ده خو توسل کول روا دي څکه چي لاندي حديث شريف د توسل کولو باندي ښه وضاحت ورکوي:

[1] الموسوعة السير الفصل الاول علی بن ابي طالبؓ صـ۲۳ شپږم ټوک مکتبه دارابن کثير للطباعة والنشر والتوزيع.

حضرانس ﷺ روايت کوي چي : کله چي په مدينه منوره کي قحطي راغله او بارانونه نه کيدل نو حضرت عمر ﷺ په حضرت عباس بن عبدالمطلب ﷺ سره دباران توسل کاوه (داسي به يې) ويل : ((اللهم انا کنا نتوسل اليک بنبينا فاسقينا قال : فيسقون)) [1]

**مطلب** : ای خدايه ﷻ موږ وتاته توسل کوو ستا په نبي ﷺ سره (نو) پرموږ باندي باران و اوروه ، انس ﷺ وايي نو بيا پر موږ باندي باران راو اورېدی. [2]

## د ناروغۍ په وجه ګنا رژېږي

۲۸۸ ـ **مسئله** : رسول الله ﷺ وفرمايل ، ژباړه : يو مسلمان ته اذی (تکليف) نه رسيږي مګر دا چي الله ﷻ دده ګناهونه ور ورژوي ، (داسي ور رژوي) لکه چي بلګونه رژوي. [1]

---

[1] صحيح البخاري کتاب الفضائل اصحاب النبی ﷺ دحديث شريف نمبر ۳۷۱۰ صـ۲۲۲ مکتبه دارالسلام للنشروالتوزيع الرياض ـ مشکواة المصابيح کتاب الصلاة دحديث نمبر(۱۵۰۹) صـ۱۷۲ دوهم ټوک مکتبه البشرای ـ مرقات المصابيح کتاب الصلاة دحديث شريف نمبر (۱۵۰۹) صـ۲۱۹ دوهم ټوک مکتبه رشيديه.

[2] عمدة القاري شرح صحيح البخاري کتاب فضائل الصحابه باب الفضائل اصحاب النبی ﷺ دحديث شريف نمبر (۳۷۱۰) صـ۲۰۵ ـ ۱۲ ټوک مکتبه رشيديه فتح الباري شرح صحيح البخاري کتاب فضائل النبی ﷺ دحديث شريف نمبره (۳۷۱۰) صـ۹۲ اووم ټوک مکتبه رشيديه .

## درسول اللهﷺ نفلي لمونځ

۲۸۹ ـ **مسئله** : د مغیره بن شعبة ﷺ څخه روایت دی ، دی وایي رسول اللهﷺ تر داسي اندازې پوري نفلي لمونځ کاوه چي پښې به يې وپړسیدلې ، په اصحابو کرامو ﷺ کي یو چا ورته وویل چي ته خپل ځان داسي په تکلیف کوې ، په تحقیق سره چي ستا مخکي او وروسته ګناهونه بخښل سویدي، نو رسول اللهﷺ په جواب کي ورته وويل چي زه شکر ګذاره بنده نسم؟[2]

## دښه او بد خوب دلیدو په وخت کي

۲۹۰ ـ **مسئله** : د ابي سعید الخدري ﷺ څخه روایت دی چي ما له رسول اللهﷺ څخه واوریدل چي هغه به ویل چي که چیري چا ښه خوب ولیدی ، نو دا دالله ﷻ له طرفه دی او دالله ﷻ حمد (الحمدالله) دي ووایي او داخوب دي یو چاته ووایي او که چا بد

[1] ((مامن مسلم یصیبه اذي الاحات الله عنه خطایه کما تحات ورق الشجرة ـ عمدة القاري شرح البخاري حدیث نمبر (۵۲۴۷) صـ ۳۱۴ ټوک نمبر ۲۱ مکتبه رشیدیه ـ موسوعة السیر السیرة النوبة الفصل السابع عشر غزوة تبوک وهي غزوع العسرة ص ۵۵۲ دوهم ټوک مکتبه دار ابن کثیر بیروت لبنان) .

[2] عن المضیرة بن شعبة قال صلي رسول الله حتی انتفخت لدماه ....... افلا اکون عبدا شکورا ـ جامع الترمذي ابواب الصلاة صـ۳ ۲۰ اول ټوک مکتبه رحمانیة) .

خوب ولیدی ، نو بیا دا دشیطان دخوا څخه دی نو دي هیڅ چاته نه وایي ، او وده ته تاوان او ضرر هم نه رسوي.[1]

## دالله ﷻ په دربار کي د دنيا اهميت

۲۹۱ ـ **مسئله** : دسهل بن سعد ﷺ څخه روایت دی ، دی وایي چي رسول الله ﷺ وفرمایل ، ژباړه : که چیري دنیا دالله ﷻ په دربار کي دغوماشي د وزر په اندازه قدر درلودای ، نو بیا به کافر ددې دنیا څخه دیو پله داوبو څښلو په اندازه نه وای څکلي.[2]

## د جنت د درختي صفت

۲۹۲ ـ **مسئله** : دابو هریره ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل ، ژباړه : په تحقیق سره په جنت کي درخته ده ، چي یو څوک پر سورلي سپور وي سل کاله به یې په سایه کي رفتار او تګ کوي.[3]

[1] (عن ابي سعيد الخدري انه سمع رسول الله يقول اذارای ........ولايذكرهالاحد فمانهالاتضرة ـ جامع الترمذي ابواب دعوات صـ۲۵۸ اول توک مكتبه رحمانية ).

[2] (عن سهل بن سعد قال قال رسول الله لوكانت الدنيا ....... كافرا منها شربة ماء ـ جامع الترمذي ابواب الزاهد صـ۵۰۷ دوهم توک مكتبه رحمانية ).

[3] (عن ابي هريرة عن رسول الله نه قال ان في الجنة شجرة ...... في ظلها مائة عام ـ جامع الترمذي ابواب الجنة صـ۵۳۱ دوهم توک مكتبه رحمانية ).

## بيله نږدېکت ځخه دښځي په رحم کي مني تويول

۲۹۳ ـ **مسئله** : داچي په ځينو ځايونو کي داکار مخ پر وړاندي روان دي چي دنارينه مني راواخلي او ديوې الي په واسطه يې دښځي ورحم ته داخل کړي ، نوموړي مسئله دوه حالته لري چي لومړي حالت يې دادی : مني که دخپل خاوند وي ، خو ديو سخت ضرورت په وجه داسي حالت استعمالوي چي اولاد پيداکړي ، نو په دې کار کي خو ضرورت دی او انشاالله چي په دې کړنه سره ګنا هم نسته ، خو بيا هم په دغه ډول حالت کي بايد کوښښ وسي چي نوموړي کار بايد ښځينه ډاکتراني ترسره کړي او که ښځينه ډاکترانې نه وي نو بيا نارينه ډاکتران هم دا کار ترسره کولای سي ، ځکه داخو يو ډول ضرورت دی.

دوهم حالت دادی چي ښځه خو د اولاد پيداکيدو ته اړتيا لري، لېکن خو د داسي چا لخوا ددې و رحم ته مني ورداخليږي چي د دوی په منځ کي نکاح نسته نو داکار حرام دی ، ځکه دې ته بيا شريعت زنا ويلې ده او دداسي کار ځخه بايد جدي منع وسي او

داځکه چې د زنا په اړه الله ﷻ ډير بد وعيد (وعده دعذاب) فرمايلی دی.[1]

## دنيا دمؤمن لپاره بندي خانه ده

۲۹۴ ـ **مسئله** : دابي هريرة(رضي الله عنه) څخه روايت دی، دی وايي چې رسول الله (ﷺ) وفرمايل، دنيا بندي خانه ده دمؤمن لپاره او دکافر لپاره جنت دی. (عن ابي هريرة قال قال رسول الله الدنيا سجن..............وجنة الكافر ـ [2]

## د چا څخه چې يو شی ورک سي

۲۹۵ ـ **مسئله** : د ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی ، چې يو شی ورک سي اودس دي تازه سي ، دوه ركعته لمونځ دي وسي او (اتحياته دي وويل سي او وروسته دي دغه دعا وويل سي : بِسمِ اللهِ ياهادي الضالَ وَرَادَ الضالة أُوْدُدعلى ضَالَتِي بِعزتِكَ وَسُلطَانِكَ ، فانَهَا مِنْ عَطَايَاكَ وَفضْلِكَ ) [3]

---

[1] فقه الاسلامي وادلته المحبث الرابع صـ۲۲۴۹ خلورم ټوک مكتبه فريديه.

[2] جامع الترمذي ابواب الزاهد صـ۵۰۷ دوهم ټوک مكتبه رحمانية ) .

[3] المصنف لابن ابي شيبة الدعاء دحديث نمبر(۳۰۲۳۸) صـ۳۴۵ پنځلسم ټوک مكتبه المجلس العلمي بيروت لبنان

## دعطسي (پرنجی) په وخت کي

۲۹۶ ـ **مسئله** : دحضرت علی بن ابي طالب ﷺ څخه روايت دی چي هر څاکه دهري عطسي په وخت کي (چي وايي وري)، (الحمد لله رب العلمين علي کل حال) ووايه، نو نه به دده زامه (غاښونه) خوږ سي او نه به دهميشه لپاره دده غوږونه خوږ سي.[1]

## د پيدا سوي کوچني په غوږو کي اذان کول سنت دي

۲۹۷ ـ **مسئله** : رسول الله ﷺ دامام حسين بن علی ﷺ په غوږ کي اذان کړی دی.[2]

## د قران کريم دتلاوت فضيلتونه

هره ورځ دقرآن عظيم الشان تلاوت وکړئ.

رسول الله ﷺ وفرمايل : قرآن کريم ووایاست، ځکه چي همدا قران کريم به دقيامت په ورځ دخپلو تلاوت کوونکو دشفاعت لپاره راسي.[1]

---

[1] المصنف لابن ابي شيبة الدعاء دحديث نمبر(۳۰۴۳۰) صـ ۳۸۱ پنځلسم توک مکتبه المجلس العلمي بيروت لبنان)

[2] (رايت رسول الله اذن في اذن الحسين بن علی حين ........ عون المعبود شرح سنن ابي داود كتاب الأدب باب في الملود يوذن في اذنه صـ ۸ څوارلسم توک مکتبه قديمي کتب خانه.)

رسول الله ﷺ فرمايي: دالله ﷻ كلام پر نورو كلامونو داسې فضليت لري لكه الله ﷻ چي پر ټولو مخلوقات باندې لري.[2]

په يوه حديث شريف كي رسول الله ﷺ فرمايلي دي: دوه كسه دحسد وړ دي چي څوک له هغه سره حسد وكړي يو هغه څوک دی چي الله ﷻ دقرآن كريم دولت وركړی دی او هغه عمل په وكړي، دوهم هغه څوک دی چي الله ﷻ يې په مال او شتو ونازوي او دی يې شپه او ورځ (د هغه دحكم سره سم) مصرف كړي.[3]

په يوه بل حديث شريف كي راغلي دي: دقيامت په ورځ به د قرآن كريم تلاوت كوونكي ته وويل سي: قرآن كريم وايه او دجنت په درجو پورته كېږه!! داسي كرار كرار يې وايه لكه چي تا په دنيا كي كرار وايه، هلته به ستا وروستی مقام وي چيرته چي ته اخري ايت شريف وايې.[4]

---

[1] صحيح مسلم كتاب الصلاة المسافر دحديث نمبر ١٨٧٢ ص ٣٢٥ مكتبه دارالسلام للنشر والتوزيع الرياض.

[2] جامع ترمذي فضائل قرآن د حديث شريف نمبر (٢٩٢٢) ص ٢٥٧ مكتبه دارالسلام للنشر والتوزيع الرياض.

[3] صحيح مسلم كتاب فضايل القرآن باب اغتباط صاحب القرآن دحديث نمبر ٥٠٢٥ ص ٩٠٠ مكتبه دارالسلام للنشر والتوزيع الرياض.

[4] جامع ترمذي فضائل قرآن باب ان الذي ليس فى جوفه من القران كالبيت الخراب د حديث شريف نمبر (٢٩١٤) ص ٢٥٥ مكتبه دارالسلام للنشر والتوزيع الرياض

په یو بل حدیث شریف کي فرمایي : څوک چي قرآن عظیم الشان وایي او په هغه کي ښه ماهروي (ښه روان یې وایي) هغه به (د قیامت په ورځ له نیکی) لیکونکو عزتمندو او نېکو کارو فرښتو سره وي. او [1] که یو څوک په لمانځه کي بیله عذر څخه مخ له قبلې څخه وګرځوي نو لمونځ یې فاسد بړي.[2]

## د جهاد په وخت کي لنګوټه

۲۹۸ _ **مسئله** : جعفر بن عمرو ابن حریت دخپل پلار څخه روایت کوي چي زما پلار ویل لکه (اوس) چي ورسول الله ﷺ ته ګورم چي دده پر سر باندي توره لنګوټه ده (او) دواړه شملې یې داوږو په منځ کي را ایله کړي دي.[3]

---

[1] صحیح مسلم کتاب فضایل القرآن دحدیث نمبر ۱۸۲۲ صـ۳۲۳ مکتبه دارالسلام للنشروالتوزیع الریاض.

[2] فتاوای التاتار خانیه کتاب الصلاة دمسئلي نمبر(۱۲۳۲)، صـ۳۹ دریم ټوک مکتبه حنفیه ، ـ فتاوای سراجیه کتاب الصلاة صـ۸۵ مکتبه زمزم للطباعث والنشر والتوزیع الریاض ، ـ محیط البرهاني کتاب الصلاة دمسئلي نمبر(۱۴۲۹)، صـ۱۲۰ دوهم ټوک مکتبه ادا رة القران والعلوم اسلامي المجلس العلمي بیروت لبنان ـ فقه الاسلامي وادلته صلوة صـ۱۰۳۳ دوهم ټوک مکتبه فریدیه.

[3] حدثني جعفربن عمرو ابن حریت عن ابیه قال : کاني انظر الی رسول الله ﷺ وعلیه عمامه ... بین کتفیه سنن ابن ماجه کتاب الجهاد دحدیث شریف نمبر (۲۸۲۱)، صـ۵۱۴ مکتبه دارالسلام للنشرو التوریع الریاض.

## په لمانځه کي تی ورکول

۲۹۹ـ **مسئله**: که یوه ښځه په لمانځه کي یوه کوچني ته (شیدې) ورکړي نو لمونځ یې فاسد ږي یعني که کوچنی دښځي تی وروي او هغه هم شیدې را ایله کړي، او که چیري شیدې راایله نه کړي نو لمونځ یې نه فاسد ږي.[1]

## د راډیو او تلویزون جوړول

۳۰۰ ـ **مسئله**: د راډیو او تلویزون جوړول په هیڅ صورت کي روا نه دي ځکه چي داپر ګناه باندي کومک دی او پر ګناه باندي کومک کول قرآن شریف حرام بللی دی ځکه الله ﷻ دسورة المائدې په دوهم آیت کي فرمایي: (وَتَعَاوَنُواْ عَلَى ٱلۡبِرِّ وَٱلتَّقۡوَىٰۖ وَلَا تَعَاوَنُواْ عَلَى ٱلۡإِثۡمِ وَٱلۡعُدۡوَٰنِۚ)

ژباړه: دتقوا او خیر په کار کي له یو بل سره مرسته وکړئ، او دګناه په کار کي مرسته مه سره کوئ. چاته چي ددې لاري ښخه کوم

[1] محیط البرهاني کتاب الصلاة دمسئلې نمبر (۱۴۷۳ ـ ۱۴۷۴ ـ ۱۲۳ ـ ۱۲۳ دوهم ټوک مکتبه ادارة القرآن والعلوم السلامیه ـ فتاوای التاتار خانیه کتاب الصلاة دمسئلې نمبر (۲۲۲۵)، ص۳۴ دریم ټوک مکتبه حنفیه، عالمګیري کتاب الصلوة باب السابع فی مایفسد ص۱۰۴ لومړی ټوک مکتبه رشیدیه

شی په لاس ورځي هغه ټول حرام دي او په راډيو باندي چي څوک غزلي اوري هغه هم دتلويزيون په حکم کي راځي او کـه چيري دنارينو په ږغ کي خبرونه ، نصيحتونه ، نعتونه او نوري ګټوري خبري په اوري بيا نو ان شاء الله ګناه نسته.[1]

## په لمانځه کي لنګوټه پورته کول

۳۰۱ ـ **مسئله** : کـه يـوه سړي په لمانځه کي دځمکي څخه لنګوټه پورته کړه او پر سر يې کښيښوله ، يا يې لـه سر څخه ايسته کړل او پر مځکه يې کښيښوله ، په دغه دواړو صورتونو کي يې لمونځ نه فاسديږي ، همدارنګه که چيري سړی دخپلي لنګوټې يو ول ورسم کړي هم يې لمونځ نهٔ فاسد يږي.[2]

## په لمانځه کي غاړه تازه کول

۳۰۲ ـ **مسئله** :که يو سړی په لمانځه کي بيله عذره څخه غـاړه تـازه کړي او له هغه څخه حروف پيداسي نو لمونځ يې فاسد سو او که

[1] سورة المائده ايت نمبر (۲) ـ فتاواى هاديه په حواله داحسن الفتاوای صـ ۳۱ صـ۲۲۵ لومړي ټوک مکتبه حقانيه

[2] محيط البرهاني کتاب الصلاة دمسئلي نمبر(۱۳۷۳)،صـ۱۲۲ دوهم ټوک مکتبه ادارة القرآن العلوم اسلاميه ـ فتح المفتي والمسائل دلمانځه مفسدات دسوال نمبر (۹۸)،صـ۲۳۵ مکتبه قاسميه ـ فتاواى التاتار خانيه کتاب الصلاة دمسئلي نمبر(۲۲۲۴)،صـ۲۳۲ دريم ټوک مکتبه حنفيه .

چيري حروف نه سي ورڅخه پيدا نو بيا يې لمونځ نه فاسدېږي خو داكار مكروه كار دى ، او كه چيري مجبوره ؤ چې خامخا غاړي تازه كړي (يعني قرائت سم نسي ويلاى) نو بيا لمونځ نه فاسدېږي كه څه هم حروف پيداسي او كه پيدا نه سي.[1]

## په لمانځه کي د كميس تنۍ تړل

۳۰۳ ـ **مسئله**: كه يو سړى په لمانځه کي د كميس غوټي (تنۍ) وتړلي لمونځ يې نه فاسدېږي .[2]

## د«واقعې» سورة فضيلت

۳۰۴ ـ **مسئله**: دواقعې دسورة فضيلتونه په بېلا بېلو روايتونوكي راغلي دي:

[1] فتاواى سراجه كتاب الصلاة مايفسد صلاة صـ۸۲ مكتبه زمزمالكتاب والسنة على فهم سلف صالح ـــــ فتاواى عالمګيري الباب السابع فيما يفسد صلاة صـ۱۰۱ لومړي ټوک مكتبه رشيديه ، محيط البرهان كتاب الصلاة دمسئلي نمبر (۱۴۵۴) دوهم ټوک مكتبه دارالة والعلوم اسلاميه المجلس العلمي بيروت لبنان ـ نفع المفتي والسائل دلمانځه مفسدات دسوال نمبر (۲۲۹) صـ۱۹۳ مكتبه قاسميه ـ فتاواى التاتار خانيه كتاب الصلاة دمسئلي نمبر (۲۱۲۰) صـ۲۰۲ دريم ټوک مكتبه حنفيه ـ فقه الاسلامي وادلته الصلاة مفسدات الصلات صـ۱۰۲۳ دوهم ټوک مكتبه فريديه -

[2] فتاواى عالمګيري الباب السابع فيما يفسد صـ۱۰۳ لومړي ټوک مكتبه رشيديه ـ فتاواى التاتار خانيه كتاب الصلاة دمسئلي نمبر (۲۲۲۲) صـ۲۳۳ دريم ټوک مكتبه حنفيه ـ

په يوه حديث شريف كي راغلي دي چي : ژباړه : حضرت عبدالله بن مسعود (ﷺ) له حضور (ﷺ) څخه دا ارشاد نقل كړى دى : كوم څوک چي هره شپه دواقعي سورة ووايي ،هغه ته كله هم لوږه نه رسيږي ابن مسعود (ﷺ) به خپلو زامنوته ويل : هره شپه همدا سورة لولئ .[1]

## دسورة الحشر فضيلت

۳۰۵ ـ **مسئله** :ابي امام (ﷺ) روايت كوي چي : كه دسورة الحشر اخري ايتونه دشپي اويا ورځي تلاوت كړل نو كه په دغه شپه ، يا ورځ مړ سو په تحقيق سره جنت ورته واجب سو .[2]

رسول الله ﷺ وفرمايل ـ ژباړه : كه دسهار په وخت كي دري لاندي ايتونه تلاوت كړل (اعوذ باالله السميع العليم من الشيطان الرجيم ) اودري ايتونه دسورة حشر ووايي نو الله (ﷻ) به دده لپاره (۷۰۰۰۰) ملائكي (ع) مقرري كړي چي تر ماښام پوري پر ده باندي

[1] كنزالعمال كتاب الاذكار حديث نمبر(۲۲۳۷)صـ۲۹۰ لومړی توک مكتبه رحمانيه ـ شعب الايمان للبيهقي فصل في فضائل السورة والايات دحديث شريف نمبر (۲۲۹)

[2] كنزالعمال كتاب الاذكار حديث نمبر(۲۲۴۰)صـ۲۹۰ لومړی توک مكتبه رحمانيه ـ

درود ووايي او كه په دغه ورځ مړسو نوشهيد مړسواو همدارنګه كه يي مابنام وويل .[1]

## په لمانځه كي چي اوله ناسته پاته سي

۳۰۲ _ **مسئله** :كه چيري ديوه لمونځ كونكي څخه په سهو (خطا) سره په څلور ركعتي يا درې ركعتي لمانځه كي لومړی ناسته پاته سي، كه چيري ددغه سهوي په وخت كي ناستي ته نژدې وي نوبيرته دي ناستي ته راوګرځي او ناسته دي وكړي څكه كه چيري ناستي ته نژدې وي نو دناستي حكم اخلي او كه ولاړي ته نژدې وي نو بيا دولاړي حكم اخلي . ځينو دفقه پوهانو په دې وخت كي سجده سهو لازمه بللې ده ، هغوی داسي دليل وايي چي ناسته خو واجب ده او هغه دلته په ولاړي سره وځنډيدل نو څكه سجده سهو ورباندي واجب ده. خو صحيح خبره داده چي سجده سهوه نه باندي لازميږي څكه چي په هيڅ رقم ولاړه نه ده راغلې څكه معنی د نژدېوالي و ولاړي ته خو داده چي كوناتي دمځكي څخه پورته كړي او ځنګنونه يې پر مځكه باندي پراته وي، ځيني دفقه پوهان وايي چي كه

---

[1] ترمذي فضائل قرآن د حديث شريف نمبر(۲۹۲۲) صـ۲۵۲ مكتبه دارالسلام للنشروالتوزيع الرياض ـ تحفة الاحوذي كتاب فضائل قرآن حديث شريف نمبر (۲۹۲۲) صـ۲۳۹ اتم توک مكتبه قديمي كتب خانه ـ

دلمونځ کوونکي لاندې نيم طرف ته نه و لوړ سوی نو ناستي ته نژدې دی او که لوړ سوی ۇ نوبيا وو ولاړي ته نژدې دی او هغه لوړ طرف ته اعتبار نسته ليکن ښه او صحيح خبره داده چي ښه سم نه وي درېدلی نو دی ولاړي ته نژدې نه دی بلکي وناستي ته نژدې دی او داغه خبره هم وحق ته نژدې ده او که چيري بيا ولاړي ته نژدې ۇ نو بيادي وناستي ته نه راګرځي بلکي ودي درېږي ځکه نو دی اوس داسي دی لکه ولاړ چي وي او په اخير کي دلمانځه به سجده سهو وکړي ځکه ده ناسته پرېښول او اوله ناسته په لمانځه کي واجب ده نو په دې وجه پرده باندي سجده سهو واجيږي، او که چيري ده بيا په داسي حال کي چي ولاړي ته نژدې ۇ ناسته وکړل يعني کښېنستئ نو لمونځ يې فاسد دی پر هغه صحيح قول باندي ځکه ده پوره جنايت وکړئ هغه په دې چي ده پر فرضو سره شروع وکړل چي هغه ودريم رکعت ته ولاړه ده او بيرته يې شروع ماته کړل په داسي يو شي سرهٔ چي هغه اول ناسته ده چي هغه هم فرض نه ده.

محقيقين علماء کرام رحمهم الله داهم وايي چي د ګناه بيره هم وربانديستهٔ ځکه په فرضو باندي شروع وسوه او بيرته ماته سول .[1]

## دچا پر بدن چې زخم وي

۳۰۷ ـ **مسئله**: كه چيري ديوچادبدن ډيره برخه زخمي او لږ برخه يې جوړه وي نو په دې وخت كې پكار دي چې تيمم ووهي او بيا لمونځ وكړي او كه چيري يې دبدن ډيره برخه جوړه وي او لږ برخه يې زخمي وي نو په دې وخت كې دي دبدن جوړه برخه پريمنځل سي او پر زخمي برخه دي مسح وكړي ، همدارنگه كه چيري يې دبدن يوه حصه زخمي او يوه حصه جوړه وي نو په دې وخت كې دي هم جوړه حصه پريمنځل سي او پر زخمي حصه دي مسح وكړي.[۱]

## دمسجدونو ښايسته جوړول

۳۰۸ ـ **مسئله**: دمسجدښكلاو يامسجد ته په درنه اودعزت په ستر گه كتل دادي چې دمحل خلك پنځه وخته لمونځونه په مسجد

---

[۱] التجريد كتاب الطهارة دمسئلي نمبرصـ۴۷ صـ۲۵۹ لومړي ټوک مكتبه محموديه ـ تبين الحقايق كتاب الطهارة باب التيمم صـ۱۳۲ لومړي ټوک كتبه اشرفيه ـ فتح القدير كتاب الطهارة صـ۱۴۴ لومړي ټوک مكتبه رشيديه - مجمع الانهر كتاب الطهارة صـ۲۷ لومړي ټوک مكتبه الحرمين الشريفين ـ مبسوط للسرخسي كتاب الطهارة باب التيمم صـ۲۲۳ لومړي ټوک مكتبه الغفاريه - جامع ترمذي فضائل قرآن باب ماجاني المبعوذ تين د حديث شريف نمبر(۲۹۰۲ ، صـ۲۵۲ مكتبه دارالسلام للنشروالتوزيع الرياض ـ صحيح مسلم كتاب فضائل القرآن دحديث نمبر ۱۸۹۱ صـ۳۲۸ مكتبه دارالسلام للنشروالتوزيع الرياض ـ رحمانيه ـ (الترغيب والترهيب كتاب الاذكار والدعاء دحديث ۱ نمبرصـ ۱۵۱ دوهم ټوک مكتبه محموديه

کي په جماعت سره ادا کړي، که د مسجد ودانۍ خامه وي او که پخه وي ، ښايسته وي او که بدرنګه دا فرق نه کوي داپه دې معنې ده چي که مسجد ښايسته وي نو لمونځ په کښې کول ډېر ثواب لري او که بدرنګه وي نو بيا په ثواب کي کمښت راځي ، خو اوس خلک داسې فکر کوي چي که څوک مسجد په ډول ډول د ښکلا په سامانونو ښکلی کړي نو دا ډېر ثواب لري نور نو که لمونځ په کور کي کوي ، که يې په مسجد کي کوي او ياېې په جماعت سره کوي او ياېې په جماعت نه کوي داپه پام کي نه نيسي.

مقدس شريعت د مسجدونو د ښايسته کولو په اړه داسې لارښووني لري : مسجدونه په داسې نقش ؤ نګار سره جوړول چي دلمونځ کوونکو دوسوسو او تشويش سبب ګرځي ( په خانګړي ډول په محراب کي ياد قبلې طرف ته چي دلمونځ کوونکي سترګي هر ګړي وراوړي ) نو دا کار په شريعت کي مکروه کار دی ، خو که چيري دغه نقش ؤ نګار د قبلې خواته نه وي يعني دلمونځ کوونکي سترګي دلمانځه په وخت کي نه وراوړي نو بيا پروا نه کوي.

که چيري د مسجد متولي (سرپرست) دغه نقش ؤنګار مسجد ته په وقف سوو پيسو باندي وکړي نو دغه مصرف بايد متولي دځپل

جیب څخه ورکړي څکه متولي ته پکار دي چي وقف سوي پیسې د مسجد په ابادولو کي مصرف کړي نه په نقش ؤنگار کي څکه چي مسجد ودانیو ته ضرورت لري او نقش ؤ نگار ته ضرورت نه لري.[1]

## د ښځي نفقه چي د پلار په کور کي اوسیږي

۳۰۹ _ **مسئله**: دښځي لپاره (دخاوندپه اجازه) دمور او پلار په کور کي اوسیدل روا دي خو دارتیا وړ شیانو مصارف یې دخاوند په غاړه دي ، خاوند دي داسي فکر نه کوي چي میرمن مي دخپل پلار په کور کي اوسیږي او نفقه دښځي پر پلار ده بلکي دښځي نفقه او دسکونت ځای پرخاوند باندي دهغه وخت څخه لازمیږي کله چي ښځي خپل ځان خپله خاوند ته دګټي اخیستلو لپاره ور تسلیم کړی

[1] هدایه کتاب الصلوة باب ما یفسد الصلوة وما یکره فیها صـ ۲۸۲ لومړي ټوک مکتبه البشری ـ بنایه شرح الهدایه کتاب الصلوة باب ما یفسد الصلوة وما یکره فیهاصـ۴۷۲ دوهم ټوک مکتبه حبیبیه ـ ردالمختار کتاب الصلوة باب ما یفسد الصلوة وما یکره فیها مطلب کلمة لاباس دلیل علی ان المستحب غیره صـ۴۸۷ لومړي ټوک مکتبه رشیدیه ـ فتاوای هندیه کتاب الصلواة الباب السابع فیهاما یفسد الصلوة ومایکره الفصل الثاني فیها یکره فی الصلوة وما لایکره الفصل صـ ۱۰۹ لومړي ټوک مکتبه رشیدیه.

که څه هم خاوند د کوچنيوالي په وجه ياپه کومه بله وجه باندې د نږدېکت طاقت ونه لري .[1]

## په شريعت کې دلمر دحرکت ثبوت

۳۱۰ _ **مسئله** :دابی ذرﷺ څخه روايت دی چې زه درسول اللهﷺ سره دلمر لويدلو پر مهال په مسجد کې ناست وم چې رسول الله ﷺ راته وويل : ای اباذر ! ته خبر يې چې دغه لمر چيرې لويږي ، ما ورته وويل : چې اللهﷻ او دهغه رسول ﷺ ښه پو هيږي، نو رسول اللهﷺ راته وويل : چې دغه لمر ځي تر داسې اندازې پورې چې تر عرش لاندې اللهﷻ ته سجده کوي الله ﷻ فرمايي :

ژباړه : او لمر پر خپلې ټاکلې لارې (مدار) لاندې ځي ، داده ځواکمن پوهيدونکي تقدير دی.نو دا داسماني دلايلو څخه بل دليل دلمر ټاکل دي چې په مداره توګه خپلې قرارګاه ته حرکت کوي او په منزل ډول خپل ټاکلي واټن وهي ، نه وروسته پاته کېږي او نه وړاندې

[1] فتجب للزوجة على زوجها ولو هى فى بيت ابيها اذالم يطالبها الزوج بالفقة به يفتى ردالمختار النكاح باب الفقه صـ٢٩٩ دوهم ټ.ک مکتبه رشيديه _ النشزة لانفقه لها وهى التى خرجت عن منزل الزوج بغيرحق ، خانيه على هامش الهنديه كتاب النكاح باب النفقه صـ٤٢٢ لومړي ټوک مکتبه رشيديه _ عالمګيري کتاب النكاح الباب السابع عشر فى النفقات صـ٥٤٥ لومړي ټوک مکتبه رشبديه _ الموسوعة الفقهيه تاليف كبار علماء الاسلام نشوزة صـ٢٨٤ ، ٤٠ ټوک مکتبه حقانيه _ هدايه کتاب النكاح باب الفقه صـ ٣٢٠ دریم ټوک مکتبه البشرى.

تیریږي بلکي د حرکت اندازه یې په دقیقه توګه تاکل سوي ده ، همدا ډول لمر په یوه ورځ کي د مشرق څخه د مغرب خواته په خاصه طریقه حرکت کوي او په یوه کال کي ۳۲۰ دوره د مشرق څخه ومغرب ته وهي. دلمر لپاره د قرار ځای همدغه د عرش لاندي ځای دی چي الله ﷻ ته سجده کوي تر هغه وخته پوري چي د الله ﷻ لخوا ورته داسي امر وسي چي بیرته د هغې خوا څخه راوخېژه چي ته لویدلی یې، څوک دي داپوښتنه نه کوي چي لمر الله ﷻ ته څنګه سجده کوي ځکه چي الله ﷻ پر هر څه قدرت لري ځیني عارفان (الله پېژندونکي) داسي وایي : لکه یو څوک چي دشپې په او داسه سره بیده سي نو بیا یې په خوب کي روح الله ﷻ ته سجده کوي، نو په همداسي ډول لمر الله ﷻ ته سجده کوي. [1]

[1] عن ابي ذر (رضی الله عنه) قال كنت مع النبی ﷺ فی المسجد عند غروب الشمس فقال یا اباذر ! اتدري این تغرب الشمس ؟ قلت الله ورسوله علم قال فانها تذهب حتی تسجد تحت العرش، فذالک قوله تعالی (وَالشَّمْسُ تَجْرِي لِمُسْتَقَرٍّ لَّهَا ذَٰلِكَ تَقْدِيرُ الْعَزِيزِ الْعَلِيمِ) سورة یس ایت ۳۸ ـ صحیح البخاري کتاب التفسیر د حدیث شریف نمبر ۴۸۰۲ صـ ۴۵ مکتبه دارالسلام للنشر والتوزیع الریاض ـ عمدة القاري کتاب التفسیر د حدیث نمبر ۴۸۰۲ صـ ۱۹۱، ۱۹ ټوک مکتبه رشیدیه ـ فتح الباري شرح البخاري کتاب التفسیر د حدیث نمبر ۴۸۰۲ صـ ۲۹۴ اتم ټوک مکتبه رشیدیه ـ صحیح المسلم کتاب الایمان د حدیث نمبر ۳۹۹ یا ۲۵۰ یا ۱۵۹ صـ ۷۹ مکتبه دارالسلام للنشر والتوزیع الریاض ـ جامع الترمذي کتاب التفسیر د حدیث نمبر ۳۲۲۷ صـ ۷۳۳ مکتبه دارالسلام للنشر والتوزیع الریاض ـ سنن ابي داود لومړي ټوک الحروف والقرآنت د حدیث نمبر ۴۰۰۲ صـ ۷۹۵ مکتبه دارالسلام للنشر والتوزیع الریاض ـ سپېڅلی قرآن سورة یس ایت ۳۸ صـ ۲۲۵ مکتبه حبیبیه ـ عزیز التفاسیر سورة یس ایت ۳۸ صـ ۲۸۸ لسم ټوک مکتبه دار

## په عده کې نکاح

۳۱۱ ـ **مسئله** :مسئله: که چیرې دیوې ښځې خاوند مړسي یایوه ښځه خاوند طلاقه کړې،نو که چیرې دغه ښځه دڅلورو میاشتو په جریان کې له بل سړي سره نکاح وکړي نودا سې مثال لرې لکه نکاح چې یې نه وي کړې یعني د داسې ښځې سره نکاح کول روا نه دي چې په عده کې وي ،دغې ښځې ته لازمه ده چې څلورمیاشتې او لس ورځې عده تیره کړي ا وبیاوروسته له بل سړي سره نکاح وکړي .[1]

۳۱۲ ـ **مسئله** : دژوندي چرګانو خرڅول په تول (وزن) سره روا دي که څه هم دساه اخیستلو په وجه دچرګانو وزن ښه نه معلومیږي او په

الکنوز العلمیه ـ تفسیر ابي السعود سورة یس ایت ۳۸ صـ۳۰۰ پنځم ټوک مکتبه معروفیه ـ الموسوعة القرانیة سورة یس ایت ۳۸ صـ۱۸۴ اووم ټوک مکتبه دارالتقریب بین المذاهب الاسلامیة بیروت لبنان- تفسیر الکبیرللفخرالدین الرازي سورة یس ایت۳۸صـ۲۷۲نهم ټوک مکتبه قاسمیه-تفسیرالقرطبي سورة یس ایت۳۸صـ۲۸پنځلسم ټوک مکتبه رشیدیه-تفسیرروح البیان سورة یس ایت۳۸صـ۴۲۸اووم ټوک مکتبهالقدوس.

[1] ردالمحتارکتاب النکاح فصل فی المحرمات صـ۳۰۰ دوهم ټوک مکتبة رشیدیه ـ کتاب النکاح فصل ومنها . ان لایکون بها حمل ... صـ۵۵۰ دوهم ټوک مکتبه رشیدیه ـ فتاوای هندیه کتاب النکاح الباب الثالث فی بیان المحرمات القسم السادس المحرمات التی یتعلق بها حق الغیر صـ۲۸۰ لومړي ټوک مکتبه رشیدیه .

وزن کي يې يو څه جهالت (پورته کښته وزن) راځي خو دا جهالت د ير لږ دی انشاء الله جنجال نه پېه کي راځي.[1]

## د سورة الملک فضيلت

۳۱۳ ـ **مسئله**: سورة الملک (تَبٰرَکَ الَّذِی بِيَدِهِ الْمُلْکَ وَهُوَ عَلٰی کُلِّ شَیءٍ قَدِيرٌ) زيات واياست او په ويلو يې مړو ته ثوابونه وربخښئ، ځکه چي په يو حديث شريف کي راغلي دي چي: د سورة الملک ۳۰ آيتونه دانسان دومره شفاعت کوي چي مغفرت ورته وسي. يو بل روايت دی چي: دخپل لوستونکي تر هغه مهاله دمغفرت غوښتنه کوي څو وبخښل سي. رسول الله ﷺ وفرمايل د ((تَبٰرَکَ الَّذِی)) سورة (سړی) دقبر دعذاب څخه خلاصوي.[2]

---

[1] فان کان مجهولاً جهالة يسيرة ... او فاحشة الفقه الاسلامي وادلته المبحث الرابع البيع الباطل والبيع الفاسد المطلب الثاني صـ۳۴۴۱ پنځم ټوک مکتبه فريديه ـ لان حيوان لايوزن عادتاً ... لان يخفف نفسه مرة ويثقل اخري ـ هدايه کتاب البيوع باب الربا صـ۱۸۲ پنځم مکتبه البشرای ـ وان الحيوان ليس يموزون لانه لايوزن عادة فليس فيه احد ... دوالکيل ـ فتح القدير کتاب البيوع باب الربا صـ۲۲ اووم ټوک مکتبه رشيديه.

[2] جامع ترمذي فضائل قرآن د حديث شريف نمبر (۲۸۹۱) صـ۲۵۰ مکتبه دارالسلام للنشر والتوزيع الرياض ـ تحفه الحوذي کتاب ترمذي فضائل القرآن باب ماجاء في فضل سورة الملک دحديث نمبر ۲۸۹۱ صـ۲۰۲ اتم ټوک مکتبه قديمي کتب خانه ـ (الترغيب والترهيب کتاب القرات القران دحديث نمبر ۱ صـ۲۴۲ دوهم ټوک مکتبه محموديه ـ کنزالعمال کتاب الاذکار دحديث نمبر (۲۲۴۲) صـ۲۹۱ لومړی ټوک مکتبه رحمانيه ـ (الترغيب والترهيب کتاب القرات القران دحديث ۲ نمبر صـ۲۴۷ دوهم ټوک مکتبه محموديه ـ کنزالعمال کتاب الاذکار دحديث نمبر (۲۲۴۲) صـ۲۹۱ لومړی ټوک مکتبه رحمانيه.

## دلاس روغبړ سنت دی

**۳۱۴ ـ مسئله**: رسول اللهﷺ وفرمایل که چا دخپل مسلمان ورور سره په لاس روغبړ وکړ او خپل لاس یې دده په لاس کې وښوراوه نو الله ﷻ به یې ګناهونه داسې وروړژوي لکه ددرختي بلګونه په یو بل حدیث شریف کې بیا رسول اللهﷺ وفرمایل: نسته یو دوه مسلمانان چې سره یو ځای سي او په لاس روغبړ سره وکړي مګر داچې الله ﷻ دواړوته بخښنه وکړي مخکې تر جلاکېدو.[1]

## د سهوي دسجدې لپاره سلام ګرځول

**۳۱۵ ـ مسئله**: دامام، مقتدي او یوازي لمونځ کوونکي لپاره په سجده سهو کې دټولو فقهاؤ په نزد یوې خواته (راسته طرف ته) سلام ګرځول او سجده کول بهتر دي لیکن ځینو محققینو لکه دهدایه مصنف (رحمه الله) او داسې نورو دواړوخواوته سلام ګرځول

؛

[1] دالترغیب والترهیب کتاب الاداب دحدیث نمبر ۱ صـ۲۸۹ دریم ټوک مکتبه محمودیه ـ تبیین الحقائق کتاب الکراهیه صـ۵۷ اووم ټوک مکتبه اشرافیه په حواله دزیلعي فی نصب الرایة صـ۲۵۹ څلورم ټوک او په حواله دسنن ابن ماجه صـ۳۷۰۲ او په حواله داحمدي مسندرقم صـ۱۸۲۲۴ ـ هدایه کتاب الکراهیة صـ۲۲۴ اووم ټوک مکتبه البشرای ـ مجمع الانهر کتاب الکراصـ ۲۰۴ څلورم ټوک مکتبه الحرمین الشریفین ـ فتاوای الکلملیه فی حوادث الطابلسیة صـ۲۲۲ مکتبه الحرمین الشریفین ـ فقه الحنفي فی ثوبه الجدید المصافحه صـ۴۱۰ لومړي ټوک مکتبه حقانیه ـ بحرالرائق کتاب الکراهیة ۳۵۲ اتم ټوک مکتبه رشیدیه.

راجح (ښه) بللي دي. که څه هم دځينو فقهاؤ په نزد ودواړو خواو ته په سلام ګرځولو سره دلمانځه څخه د وتلو له وجهې سجده سهو ساقطېږي خو دواړي طريقې جائزي دي خوبيا هم يوې خواته سلام ګرځول بهتر دي.[1]

## دځينو خوبونو تعبيرونه

۳۱۲ ـ **مسئله**: که چا په خوب کې داسې حالت وليدی چې دخپل دښمن سره غاړه په غاړه سي ، نو الله ﷻ به ددوي له منځه څخه دښمني ليري کړي، مينه او الفت به د دوی په منځ کې واچوي، څکه چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې : ژباړه : په روغبړ سره (دخلګو په منځ کې) دوستي زياتېږي .[2]

ـ که چا په خوب کې عزرائيل ﷺ داسې وليدی چې خوشحاله ؤ ، نو الله ﷻ به دغه ليدونکی شهيد کړي او که چا دقهر او غضب په

[1] قال على بن بكر المرغيناني ﷫ وياتي به تسليمتين هو الصحيح هدايه كتاب الصلاة باب سجود السهو صـ٢٣١ لومړي ټوک مکتبه البشرای . ـ ردالمختار كتاب الصلاة باب سجود السهو صـ٥٤٥ ، ټوک ١ مکتبه رشيديه ـ حاشيه طحطاوي على المراقي الفلاح كتاب الصلاة باب سجود سهو صـ٣٧٧ مکتبه الاتصاري ـ فتاوای هنديه كتاب الصلاة باب الثاني عشر سجود السهو صـ١٢٥ لومړي ټ.ک مکتبه رشيديه.

[2] تفسير الاحلام الامام ابن سيرين الباب السابع فى تاويل السلام والمصافحة صـ٥١ مکتبه دارالدعوة الاسلاميه خلف الجمع الازهر .

حال کي وليدی نو ليدونکی به بيله توبې څخه مړ سي ، خو څينو بيا دملک الموت ليدل په خوب کي د اوږده عمر په معنی تعبير کړی دی .[1]

که چا شيث عليه السلام په خوب کي وليدی نو الله ﷻ به خوب ليدونکي ته اولادونه او مالونه ورکړي او داسي ژوند به الله ﷻ ورنصيب کړي چي دی ورباندي راضي وي .[2]

که چاپه خوب کي داسي يو حالت وليدی چي الحمدالله وايي نو الله ﷻ به دده لپاره دخير دروازه خلاصه کړي او دشر دروازه به ورباندي بنده کړي ، او که چابيا په خوب کي خپل ځان په داسي حالت کي وليدی چي سورة البقرة وايي ، نو الله ﷻ به يې عمر وږد ير کړي او دين به يې ورنيک او ښه کړي .[3]

[1] تفسير الاحلام الامام ابن سيرين الباب الثالث فی رؤيا الملائکه صـ ۴۰ مکتبه دارالدعوة الاسلاميه خلف الجمع الازهر .

[2] تفسير الاحلام الامام ابن سيرين الباب السابع فی رؤيا الانبياء والمرسلين عموماً ورؤيا محمد ﷺ خصوصاً صـ ۳۲ مکتبه دارالدعوة الاسلاميه خلف الجمع الازهر .

[3] تفسير الاحلام الامام ابن سيرين الباب السابع فی تاويل سورة القرآن صـ ۴۳ مکتبه دارالدعوة الاسلاميه خلف الجمع الازهر .

## د قبر مچول حرام دي

۳۱۷ ـ **مسئله**: د تعظيم او تکريم په توګه د قبرونو مچول کفر او ګمراهي ده او پر ته د تعظيم له نيت څخه يې مچول حرام او کبيره ګناه ده څکه چې دا د يهودو او نصاراوو طريقه ده ، نو که چيري يو چا دا کار کړی وي بايد والله ﷻ ته توبه وباسي او په راتلونکي وخت کي داسي کار ونه کړي.[1]

## چي يو حيوان حلال کړي په نس کي يې بل حيوان وي

۳۱۸ ـ **مسئله**: که چيري يو څوک داسي يو حيوان حلال کړي چي خوړل يې روا وي او وروسته تر حلالېدو يې په نس کي يو کوچنی حيوان موجود وي نو د امام اعظم صاحب په نزد که چيري دغه کوچنی حيوان مړ وو نو خوراک يې نه دی روا او که چيري دغه کوچنی حيوان ژوندی وو او وروسته يې حلال کړي نو بيا يې خوراک حلال دی.[2]

[1] ردالمحتار باب الاستبراء قال علامه حصكفي رحمه الله بين العلماء ... اثمامرتكبا صـ۳۸۳ شپږم ټوک ـ فتاوای عالمګيري الباب الثامن والعشرون فی ملاقات الملوک التوزضع لهم صـ ۳۶۹ پنځم ټوک مکتبه رشديه.

[2] تفسير ايات الحكام من القرآن صـ۱۲۴ لومړي ټوک داراحياء التراث عربي بيروت لبنان.

## دسورة کهف فضيلت

۳۱۹ ـ **مسئله**: د هري جمعي په شپه يا ورځ حتماً سورة کهف تلاوت کړئ، له فضيلتونو څخه يې يو څو دادي:

ـ په حديث شريف کي راغلي دي چي: څوک چي دجمعې په ورځ سورة کهف تلاوت کړي دهغه لپاره به له دې جمعې څخه تر بلې جمعې پوري يو روښانه نور وي.[1]

ـ په يو بل حديث شريف کي راغلي دي چي: څوک چي دجمعې په شپه سورة کهف تلاوت کړي دهغه لپاره به دده له ځايه تر بيت العتيق (دکعبې خوني) پوري نور خپور وي. په بل روايت کي راځي: چاچي سورة کهف لکه څنګه چي نازل سوی دی، هغسي تلاوت کړی نو دهغه له ځايه ترمکې مکرمې پوري به ورته د وړانګو غورځوونکو نور جوړيږي او کوم څوک چي يې وروستي لس آيتونه تلاوت کړي نو که (دده په ژوند کي) دجال څرګند سو پرده به واک ونه مومي (د دجال له فتنې به ساتل سوی وي).[2]

[1] فيض القدير حرف الميم دحديث نمبر (۸۹۲۹) شپږم ټوک مکتبه دارالکتب العلميه بيروت.

[2] جامع ترمذي ابواب فضل القرآن د حديث شريف نمبر (۲۸۸۲) صـ۳۴۹ مکتبه دارالسلام للنشروالتوزيع الرياض ـ سنن الکبرای للبيهقي صـ۲۴۹ دريم ټوک ـ الترغيب والترهيب کتاب القراة القران دحديث نمبر ۲ صـ۴۲۵ درهم ټوک

ـ په يو بل حديث شريف کي راغلي دي چي: څوک چي دجال وويني (دهغه په وړاندي څرګند سي) هغه ته ښايي چي کهف سورة لومړني لس ايتونه دهغه په مخ کي تلاوت کړي ځکه دا ايتونه يې تلاوت کوونکی له فتني څخه ساتي ځکه نو يو مسلمان بايد خپلو اولادونو ته لږ تر لږه دسورة کهف د يادولو ترغيب ورکړي.[1]

ـ رسول الله ﷺ وفرمايل: که څوک لس اياتونه دسورة الکهف په ياد کړل نو د دجال دفتني څخه به وساتل سي.[2]

## که دسهار پر لمانځه ولاړ وي لمر راوخيژي

۳۲۰ ـ **مسئله**: که چيري يو څوک دسهار پر لمانځه ولاړ وي او په دې وخت کي لمر راوخيژي نو دغه لمونځ يې باطل سو، ځکه رسول

مکتبه محموديه ـ کنزالعمال کتاب الاذکار دحديث نمبر(۲۲۰۷)، ص۲۸۸ لومړی ټوک مکتبه رحمانيه ـ تحفه الاحوذي کتاب فضايل القران ماجاء في فضل سورة الکهف دحديث نمبر ۲۸۸۲ اتم ټوک مکتبه قديمي کتب خانه.

[1] سنن ابي داود متاب الملاحم دحديث نمبر ۴۳۲۱ ص۸۵۲ مکتبه دارالسلام للنشر والتوزيع الرياض ـ کنزالعمال کتاب الاذکار دحديث نمبر(۲۵۹۸)، لومړی ټوک مکتبه رحمانيه ـ بذل المجهود في حل ابي داود الجزء السابع عشر نهم ټوک دحديث نمبر ۴۳۲۱ ص۱۲۱ مکتبه داراکتب العلميه بيروت لبنان ـ عون المعبود شرح سنن ابي داود کتاب الملاحم باب خروج الدجال دحديث نمبر ۴۳۱۲ ص۲۲۳ الجزء الحادي عشر ۱۱ ټوک مکتبه قديمي کتب خانه

[2] الترغيب والترهيب کتاب القراة القران دحديث نمبر ۳ ص۲۴۵ دوهم ټوک مکتبه محموديه ـ کنزالعمال کتاب الاذکار دحديث نمبر(۲۵۹۸)، ص۲۸۷ لومړی ټوک مکتبه رحمانيه

الله ﷺ په دريو وختونو کي دلمانځه څخه منع کړې ده چي يوېي دسهار دلمانځه په وخت کي دلمر راختل دي.[1]

## د سجدې سورت فضيلت

**۳۲۱ ـ مسئله**: په حديث شريف کي راغلي دي چي: د سجدې سورة به دقيامت په ورځ داسي راسي لکه دوه وزرونه چي لري او په خپلو تلاوت کوونکو پرده کوي او فرشتو ته به ووايي: په دې کي هيڅ يوه لاره نسته، يعني دی مه نيسه، پرې يې ږده، سورة سجده او سورة الملک پر نورو سورتونو باندي (۲۰) نېکۍ ډيري لري.[2]

له حضرت ابن عمر ﷺ څخه روايت دی چي: څوک چي دسجدې او ملک سورت دمابنام او ماخستن ترمنځ تلاوت کړي نو ګواکي په ليلة القدر يې قيام وکړ.[3]

[1] التجريد کتاب الصلاة د مسئلي نمبر(۹۹) صـ ۴۵۱ لومړی ټوک مکتبه محمديه ـ ـ مبسوط للسرخسي باب موافت الصلوة صـ۳۰۴ لومړي ټوک مکتبه غفاريه - بدائع والصنائع کتاب الصلوة بيان الوقت المکروه صـ ۳۲۹ لومړي ټوک مکتبه رشيديه ـ عالمګيري کتاب الصلوة الصل الثالث صـ۵۲ لومړی ټوک مکتبه رشيديه

[2] تفسير روح المعاني سورة السجده صـ ۱۵۲ ـ ۲۱ ټوک مکتبه رشيديه.

[3] تفسيرروح المعاني سورة السجد صـ۱۵۲ ـ ۲۱ ټوک مکتبه رشيديه.

حضرت رسول اکرمﷺ به دجمعې په ورځ دسهار په لمانځه کې دسجدې سورت تلاوت کاوه .[1]

## نفلي لمونځ په جماعت ادا کول

۳۲۲ ـ **مسئله**: په داسي وخت کي نفل په جماعت اداکول نه دي روا چي يو څوک دجماعت لپاره راوبلل سي لکه چيري يو نفر په يوه نفر پسي اقتداء وکړي نو داجماعت نه دی مکروه ، همدارنگه که دوه نفره په يوه نفر پسي اقتداء وکړي هم پروا نه لري او داچي بيا دري نفره په يوه نفر پسي اقتداء وکړي په دې کي اختلاف دی څيني وايي مکروه دی او څيني بيا وايي چي نه دی مکروه ليکن که څلورو نفرو په يوه نفر پسي اقتداء وکړل دانو دټولو په اتفاق سره مکروه دی، نو اوس داثابته سوه چي دصلوة تسبيح لمونځ په جماعت سره نه دی روا څکه چي دصلاة تسبيح په لمانځه کي تر دوه

[1] جامع الترمذي كتاب الجمعة باب في ما الفراء د حديث شريف نمبر (۵۲۰)، صـ۱۳۷ مكتبه دارالسلام للنشر والتوزيع الرياض .

او درې نفره زيات وي، سره ددې چي دا لمونځ مکروه دی او دی بيا ثواب هم وربانديي غواړي.[1]

## امام ابو حنيفه (رحمه الله) تابعي ؤ.

۳۲۳ ـ **مسئله**: د سيرت او تاريخ په کتابونو کي داخبره په واضحو او ښکاره الفاظو سره راغلې ده چي امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله، حضرت انس بن مالک رضي الله عنه ځو واره ليدلی دی، داهغه وخت دی چي حضرت انس رضي الله عنه کوفې نومي ځای ته راغلی ؤ او له ځو نورو صحابه کرامو رضي الله عنهم څخه يې هم روايت کړی دی، نومعلومه سوه چي امام ابوحنيفه رحمه الله تابعي دی، ځکه چي صحابي يې ليدلی دی او دتابعي شرط همدغه دی چي صحابي يې ليدلی وي.[2]

## د ښځو عکسونه اخيستل

۳۲۴ ـ **مسئله**: دا چي نن سبا په بازارونو، دوکانونو او خونوکي دښځو عکسونه راځړيږي نو دغه عکسونو ته کتل او له هغو څخه

[1] محيط البرهان کتاب الصلاة الفصل الثالث عشر، التراويح والوتر دمسئلي نمبر (۱۷۲۴)، صـ۲۲۴ دوهم ټوک مکتبه المجلس العلمي بيروت لبنان.

[2] سيراعلام النبلاء للامام الذهبي في بيان ابوحنيفه رحمه الله صـ۴۵۲ شپږم ټوک مکتبه دارالحديث قاهره دمشق.

خوند اخيستل حرام دي داپه دې خاطر چې دمطلق روح لرونکي شي عکس اخيستل حرام دی نو بيا د پرديو عکسونو ته کتل لکه خاص ښځو ته چې څوک ګوري داسي مثال لري .[1]

**حضرت ابوهريره (ﷺ)**

**۳۲۵ ـ مسئله** :درسول الله ﷺ په خوږوملګروکي يوداسي شخصيت ؤ چې ډېرښه ذکاوت، قوي حافظې اولوړې علمي پانګې خاوند ؤ ، صرف څلورکاله يې ددواړوجهانونودسردار ﷺ ملګرتيا په برخه سوي وه خودنبوي حديثونو په باب به حتی هغو کسانو ورڅخه پوښتنې کولې چې دشلو کلونو څخه زيات وخت دصحابيت په مقام کي ورباندې تيرسوی وو ، داجليل القدرصحابي حضرت ابوهريره (ﷺ) ؤ حضرت ابوهريره (ﷺ) ديمن د دؤس قبيلې دعبدشمس له کورنۍ څخه ؤ .[2]

رسول اکرم(ﷺ) دهغه دغه نوم په عبدالرحمن بدل کړ او په ابو هريره (ﷺ) سره يې ځکه شهرت درلود چې هغه پسونه پيول (څرول) نو

[1] بخاري باب لاتباشر المراة ـ سنن ابي داود باب مايومر به من غض البصر ـ مشکواة کتاب النکاح الصل الاول.

[2] الاَصابة في في تميز صحابه حرف الهاء دحديث نمبر(۱۰۲۸۰) صـ ۳۷۸اووم ټوک مکتبه توفيقيه قاهره مصر .

دده سره يو پيشو اوسيدل چي هغـه بـه يې دشپې پـه يـو درختـه کـې اينـودل او سهار بـه بيـا دده سره يو ځـای تلل او دهغـې سره بـه يـې ساعت تيرى کاوه نو په دې خاطر دی په ابوهريره (ﷺ) سره مشـهور سو.[1]

حضرت زيد بن ثابت (ﷺ) وايي يوه ورخ موږ درې تنه چې يو ديمـن دؤس قبيلـې تـه منسوب ؤ ، پـه نبوي مسجد کـې ناست ؤ دخدای (ﷻ) په يادونه او دعـا کـې بوخت وو ، پـه دې ترڅ کـې دالله (ﷻ) رسـول الله (ﷺ) تـشريف راوړی مـوږ چـپ سـوو ، رسـول اکـرم (ﷺ) وفرمايل خپلـو کـارو تـه ادامـه ورکـړی موږ پـه لوړ اواز دعـا کـول او پيغمبر (ﷺ) به امين ويل ، په پای کې زموږ لـه دعـا وروستـه دؤسـي زلمي په دعـا کې وويل :الهي ! زما ملګرو چي څه در څخه وغوښـتل ماته هم هغـه راکړه چې هيڅکله مي هير نـه سي ، رسول الله (ﷺ) امين وويل ، ددې دعا په اوريدولو سره مـا او زمـا هغـه بل ملګري عرض وکړ :يا رسول الله (ﷺ) موږ تـه دي هـم داسي علم راکړل سي

[1] الاصابة في تميز صحابه صـ ۳۷۸ اروم توک مکتبه توفيقيه قاهره مصر.

چي هيڅکله مو هير نه سي ، رسول الله (ﷺ) وفرمايل : دا برخه دؤس زلمي ته ورسيدل .[1]

حضرت ابو هريره (رضي الله عنه) په ماشومتوب کي دخپل پلار له سيوري څخه محروم سوی ؤ ، په ډير فقر او بيوزلۍ کي رالوی سو ، هره ورځ به يې پسونه پېولو ته بيول او ماښام به کورته راستنېده داسلام بلنه ورته د دؤس قبيلي درئيس طُفيل بن عمرو (رضي الله عنه) له خوا وراندي سوه هغه چي دمخه مکي مکرمې ته تللی او په اسلام مشرف سوی ؤ ، کله چي په اووم هجري کال دخيبر دغزا په دوران کي حضرت طُفيل بن عمرو (رضي الله عنه) دخپل قوم له اتياؤ کورنيو سره مديني منورې ته ولاړ ، په همدې کاروان کي حضرت ابوهريره (رضي الله عنه) او دهغه مور اميمه (رضي الله عنها) هم شامله وه ، له رسول الله (ﷺ) له همدې لومړنۍ کتني سره وروسته چي په خيبر کي وسوه بيا تر رحلت پوري حضرت ابوهريره (رضي الله عنه) له نبوي صحبت څخه ګوښه نه سو ، نه په سفر کي نه په شپه کي نه په ورځ کي ، يوازې دخوب په وخت کي به ورڅخه جلاؤ ، خو نور ټول وختونه به يې له نبوي ارشاداتو څخه استفاده کوله او ټول نبوي احاديث به يې په خپل ذهن کي ذخيره کول ،څکه چي

[1] الاصابة في في تميز صحابه حرف الهاء دصحابي نمبر (١٠٢٨٠) صـ ٣٧٨ اووم ټوک مکتبه توفيقيه قاهره مصر .

حضرت ابوهريره رضي الله عنه دحديثونو په راجمع کولو کي تر ټولو وړاندي دی،د ده مبارک روايت سوي حديثونه تقريباً ۵۳۰۰ ته رسيږي.[۱]

ددې دليل داؤ چي ده ته له يوې خوا رسول الله ﷺ دعا کړې وه او له بله پلوه ټولو صحابه ؤ رضي الله عنهم يو څه کار وبار درلود ، مهاجرين په تجارت او انصار په باغداری او بزګری بوخت وو مګر يوازي حضرت ابوهريره رضي الله عنه داسي څوک ؤ چي ددنيا له چارو څخه وزګار او خپل ژوند يې نبوي صحبت او دعلم زده کړي ته وقف کړی ؤ ، يو وخت څينو کسان ابو هريره رضي الله عنه ته وويل : ته د ډېرو زياتو حديثونو روايت کوې په داسي حال کي چي مهاجرين او انصار دزياتو حديثونو روايت نه کوي؟ په ځواب کي يې ورته وويل : زما مهاجرين ورونه به په تجارتي چارو کي او زما انصار ورونه به دکرکيلي او باغداری په چارو کي مصروفېدل خو زه به هر وخت درسول الله ﷺ په خدمت کي وم ، کله به چي نور خلک غائبېدل زه به دپيغمبر ﷺ په صحبت کي موجود وم.[۲]

---

[۱] الاصابة في في تميز صحابه حرف الهاء،(۳۸۲)، اووم ټوک مکتبه توفيقيه قاهره مصر .

[۲] الاصابة في في تميز صحابه حرف الهاء،(۳۸۴)، اووم ټوک مکتبه توفيقيه قاهره مصر .

په لومړي وختونو کي دابوهريره ﷺ له ذهن څخه څيني حديثونه هېريدل ، په دي کار سره هغه روحاً خوريده ، يوه ورځ يې عرض وکړ يا رسول الله ﷺ زما څخه ستا څيني ويناوي هېرېږي؟ رسول اکرم ﷺ وفرمايل : څادر وغوړوه . نو کله چي ابوهريره ﷺ خپل څادر وغوړاوه پيغمبر ﷺ پکښي خپل لاس کښيښود بيا يې وفرمايل : دا په سينې پوري ومښه ، ابوهريره ﷺ هم داسي وکړه دصحيح بخاري په کتاب العلم کي دهغه خپله وينا ده چي له هغه وروسته مي بيا هيڅ شی نه هېريدل.[1]

دحضرت ابوهريرة ﷺ په حافظه کي دومره احاديث ذخيره سوي وو چي پيغمبر ﷺ به ويل ابوهريره ﷺ دعلم ظرف (لوښی) دی .

حافظ ذهبي رحمه الله يوه واقعه رانقل کړې ده چي يو وخت تر څو ورځو پوري حضرت ابوهريرة ﷺ دخوراک لپاره څه ونه موندل د لوږي څخه بيتابه سو دباندي ووت په لويه لاره کي وغځېده ، په دې ترڅ کي حضرت ابوبکرصديق ﷺ په لاره تيريده ، زړه يې وغوښتل چي څه خواړه ورڅخه وغواړي او خپل حال ورته بيان کړي مگر جرئت يې ونه کړای سو ، دکنايې په ډول يې دقرآن کريم دهغه

[1] الاصابة في في تميز صحابه حرف الها، (۳۸۵) اوومټوک مکتبه ترفيقيه قاهره مصر .

آيت دتفسير پوښتنه ورڅخه وکړه چي په هغه کي توصيه سويده چي دفقيرانو او مسکينانو لاس نيوی وسي، هغه ﷺ دآيت مفهوم ورته بيان کړ او ورڅخه روان سو ورروسته حضرت عمرفاروق ﷺ راغی هغه همداسي وکړل ، په پای کي رسول الله ﷺ راغی ، دابوهريرة ﷺ دخيري په ليدو دهغه په لوږه وپوهېدی له خانه سره يې کورته بوت هلته يې له شيدوڅخه ډکه يوه کاسه ايښې وه چي دهديې په ډول ورليږل سوې وه ، پېغمبر ﷺ حضرت ابوهريرة ﷺ ته يې وفرمايل چي داپه خپله وڅښه ، هغه ﷺ وڅښلې بيا يې وفرمايل : وڅښه، بيا يې وفرمايل داوڅښه بيا يې وڅښلې تر دې پوري چي په پای کي يې عرض وکړ : په هغه ذات قسم چي ته يې بر حق پېغمبر رالېږلی يې نور زما په خېټه کي ځای نسته ، له هغه ورروسته پاته شيدې رسول الله ﷺ په خپله وڅښلې.[1]

## د مري پر تندي باندي ليکل

۳۲۲ _ **مسئله** : د مسلمان مؤمن مړي پر تندي باندي دبسم الله الرحمن الرحيم او همدارنګه يې پرسينه باندي دلااله الاالله محمدرسول الله ليکل پروا نه لري بلکي ښه او مستحب کار دی،

[1] الاصابة في في تميز الصحابه (۳۸۴)۱ دوم ټوک مکتبه توفيقيه قاهره مصر.

څکه پخواني علماء کرامو رحمهم الله کي يو چا وخپل زوی ته داسي وصيت وکړ کله چي زه مړ سم او ماته غسل راکړي نو زما پر تندي او سينه باندي بسم الله الرحمن الرحيم راوليکه نو کله چي هغه مړ سو همدا ډول کړنه ورسره وسوه .

وروسته يې زوی خوب وينې چي دپلار دحال پوښتنه کوي ، اخير پلار په خواب کي ورته وويل چي : کله چي تاسي زه په قبر کي کښيښودلم نو دعذاب ملائکه عليهم السلام راته راغله خو چي زما پر تندي نويشته يې وليده نو يې راته وويل : چي دعذاب څخه په امن يې . [1]

**له نږدېکت د مخه دخاوند يا ښځي مرګ**

۳۲۷ _ **مسئله** : که يو چا ديوې ښځي سره نکاح وکړه خو مخکي تردې چي نږديکت يا دخول سره وکړي نو يو په دوی کي مړ سو ، نو هغه مهرچي پخوايې سره تاکلی ؤ هغه پر خاوند باندي لازم وګرځيدی ، که يې اداء کړی ؤ ښه خبره ده او که اداء کړی يې نه ؤ نو لازمه ده چي اداء يې کړي څکه مرګ منزله (طريقه) ددخول دی .

[1] (الفتاوای التار تار خانيه کتاب الصلاة دمسئلې نمبر(۳۷۳۲) صـ ۷۱ دریم ټوک مکتبه حنيفه _ ردالمختار کتاب الصلوة الجنائز مطلب فيما يکتب صـ۲۲۹ لومړي ټوک مکتبه رشيديه

يادونه: دخول دې ته وايي چې يوه ښځه او سړی دنکاح څخه وروسته په يوه داسې خونه کې چې هلته بل څوک نه وي سره يو ځای سي او په دې وخت کې ښځه هيڅ شرعي عذر (حيض يا بله مريضي) ونه لري، خو ضرور نه ده چې خامخا دې نږدېکت سره وکړي.[1]

## د پا تا دخلکو استقبال

۳۲۸ ـ **مسئله**: په ځينو ځايونوکي د مړي دپاتا دمراسمو دپرځاي کولولپاره (مسجد يا بل ځای چې هلته پاتا اخلي) مخ ته پر څوکيو باندي يوه ډله خلک چې دهمدغه کار لپاره گومارل سوي وي ناست وي چې هر څوک راځي نو دوی دښه راغلاست په خاطر ورته ولاړېږي او لاسونه پر سينه ورته ږدي او کله چې څوک له پاتا څخه راوزي نو بيا هم دغه ډله خلک ورته ولاړېږي او مخه ښه ورته وايي، دا کار دجاهليت دزماني دخلکو عادت ؤ، شريعت دې کار ته مکروه ويلي دي دځينو خلکو دپاتا ؤ په مراسمو کي يوه ډله خلک بيا پر عامه لاره باندي پر څوکيو باندي ناست وي چې هغوی هم

[1] فتاوای السراجيه کتاب النکاح باب المهر ص۲۰۲ مکتبه زمزم للطباعة والنشر والتوزيع ـ التنقنفبالفتاوای کتاب النکاح حد الدخول وحکم الدخول ص ۱۹۲ مکتبه يوسفيه.

ورته کار کوي ، دشریعت له مخي دا کار تر هغه ډیر بد دی . هیله ده چي مسلمانان دغه ټکي ته ډیره پاملرنه وکړي او دجاهلیت دزماني دودونه را ژوندي نه کړي . [1]

## تراندازې زیات خوراک

۳۲۹ _ **مسئله** : که څوک دومره خوراک وکړي چي موړ سي خوبیا هم ددې په خاطر نور خوراک کوي شهوت مي زیات سي نو بیا دغه خوراک دده لپاره حرام دی ، او که چیري یې په سبا ورځ روژه نیول او ډیر خوراک یې وکړ یا یې کورته میلمه راغلی ؤ دهغه په خاطر یې ډیر خوراک وکړ نو بیا دا خوراک پروا نه کوي بلکي مستحب کار دی . [2]

[1] ردالمحتار کتاب الصلوة باب الجنائز صـ۲۲۵ لومړي ټوک مکتبه رشیدیه ـ فقه الحنفي فی ثوبه الجدید کتاب الصلوة باب الجنائز صـ۳۴۲ لومړی ټوک مکتبه حقانیه ـ

[2] ال کل فوق الشبع حرام ....... وان قصد به التقوي علی الصوم اومواکله الضیف فمستحب ـبه حوال دالاشباه والنظائر صـ۱۰ فتاواي هادیه دوهم ټوک مکتبه حقانیه ـ مجمع الانهر کتاب الکراهیة صـ۱۷۹ څلورم ټوک مکتبه الحرمین الشرفین .

## دخينو خوبونو تعبيرونه

**۳۳۰ ـ مسئله : په خوب کي طواف کول** : که چا په خوب کي وليدل چي پر بيتُ الله شريفي باندي طواف کوي نو الله(ﷻ) به په دين کي دده اصلاح وکړي.[۱]

**په خوب کي اسمان ليدل** : که چا په خوب کي وليدل چي دی په آسمان کي دی او دانه ورته معلوميږي چي چيري پورته کيږي ، نو انشاءالله چي کله دی مړ سي وجنت ته به داخل سي.[۲]

**په خوب کي دزنا ځای ليدل** : که چا په خوب کي وليدل چي : دی داسي ځای تللی دی چي هلته زنا کيږي اودی له هغه ځايه څخه دوتلو قدرت هم نه لري نو انشاءالله دی به ژر تر ژره مړ سي، دداسي خوب ليدونکي لپاره په کار ده چي داخرت لپاره تياری ونيسي چي په اخرت کي دخدای (ﷻ) دعذاب څخه خلاص سي.[۳]

---

[۱] تعطيرالانام في تعبير الحلام باب الكاف صـ ۸۱۰ ليکه (۸) دوهم توک مکتبه للسيد محمد سعيد العماد والسيد عدنان العماد دمشق سوريه

[۲] تعطيرالانام في تعبير الحلام باب السين صـ ۴۲۴ لومړي توک مکتبه دمشق سوريه.

[۳] تعطيرالانام في تعبير الحلام باب الزای صـ ۴۰۵ لومړي توک مکتبه دمشق سوريه.

**په خوب کي کښتۍ ليدل** : که چا په خوب کي وليدل چي : کښتۍ پر وينو باندي روانه ده نو دا پر زنا باندي دلالت کوي نودی بايد خان اصلاح کړي ، اوکه چيري بيا کښتۍ په داسي حال کي ووَيني چي کښتۍ ماته ده اوتختې يې جلا جلا سره غورځيدلي دي نو دا بيا دې ته اشاره ده چي دخوب ليدونکي مور به مړه سي ځکه مورد کښتۍ حيثيت لري .[1]

**په خوب کي کتاب ليدل** : که چا په خوب کي وليدل چي : دده په لاس کي کتاب دی خو پېچل سوی وي ، نو ددې څخه دا معلوميږي چي دی به په نږدې وختونو کي مړ سي نو دده لپاره په کار ده چي ځان اصلاح کړي او داخرت لپاره تياری ونيسي .[2]

**په خوب کي دځواني ښځي سره زنا کول** : که چا په خوب کي وليدل چي : دی دداسي ښځي سره زنا کوي چي هغه هم ښايسته او هم ځوانه وي ، نودی به خپل مال په داسي ځای کښيږدي چي هغه ځای به محفوظ (ساتل سوی) وي .[3]

[1] تعطيرالانام في تعبير الحلام باب السين صـ۴۷۲ لومړي توک مکتبه دمشق سوريه .

[2] تعطيرالانام في تعبير الحلام باب السين صـ۴۷۲ لومړي توک مکتبه دمشق سوريه .

[3] تعطيرالانام في تعبير الحلام باب الزاي صـ۴۰۵ لومړي توک مکتبه دمشق سوريه .

**په خوب کې زنا کول** : که چا په خوب کې وليدل چې : دی دداسې ښځې سره زنا کوي چې هغه زنا کاره وي ، نو ده ته به په راتلونکې کې شر او فتنه (فساد) ورسيږي نوده ته په کار دي چې الله (ﷻ) ته زاری وکړي او خپل ځان ورته تسليم کړي چې الله (ﷻ) يې له فتنې څخه خلاص کړي .

## دجنازې د لمانځه ثواب

**۳۳۱ ـ مسئله** :دحضرت ثوبان (رضي الله عنه) څخه روايت دی ، په تحقيق سره رسول الله (ﷺ) وفرمايل : که چا په جنازې پسې لمونځ وکړی نو په تحقيق سره دده لپاره دقيراط په اندازه ثواب دی ، دقيراط اندازه په اړه يو چا درسول الله (ﷺ) څخه پوښتنه وکړه هغه مبارک وفرمايل چې : دأُحُد دغره په اندازه سره دی .[1]

[1] الترغيب والترهيب كتاب الجنائز دحديث نمبر: ۱۰ ج ۱ ص ۱۷۷ څلورم توک مكتبه محموديه ـ تبيين الحقائق كتاب الصلوة باب الجنائز ص ۵۸۴ لومړي توک مكتبه اشرفيه .

## نابلده ښځې ته کتل

۳۳۲ ـ **مسئله**: رسول الله (ﷺ) وفرمايل: که چا د پردۍ ښځې د ښايست وخواى ته په شهوت سره وکتل (نو) د قيامت په ورځ به په ستر ګه کې ويلې سوى (سرب) ورتوى سي.[۱]

## د ښځو لپاره دخولې او باړخو مچول

۳۳۳ ـ **مسئله**: په اوس زمانه کې په خانګړي ډول په پښتني سيمه کې په ښځمنو طبقه کې داسي رواج دى کله چې ښځې يوه له بلې سره مخامخ سي نو د روغبړ ډول يې داسي دى چې يوه او بله پر مخ (باړخو) سره مچوي په همدې ترتيب کله چې يوه له بلې څخه رخصت اخلي نو هم دغسي عمل کوي، په دغه کار کې سپين سري ښځې (زړې ښځې) ډيره دلچسپي لري څکه چې ځواني ښځې داسي پر دا مخ مخ مچوي لکه چې يوه ډيره ليرې واده سوې پرد پسه لور چي يې له کلونو راهيسي نه وي ليدلې او اوس ورسره مخامخ

[۱] تبيين الحقائق كتاب الكرهيه صـ٣٩ اووم توک مکتبه اشرفيه په حواله دزيلعي في نصب الراية – هدايه كتاب الكراهيه صـ١٩٧ اووم توک مکتبه البشراى – مجمع الانهر كتاب الكراهية صـ٢٠٢ څلورم تک مکتبه الحرمين الشرفين – بحرالرائق كتاب الكراهية صـ ٣٥٢ اتم توک مکتبه رشيديه.

سوي ده حال داچي دوی به په يوه اوني کي دننه څوځله يوه له بلي سره ويني او په هر وار ليدلو سره دغسي عمل سرته رسوي .

دغه کار کول (ښځي يو له بل سره پر مخ او بارخو مچول) په شريعت کي مکروه کار دی چي ښځي بايد له دغه عمل څخه ډډه وکړي .[1]

## د ښځي لاس مسحه کول

۳۳۴ ـ **مسئله** :رسول اللهﷺ وفرمايل : کـه چا ديوداسـي ښـځي ورغوی ورمسحه کړ چي د دوی په خپل منځ کي نکاح روا وي نو داخرت پـه ورځ بـه دده پـه ورغـوي کي دجهنم سکروټه ورکښېښول سي .[2]

## د کوچني په غوږ کي دښځي اذان کول

۳۳۵ ـ **مسئله** :ښځه دنوي زېږېدلي کوچني په غوږ کي اذان نه سي کولای ځکه چي دښـځي اذان کـول مکروه دی داپـه دې خـاطر چي دښځي اواز مکروه دی .

---

[1] عالمگيري الباب الثامن والعشرون فی ملاقات الملوک صـ ۳۲۹ پنځم ټوک مکتبه رشديه .

[2] تبيين الحقائق کتاب الکرهيه صـ ۴۰ اووم مکتبه اشرفيه په حواله د زيلعي فی نصب الراية – هدايه کتاب الکراهية صـ ۱۹۷ اووم ټوک مکتبه البشرای.

کله چي په کور کي دننه دښځي لپاره اذان کول مکروه وي نو چيري چي يوه ښځه په تلويزيون کي غزل وايي او يا هم راډيو ته زنګ وهي او دراډيو دچلوونکي په فرمايش په خپل اواز کي غزل ورته زمزمه کوي څه حکم به ولري؟

دغه کار نه يواځي داسلام له نظره بلکي دافغاني او پښتني کلتور له نظره هم دزغم او حوصلي وړنه دی، هيله ده مسلمانان دغه ټکي ته دزړه له کومي پاملرنه وکړي.[1]

## د حيض غته موده

۳۳۲ _ **مسئله**: کله چي دحيض غته مده پوره سي نو بيا خاوند ته روا دي چي دخپلي ښځي سره جماع (نږديکت) وکړي که څه هم ښځي ددغه حيض څخه غسل نه وي کړی ځکه چي دحيض غته مده پوره سوې ده.[2]

---

[1] وكرهها اى الاذان والاقامة للنساء .... په حواله دطحطاوي ص۲۹۷ فتاوای هاديه كتاب الطهارة ص۱۷ لومړي ټوک مکتبه حقانيه ـ محيط البرهان كتاب الصلاة دمسئلي نمبر (۱۳۰۲) ص۹۵ دوهم ټوک مکتبه دارا القرآن والعلوم اسلاميه ـ فتاوای التاتار خانيه كتاب الصلاة دمسئلي نمبر(۱۹۸۲) ص۱۴۴ دوهم ټوک مکتبه حنفيه ـ عالمګيري كتاب الصلوة الفصل الاول فی صفه احوال ص۴۵ لومړی ټوک مکتبه رشيديه – فقه الخنفي فی ثوبه الجديد الصلاة ص۱۹۳ لومړی ټوک مکتبه حقانيه

[2] التجريد كتاب الطهارة دمسئلي نمبر ۷۱ ص۳۴۲ لومړي ټوک مکتبه محموديه ـ ـ عالمګيري كتاب الصلوة الفصل الرابع فی احكام الحيض ص۳۹ لومړی ټوک مکتبه رشيديه – ردالمختار كتاب الطهارة باب الحيض

## د قصدي قتل دقاتل سړي توبه

۳۳۷ ـ **مسئله**: که چیري یو قاتل (وژونکی) له قتل عمد (قصدي قتل) څخه توبه ایستل غواړي نو باید چي توبه دزړه په اخلاص سره وي څکه که توبه دزړه داخلاصه څخه وي نو الله ﷻ ته اُمید سته چي دده توبه ورڅخه قبوله کړي څکه دقرآن کریم او سنتو په رڼا کي اهل سنت والجماعت همدا عقیده ده چي دکبیرې (غټي) ګناه څخه په رښتیني زړه سره توبه وایستل سي نو الله ﷻ یې معافوي لیکن دمړي دوارثانو څخه به دویني معافول یا هغو ته به دقصاص ورکول وي.[1]

صـ۲۱۲ لومړي ټوک مکتبه رشیدیه ـ فقه الاسلامي وادلته الباب الاول الطهارة المبحث الثالث احکام الحیض صـ۲۲۹ دوهم ټوک مکتبه فریدیه ـ مجمع الانهر کتاب الطهارة صـ۷۸ لومړي ټوک مکتبه الحرمین الشرفین ـ بنایه شرح الهدایه کتاب الطهارة باب الحیض صـ۲۵۵ دوهم ټوک مکتبه حبیبیه ـ فتح القدیر کتاب اطهارة باب الحیض صـ۱۷۴ لومړي ټوک مکتبه رشیدیه ـ فقه الحنفي في ثوبه الجدید احکام الحیض صـ۱۳۵ لومړي ټوک مکتبه حقانیة

[1] قال العلامه ملا علي قاري ... من تاب عن کبیرة ..... بها علی الکبیرة التي تاب . ـ شرح الفقه الاکبر صـ ۱۵۲ مطلب یجب معرفة المکفرات :ـتفسیر الکبیر للفخرالدین الرازي سورة النساء ایت ۴۸ مسئله الثانیة هذه الایه من قوای الدلائل لنا علی العفو عن اصحاب الکبائر صـ۹۸ الجزء العاشر څلورم ټوک مکتبه قاسمي :ـقال علامة التفتازاني رحمه الله فی المبحث الثاني عشر اتفقت الامه ونطق الکتاب والسنة بان الله تعالی عفو غفور .... بفقد التوبة ـ شرح المقاصد صـ۲۳۵ دوهم ټوک :ـاعلاءالسنن وجوب القصاص فی العمد وجواز العفو عنه قال العبد الضعیف اتفق الایمة الاربعة کما فی رحمة الامة صـ۸۳۵۷ ـ ۱۷ ت.ک مکتبه امدادیه مرقاة المفاتیح کتاب القصاص الفصل الثاني دحدیث نمبر صـ۳۴۲۸ صـ۲۸ اووم ټوک مکتبه رشیدیه .

## دبیعې دېرته ماتولو په وخت کې

۳۳۸ _ **مسئله**: که چیرې یو چا پر بل چا باندې یو شی خرڅ کړی او یو څه پیسې یې دبیانې (مخکینۍ تادیه) په ډول ورسره ورکړې یعني ټوله پیسې یې نه وې ورکړې لیکن اوس مشتري دبائع سره داقالې نیت لري چې بیع بیرته ماته کړي خو بیا یې ورته وویل چې یا به دغه شی قبلوې که نه وې نو ستا هغه پیسې چې دبیانې په توګه دې راکړې وې هغه دجرمانې یا پښېمانۍ په توګه درڅخه راګرځوم.

په دې هکله شریعت داسې لارښونه کوي چې: یا به اقاله نه ورسره کوې او یا به دپښېمانۍ په توګه پیسې نه ورڅخه راګرځوې څکه چې داکار په شریعت کې حرام دی داپه دې خاطر چې پیربدونکې ته بلا عوضه دبل پیسې په لاس ورځي.

**یادونه**: مسلمان ته نه ښایي چې خپل مسلمان ورور ته تکلیف ورسوي او یا یې مال بلاعوض په لاس راوړي څکه داکار په اسلام کې حرام دی او داقالې په اړه رسول اللهﷺ فرمایلي دي څوک چې له

يو پښېمانه انسان سره اقاله وکړي او بيا له منځه يو سي نو الله ﷻ به يې داخيرت په ورځ ګناهونه له منځه يوسي.[1]

## خرڅ کړل سوی جنس بيرته قبلول

۳۳۹ ـ **مسئله**: که چيري يوسوداګر (دکاندار) پريو رانيونکي باندي يوشی خرڅ کړي، ديو څه وخت په تېرېدو سره که چيري رانيونکی وغواړي چي هغه شی بيرته هغه خرڅوونکي ته ورکړي، په دې وخت کي دخرڅونکي خوښه ده چي په هره بيه يې ورڅخه رانيسي څکه چي مخکينۍ بيه پوره (تمامه) سوې ده، نودا فرق نه کوي چي نوې بيه په هرڅوسره کوي.[2]

[1] مشكوة مصابيح باب الغصب والقارية دحديث شريف نمبر(۲۹۴۲)، صـ۱۳۷ دوهم ټوک مکتبه البشري ـ مرقات المفاتيح كتاب البيوع باب الغصب والعارية الفصل الثاني دحديث شريف نمبر (۲۹۴۲)، صـ۱۴۹ شپږم ټوک مکتبه رشيديه ـ شرح طيبي كتاب البيوع باب الغصب والعارية الفصل الثاني دحديث نمبر ۲۹۴۲ صـ۱۴۱ شپږم ټوک مکتبه داراکتب العلميه بيروت لبنان ـ ردالمختار كتاب البيوع باب الاقاله صـ۱۲۵ څلورم ټوک مکتبه رشيديه ـ بحرالرائق كتاب البيوع باب الاقاله صـ ۱۲۷ شپږم ټوک مکتبه رشيديه ـ سنن ابي داود كتاب البيوع باب فی فضل الاقاله دحديث نمبر ۳۴۲۰ صـ ۷۰۰ مکتبه للنشرو والتوزيع الرياض ـ بذل المجهود فی حل ابي داود الجزء الخامس عشر دحديث نمبر ۳۴۲۰ صـ۵۷ اتم ټوک مکتبه داراکتب العلميه بيروت لبنان ـ عون المبعود كتاب الاجارة باب فی فضل الاقاله الجزء التاسع دحديث نمبر ۳۴۵۷ صـ۱۷۹ نهم ټوک مکتبه قديمي کتب خانه ـ سنن ابن ماجه كتاب التجارات باب الاقاله دحديث نمبر ۲۱۹۹ صـ۳۹۴ مکتبه دارالسلام للنشرو والتوزيع الرياض.

[2] ردالمختارباب البيع الفاسد مطلب فی النداى بلبن البنت (۷۳)، پنځم ټوک ـ خلاصه كتاب البيوع الفصل الرابع فی البيع الفاسد واحكامه (۲۱)، دريم ټوک فتاوای هنديه كتاب البيوع الباب العاشر التي لاتفسد (۱۳۲)، دريم ټوک مکتبه رشيديه

## نفلي حج ښه دی که خيرات؟

۳۴۰ ـ **مسئله**: کـه چيرې يوچاخپـل فرضـي حج کړی وي اوغـواړي چي بل نفلي حج وکړي نوتر نفلي حج کولو دانبه اوغوره ده چي دغـه پيسـې مسـکينانو تـه ورکـړي، خاص او خاص چي بيا داهـل بيت (درسول الله ﷺ) څخه وي.[1]

## د شپې او ورځې دعا

۳۴۱ ـ **مسئله**: رسول الله ﷺ وفرمايل: په شپه کي چي څوک دسورة البقرې دوه اخري اياتونه ووايي نودده لپـاره کفايت کوي. دکفايت لفظ ځيني محدثين په دې معنې اخلي چي په دې شپه کي بـه ده تـه هيڅ مشکل او تاوان نه رسيږي.[2]

## دفلق او ناس سورتونو فضيلت

۳۴۲ ـ **مسئله**: دا دواړه سورتونه دجادو، بدنظرۍ او ټولو جسماني او روحاني آفتونو دليري کولو لپاره ډير اغيزلري، کـه حقيقت تـه

[1] فتاوای التاتار خانيه کتاب الحج دمسئلې نمبر۵۲۵۳م ص۲۸۲ دريم ټوک مکتبه حنفيه ـ ردالمحتار کتاب الحج ص۲۷۵ دوهم ټوک مکتبه رشيديه.

[2] الترغيب والترهيب کتاب فی اذکار باليل والنهار دحديث نمبرص۲۹۲ دوهم ټوک مکتبه محموديه

وګورو نو انسان تر ساه اخيستلو ، خوراک ، څښاک او لباس ددې
ويلو ته زياته اړتيالري، ددې پېښېه په مسند احمد کې داسي راغلي
ده .

۱ ـ په نبي کريم ﷺ يوه يهودي جادو وکړ چي له امله يې دی ﷺ
ناروغه سو، جبرائل امين ﷺ ، ده ﷺ ته راغی او خبر يې ورکړ چي
په تاباندي يوه يهودي جادو کړی دی ، په کوم څه چي يې جادو کړی
دی هغه په فلاني کوهي (څاه) کې دی ، ده ﷺ کسان واستول هغوی
له هغه کوهي څخه شيان راوړل ، هغو ته غوټې غوټې ورواچول سوي
وي ، الله تبارک وتعالی هغه مهال دا ايتونه نازل کړل ، ده ﷺ پر هره
غوټه يو ايتووايه او غوټه به يې خلاصوله، تردې چي ټولي غوټي
خلاصي سوې او دنبي کريم ﷺ څخه يو درووند بوج ليري سو .[1]

۲ ـ حضرت علی ﷺ روايت کړی دی يو خلي نبي ﷺ يوې زهرجنې
حشرې (بنايي لړم) وچيچه، نو نبي ﷺ اوبه او مالګه راوغوښته په

[1] تفسير المنير سورة الفلق صـ۸۷۵ پنځلسم توک مکتبه امير حمزه کتب خانه ـ مسند بن حنبل دحديث نمبر ۱۸۷۸۱ صـ۳۲۷ خلورم توک .

چیچل سوي ځای یې لګوله او قل یاایها الکفرون، قل اعوذ برب الفلق او قل اعوذ برب الناس سورتونه یې تلاوت کول.[1]

۳ـ رسول الله ﷺ وعقبه بن عامر ﷺ ته وفرمایل: تا ته داسې آیاتونه در ونه ښیم چې دشپې (پرما باندې) نازل سو چې ما ددوی په مثل بل سورة نه دی لیدلی.[2]

## په لمانځه کي نیت بدعت نه دی

۳۴۳ ـ **مسئله**: په لمانځه کي په ژبه سره نیت کول بدعت نه دی بلکي مستحب کار دی لیکن په زړه کي دالازمي ده چي باید نیت وکړل سي ځکه دا دامام اعظم ابوحنیفه رحمه الله مذهب دی.[3]

---

[1] المعجم الاوسط للطبراني دحدیث نمبر ۵۸۹۰ صـ۲۵۲ څلورم ټوک.

[2] تفسير المنير سورة الناس فضل المعوذتين صـ۸۷۳ ۱۵ ټوک مکتبه امیر حمزه کتب خانه ـ عزیز التفاسیر سورة الناس صـ۲۸۹ ۱۳ ټوک مکتبه دارالکنون العلمیه ـ کنزالعمال کتاب الاذکار دحدیث نمبر (۲۷۳۹)، صـ۲۹۹ لومړي ټوک

[3] والمعتبر فیها عمل القلب ... والتلفظ به مستحب هو المختار ـ ردالمختار باب شروط الصلاة بحث النیت صـ۳۰۵ - ۳۰۲ لومړي ټوک مکتبه رشیدیه ـ عالمګیري کتاب الصلوة الفصل الرابیع فی النیة صـ۲۵ لومړی ټوک مکتبه رشیدیه - بدائع والصنائع کتاب الصلاة صـ ۳۳۲ لومړي ټوک مکتبه رشیدیه ـ فقه الاسلامي الباب الثاني في الصلاة الفصل الرابیع اداء الفقهاء فی النیة صـ۷۷۴ لومړي ټوک مکتبه فریدیه.

## د خوب ژباړونکي (دخوب معني ورکوونکي)

۳۴۴ ـ **مسئله**: د خوب تعبيروونکي يا ژباړونکي پر (۱۵) طبقې دي او په لاندي ډول دي:

اول: په لومړۍ درجه کي دخوب ژباړونکي انبياء عليهم السلام دي چي له هغې جملې څخه ابراهيم عليه السلام و يعقوب عليه السلام، يوسف عليه السلام، دانيال عليه السلام ذوالقرنين او حضرت محمد ﷺ دي.

دوهم: په دوهمه درجه کي دخوب ژباړونکي صحابه کرام رضي الله عنهم دي چي له هغه جملې څخه ابوبکرصديق رضي الله عنه، عمربن الخطاب رضي الله عنه عثمان بن عفان رضي الله عنه علي بن ابي طالب رضي الله عنه عبدالله ابن عباس رضي الله عنه عبدالله ابن عمربن عاص رضي الله عنه عبدالله ابن عمر رضي الله عنه عبدالله بن سلام رضي الله عنه ابوذرالغفاري رضي الله عنه انس ابن مالک رضي الله عنه سلمان الفارسي رضي الله عنه حذيفه بن اليمان رضي الله عنه عايشة رضي الله عنها چي دټولو مؤمنانو مور ده او هم ددې خوراسماء رضي الله عنها ده.

دريم: په دريمه درجه کي دخوب ژباړونکي تابعين دي لکه سعيد بن المسيب رحمه الله، حسن البصري رحمه الله، عطاء بن ابي رباح رحمه الله شعبي رحمه الله زهري رحمه الله ابراهيم النخعي رحمه الله عمربن

عبدالعزیز رحمه الله قتادة رحمه الله مجاهد رحمه الله سعید بن جبیر رحمه الله طاوس رحمه الله ثابت البناني رحمه الله دي .

څلورم : په څلورمه درجه کې دخوب ژباړونکي فقهاؤ رحمه الله دي دهغې جملې څخه : ابو ثور رحمه الله اوزاعي رحمه الله سفیان الثوري رحمه الله امام شافعي رحمه الله قاضي ابویوسف رحمه الله ابن ابي لیلی رحمه الله احمد بن حنبل رحمه الله اسحاق بن راهویه رحمه الله والبویطي رحمه الله منصوربن المعتمر رحمه الله عبدالله بن مبارک رحمه الله دي.

پنځم : په پنځمه درجه کې دخوب ژباړونکي زهاد (پرهېزګاران) دي چې دهغې جملې څخه محمد بن واسع رحمه الله تمیم الداري رحمه الله شقیق البخي رحمه الله مالک بن دینار رحمه الله سلیمان التیمي رحمه الله منصوربن عمار رحمه الله محمدبن سماک رحمه الله یحیی بن معاذ رحمه الله احمد بن حرب رحمه الله دي .

شپږم : په شپږمه درجه کې دخوب ژباړونکي دخوب دژباړلو مصنفین دي چې له هغه جملې څخه محمد بن سیرین رحمه الله ابراهیم بن عبدالله لکرماني رحمه الله عبدالله بن مسلم القیتبي رحمه الله ابواحکد

خلف بن احمد رضي الله عنه محمد بن حماد الرازي الخباز رحمه الله حسن بن حسن الخلال رحمه الله وارطاميد ورس اليوناني رحمه الله دي.

اووم : په اوومه درجه کي دخوب ژباړونکي په يهودو کي حيي بن اخطب، کعب بن الاشرف، موسي بن يعقوب دي.

لسم : په لسمه درجه کي دخوب ژباړونکي په نصاراؤ کي حنين بن اسحاق الترجم، ابو مخلد ، زيد الطبري دي.

يووولسم : په يوولسمه درجه کي دخوب ژباړونکي مجوسيان (اور پرستان) دي چي هغه جملې څخه هرمزين ازدشير، بزرجمهر بن بختکـان، نوشيروان الملک العادل ، کشمور جاماسب دي.

دوولسم : په دوولسمه درجه کي دخوب ژباړونکي دعربو مشرکان وه چي دهغې جملې څخه ابو جهل بن هاشم ، عبدالله بن ابي ، نوفل بن عبدالله، عمروبن عبدود ، ابن زبعري (ويل کيږي چي ابن زبعري دمکې تر فتحي وروسته اسلام راوړی دی او صحابي جوړ سو) ، ابو طالب او ابو العاصي وه .

دیارلسم: په دیارلسمه درجه کي دخوب ژباړونکي کهنه دي چي دهغې جملي څخه سطيح، شق، خزدجي، عوسجه، قطامي او ابوزراده دي.

څوارلسم: په څوارلسمه درجه کي دخوب ژباړونکي ساحران (جادوګران) دي چي دهغې جملي څخه عبدالله بن هلال فرطبين زيد الابلي او عباب بن شمر الرازي دي.

پنځلسم: په پنځلسمه درجه کي دخوب ژباړونکي اصحاب الفراست دي چي دهغې جملي څخه سعيد بن سنان، اياس بن معاويه، جندل بن المحكم، معاويه بن كلثوم دي.[1]

## په فاتحو (پاتاخانو) کي عکسونه اخيستل

۳۴۵ _ **مسئله**: په اوس وخت کي رواجونه دومره پر مخ تللي دي او دخلګو سترګي یې ړندي کړي دي چي ډیر مقدس شرعي شعایر یې تر پښو لاندي کړي دي چي ښه مثال یې دنکاح دمراسمو په وخت کي او یا دفاتحي په مراسمو کي عکسونه او ویډیويي فلمونه

[1] تعطير الانام تعبر الاحلام للعلامه شيخ عبدالغني النبلسي رحمه الله باب اليا. ص۱۰۵۵ _ ۱۰۵۲ _ ۱۰۵۷ دوهم ټوک مكتبه دمشق سوريه.

ثبتول دي چي داکار د شريعت له نظره حرام کار دی، د بلي خوا فاتحه بايد ديو کور په کوټه (مهمان خانه) کي واخيستل سي او نکاح بايد په مسجد کي وتړل سي نو داکار هم سرچپه روان دی ځکه چي نکاح په کوټه کي تړي او فاتحه په مسجد کي اخلي او بيا په مسجد کي عکاسي هم کوي.

ددې عکاسۍ په اړه الله ﷻ او رسول الله ﷺ فرمايي: داخيرت په ورځ به ډېر سخت عذاب مستحق (لايق) هغه څوک وي چي عکسونه اخلي (جوړوي). په بل حديث شريف کي رسول الله ﷺ فرمايي: هغه کسان چي عکسونه جوړوي داخيرت په ورځ به عذاب ورکول کيږي او داسي به ورته وويل سي: هغه چي تا پيدا کړی دی (جوړ کړی دی) هغه ته ژوند ورکړه.

يادونه: الله ﷻ دي موږ ته هدايت وکړي چي د ثواب په کارونو کي هم عذاب راکول کيږي، په دې کار کي دوه نفره ډېر سخت ګنهګار دي، لومړی هغه څوک چي دغه عکاس يې راغوښتی دی او دوهم هغه قاريان، حافظان او ملايان چي دغه ډول فاتحواو نکاح ته ورځي، په داسي حال کي چي تلاوت يا دعا کوي او هغه عکاسي ورځخه کوي او دی هيڅ هم نه وايي او بيا وايي چي زه يې څه کوم

دوی خپله هم په پوهیږي او یا هم وایي چي داغتان خلک دي زموږ خبره نه مني .

نو هیله ده چي دغه ډول فاتحو او دغه ډول نکاح ته دقدر وړعلماء کرام ، قاریان او حافظان بیخي له سره ورنه سي .[1]

## د ځینو خوبو نو تعبیرونه

**۳۴۲ ـ مسئله** :که چا په خوب کي حضرت ابو بکرصدیق ﷛ په داسي حال کي ولیدی چي ژوندی و نو خوب لیدونکی به په ډیر نرمي او شفقت سره دالله ﷻ عبادت کوي .

که چا په خوب کي حضر عمر فاروق ﷛ ولیدی نو لیدونکی به په بنه قوت سره د دین کارونه کوي ، په خبرو کي به عدل کوي او دهغه چا سره به بنه کوي چي دده ترلاس لاندي وي.

---

[1] صحیح البخاري کتاب بدء الخلق باب اذاقال احد کم امین دحدیث شریف نمبر ۳۲۲۲ صـ۵۳۸ مکتبه دارالسلام للنشروالتوزیع الریاض ـ عمدة القاري کتاب بدء الخلق باب اذاقال احد کم امین دحدیث نمبر ۳۲۲۲ صـ۱۹۱ پنځلسم ټوک مکتبه رشیدیه ـ فتح الباري کتاب بدء الخلق باب اذاقال احد کم امین والملائکه دحدیث نمبر ۳۲۲۲ صـ۳۸۳ شپږم ټوک مکتبه رشیدیه ـ سُنن النسائي کتاب الزینة التصاویر دحدیث نمبر ۵۳۵۲ صـ۷۲۵ مکتبه دارالسلام للنشرو والتوزیع الریاض ـ سنن ابن ماجه کتاب اللباس باب الصور فی البیت دحدیث نمبر ۳۲۴۹ صـ۶۲۱ مکتبه دارالسلام للنشرو والتوزیع الریاض ـ جامع الترمذي کتاب الاداب باب ماجاء ان ملائکة لاتدخل بیتا فیه صورة ولاکلب دحدیث نمبر ۲۸۰۵ صـ۶۳۲ مکتبه دارالسلام للنشرو والتوزیع الریاض ـ تحفه الاحوذي کتاب الاداب باب ماجاء ان ملائکة لاتدخل بیتا فیه صورة ولاکلب دحدیث نمبر ۲۸۰۵ صـ۹۴ اتم ټوک مکتبه لدهیې کتب خانه ـ صحیح المسلم کتاب اللباس والزینة باب تحریم تصویر دحدیث نمبر ۵۵۱۷ صـ۹۴۲ مکتبه دارالسلام للنشرو والتوزیع الریاض ـ تکمله فتح الملهم کتاب اللباس باب تحریم تصویر دحدیث نمبر ۵۴۲۸ صـ۹۰ څلورم ټوک مکتبه دارالقلم دمشق بیروت لبنان ـ منهاج کتاب اللباس والزینة باب تحریم تصویر دحدیث نمبر ۵۵۱۷ صـ۹۷ پنځلم ټوک مکتبه دارالفیحاء دمشق ـ سنن ابي داود کتاب اللباس باب فی الصور دحدیث نمبر ۴۱۵۵ صـ۸۲۱ مکتبه دارالسلام للنشرو والتوزیع الریاض ـ بذل المجهود کتاب اللباس والزینة باب تحریم تصویر دحدیث نمبر ۴۱۵۵ صـ۲۰ الجزء السابع عشر نهم ټوک مکتبه بیروت لبنان ـ عون المعبود کتاب اللباس باب فی الصور دحدیث نمبر ۴۱۵۱ صـ۱۲۲ الجزء الحادي عشر مکتبه لدهیې کتب خانه .

که چا په خوب کي حضرت عثمان بن عفان رضی الله عنه په داسي حال کي ولېدی چي ژوندی ؤ نو ليدونکي ته به الله ﷻ (په هر شي کي) حياء او هيبت ورنصيب کړي او هم به ډير دښمنان ولري.

که چا په خوب کي حضرت علي بن طالب رضی الله عنه په داسي حال کي ولېدی چي ژوندی ؤ نو ليدونکي ته به الله ﷻ علم (پوهه) شفاعت دلاوري زهد (تقوی) ورکړي.[1]

که چا په خوب کي پر يو داسي سپين ږيري سړي باندي سلام واچوی چي نه يې پيژندی نو الله ﷻ به دی له عذابه څخه په امن کړي او که يې پيژندی نو ليدونکی به يوه ښايسته ښځه په نکاح کړي او ډول ډول ميوې به ورته ورسيږي او که چيري بيا ليدونکی پر نابلده خوان سلام واچوي نو الله ﷻ به يې د دښمنانو له شره څخه په امن کړي.[2]

[1] تفسير الاحلام للام محمد بن سير ين الباب الرابع صـ۴۲ مكتبه دارالدعوة الاسلامية خلف الجامع الازهر ـ فرهنگ عميد لفظ (حاء) صـ۵۲۲ موسسه انتشارات امير كبير تهران چاپ۱۳۸۲

[2] تفسير الاحلام للامام ابن سيرين السابع تاويل السلام والمصافحة صـ۵۱ مكتبه دارالدعوة الاسلامية درب الاتراک خلف الجامع الازهر.

## د ږيري دلنډوونکي دشاهدۍ حکم

۳۴۷ ـ **مسئله** :د ږيري خريل او وهل حرام دي ، ځکه چي دفسق موجب (سبب) او مشرعيت يې داحاديثو او فقهاؤ کرامو رحمهم الله داقوالو په رڼا کي دوجوب ودرجې ته رسيدلي دي ، ځکه نو حرام فعل کوونکی فاسق او فاجر دی او دفاسق شاهدي شرعاً صحيح نه ده ليکن دموجوده زماني وحالاتو ته په کتلو سره که چيري دږيري لرونکي شاهدي موجوده نه سي او دحق دضايع کېدو خطروي او په خپله دغه بې ږيري سړی ښه او معتبره سړی وي چي په صدق باندي يې دقاضي اعتماد او باور وي نو بيا دږيري خريلو او لنډولو سره سره دهغه شاهدي قبلېدلای سي.[1]

## د مرغانو خرخول

۳۴۸ ـ **مسئله** :داچي ځيني خلګ مرغان نيسي او بيا يې خرڅوي نو ددې بيې ته شريعت اجازه ورکړې ده ځکه شريعت مقدسه د مرغانو ښکار کول او نيول روا ګرځولي دي ، نو کله چي په شريعت

[1] ردالمحتار کتاب الشهادة فاسق فان تدري القاضي الصدق في شهادة تقبل والالا، قال في الفتاواي القاعدة هذا اذاعلب علي ظنه صدقه وهو ما يحفظ درداول کتابالقضاء، وظاهر قوله وهومما يحفظ اعتماد صـ۴۱۴ خلورم ټوک ـ شرح المجله الاحکام المادة صـ۱۷۰ فصل فی شروط الشهادة الاسلامي.

کي ښکار کول روا سول نو بيه يې هم روا ده ، خو په دغه بيـه کي بـه د دواړو خواو خښه رضا وي نو بيا پروا نه لري.

يادونـه : دکـرک، زرکـي او داسـي نـورو مرغـانو خرڅـول اورانيـول دجنګولو لپاره په شريعت کي حرام دي او په هيڅ لاره جواز نه لـري نو دهـر مـسلمان لپـاره پـه کـار دي چي ددغسي بـد کـار څخـه لاس واخلي او بې ځايه حيوانات په تکليف نه کړي ځکـه اوله درجـه ګنـاه داخيرت پـه ورځ کـي يـې پوښـتنه کيـږي هغـه د حيـوان ازار دی او پـه دريمه درجه کي دمسلمان ازار دی.[1]

## بېهوښي

۳۴۹ _ **مسئله** :کـه چيـري پـر يـو چـا بانـدي بېهوښـي راسـي او دغـه بېهوښـي يـوه ورځ او يـوه شـپه دوام وکـړي او يـاهم تـر دې کـم دوام وکړي په دې جريان کي چي هر څو لمونځونه ورڅخه قـضا سـوي وي نـو دهغـو ټولـو لمونځـونو قـضاء بـه راوړي ، ځکـه چـي يـو وخـت پـر حضرت علي ﷺ باندي دونه بېهوښي راغله چي څلور لمونځونه ورڅخه قضاء سول، کله چي جوړ سو نو هغـه څلـور لمونځونـه يـې

---

[1] فتاوای حقانيه باب ما يجوز بيعه ومالايجوز دمرغانو دتجارت حکم صـ۸۹ پنځم توک مکتبه جديد کتب خانه په حواله د ردالمختار کتاب البيوع باب المتفرقات صـ۲۲۷ پنځم توک.

بيرته راوګرځول ، همدارنګه پر حضرت عمار ﷺ باندي دپنځه لمونځونو وخت بيهوښي راغلې ده ، هغه هم کله چي جوړ سو نو بيرته يې راوګرځول .[1]

## دجماعت وروسته سنت کول

۳۵۰ ـ **مسئله** :که يو مقتدی دماپښين په لمانځه کي دامام سره په داسي حال کي داخل سو چي څلور رکعته سنت يې نه وي کړي، نو کله چي دجماعت څخه فارغ سو ، دامام يوسف صاحب رحمة الله عليه په نزد دي اول څلور رکعته سنت وکړي بيا دي دوه رکعته سنت وکړي ، دامام محمد صاحب رحمة الله عليه په نزد دي اول دوه رکعته سنت وکړي او بيا دي څلور رکعته سنت وکړي .[2]

[1] التجريد كتاب الصلوة دمسئلي نمبر ۸۵ صـ ۴۰۱ لومړي ټوک مکتبه محموديه ـ فتح القدير کتاب الصلوة باب صلاوة المريض صـ ۹۰۸ دوهم ټوک مکتبه رشيديه ـ بنايه کتاب الصلوة باب صلوة المريض صـ ۲۴۹ دوهم ټوک مکتبه حبيبيه ـ سنن اکبري کتاب الصلوة باب المغمي عليه يفتق بعد ذهاب ... دحديث نمبر ۱۸۲۲ صـ ۵۷۱ لومړي ټوک مکتبه دارالکتب العلميه بيروت لبنان ـ هدايه کتاب الصلوة باب صلوة المريض صـ ۳۵۰ لومړي ټوک مکتبه البشرای .

[2] فتاوی سراجيه کتاب الصلوة صـ ۱۱۸ مکتبه الزمزم کتاب والسنة على فهم سلف صالح .

## دمشرکانو کوچنیان

**۳۵۱ ـ مسئله**: امام محمد بن حسن رحمه الله وایي چي الله تعالیٰ وهیڅاته ببله دې چي ګناه وکړي عذاب نه ورکوي او بل داچي الله تعالیٰ هر زېږېدونکی پر ایمان فطري (الست بربکم وعد) باندي زېږوي ، نو که وکتل سي دمشرکانو کوچنیانو هم څه ګناه نه ده کړې ځکه مکلف نه دي نو انشاءالله په جنت کي به وي .[1]

## دنابالغه کوچني نذر نسته

**۳۵۲ ـ مسئله**: کله چي نابالغه کوچنی پر خپل ځان باندي یو شی (مال یا روژه) نذر کړي نو دا نذر پرده باندي لازم نه دی ځکه چي دی مکلف نه دی یعني په شرعي امورو باندي مکلف نه دی ، چي دغه نذر حتماً سرته ورسوي ، دا نذر که معین (معلوم) وي او که غیر معین ( نامعلومه) وي فرق نه کوي په دواړو صورتو نو کي یې پر اداء باندي مکلف نه دی .[2]

[1] ردالمختار باب الصلوة الجنائز صـ۲۲۹ لومړي ټوک مکتبه رشیدیه

[2] امداء الفتاوای کتاب النذر صـ۵۵۷ دوهم ټوک ـ فتاوای حقانیه کتاب الایمان وانذر صـ۱۹۲ څلورم ټوک مکتبه جدید کتب خانه .

## په رکوع کي د امام سره يو ځای کېدل

۳۵۳ ـ **مسئله**: په اوس وخت کي ډير خلک داسي کوي کله چي مسجد ته راسي ، امام درکوع په حال کي وي ، نيت پر لاري وتړي ، کله چي لاسونه له غوږو څخه کښته کړي نو سمدستي يې زنګنونو ته يو سي او لومړی تکبير په رکوع کي ووايي ، کله امام په رکوع کي وي او کله هم له رکوع څخه پورته سوی وي ، نو په داسي حال کي ددغه سړي لمونځ فاسد سو. زموږ ډيری وروڼه تکليف وباسي اودس وکړي ، مسجد ته ولاړسي خو لمونځ په دغه ډول فاسد کړي ، دغه ټکي ته بايد ډيره پاملرنه وسي .[1]

پای

[1] فتاوای نابلسي صـ ۷۲۱ دوهم ټوک مکتبه حقانيه

